بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

حنفی شافعی

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق
+923052488551
+923247442395

easypaisa
بدلے زندگی آسانی سے





مالکی حنبلی

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدايه

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
د هدايې يوه جامع شرحه

| | | |
|---|---|---|
| د حديثونو تخريج | پر فقهي او ضروري معلوماتو | تعيين د قول راجح |
| د متن بشپړ اعراب | مشتمله يوه جامع مقدمه | د هري جملې تر څنګ ژباړه |
| صرفي تحقيق | | د عنواناتو اضافه |
| د لغاتو حل | | صورت د مسئلې |

**ديارلسم ټوک**

باب القسامة تا كتاب الخنثى

ژباړه او ترتيب:
مولوي حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه

صداقت كتب خانه- كندهار

# فهرس

## بَابُ الْوَصِيَّةِ بِالسُّكْنٰى وَالْخِدْمَةِ وَالثَّمَرَةِ ........ ۳۲۰



## بَابُ وَصِيَّةِ الذِّمِّيِّ ........ ۳۵۱

# بَابُ الْقَسَامَةِ

(دا) باب د قسامت (امکرر قسم اخیستلو) په بیان کې دی

**د قسامت لغوي او اصطلاحي معنی:** قسامت د افعال (أَقْسَمَ) له باب څخه اسم دی کوم چې د مصدر (إِقْسَام) پر ځای مستعمل دی چې د هغه معنیٰ ده: قسم اخیستل (قسم کول). او د شریعت په اصطلاح کې د قسامت معنیٰ ده "أَيْمَانٌ مُكَرَّرَةٌ ... أَهْلُ مَحَلَّةٍ وُجِدَ فِيهَا قَتِيلٌ بِهِ جِرَاحَةٌ أَوْ أَثَرُ ضَرْبٍ وَلَا يُعْلَمُ مَنْ قَتَلَهُ" په لنډه وینا: "أَيْمَانٌ يَحْلِفُهَا أَهْلُ الْمَحَلَّةِ الْمُتَّهَمُونَ بِالْقَتْلِ". مفهوم یې څرګند دی. یعني که په یو کلي او محله کې یو مقتول کس ومیندل سي چې پر هغه د زخم یا د وهلو (یعني د قتل) آثار وي او قاتل یې معلوم نه سي. نو په کومه محله کې چې هغه میندل سوی وي. په هغه محله کې به له پنځوسو (۵۰) خلګو څخه قسم اخیستل کیږي. چې هغوی به په داسې الفاظو سره قسم اخلي "بِاللهِ ما قتلناه ولا نعلم له قاتلًا" چې په خدای قسم نه موږ هغه قتل کړی دی او نه موږ د هغه څه قاتل پېژنو.

**د قسامت سبب:** وجود القتیل. یعني مقتول پیدا کېدل (چې په یو محله او یو ځای کې مقتول کس ومیندل سي).

**د قسامت رکن:** له پنځوسو خلګو څخه په انفرادي توګه قسم اخیستل (چې هر فرد به جلا قسم اخلي).

**د قسامت شرط:** قسم اخیستونکي افراد به عاقل، بالغ او آزاد وي.

**وجه د مناسبت:** مخکې تر دې د قتل، جنایت او دیت احکام بیان سول او دا ښکاره خبره ده چې ځیني وخت د قتل کونکي کس (قاتل) یقیني معلومات او خبر نه وي او صحیح درک یې نه معلومیږي چې د هغه په وجه د دیت په وجوب کې ستونزه وي او د هغه ازاله د قسامت په ذریعه کیږي. نو په دې مناسبت مصنف رَحِمَهُ الله د کتابُ الدیات په اختتام کې بابُ القسامة هم بیان کړی دی چې په دې سره کتابُ الدیات کامل او بشپړ وګرځي. (احسن الهدایه)

## د قسامت بیان

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيْلُ فِيْ مَحَلَّةٍ او كله چي په يو محله كي يو مقتول پيدا سي وَلَا يُعْلَمُ مَنْ قَتَلَهُ او دا معلومه نه سي چي هغه چا قتل كړی دی اُسْتُحْلِفَ خَمْسُوْنَ رَجُلًا مِنْهُمْ نو د هغه محلې [والا له پنځوسو خلكو څخه به قسم اخيستل كيږي يَتَخَيَّرُهُمُ الْوَلِيُّ چي هغوی به [د مقتول] ولي اختياروي بِاللهِ مَا قَتَلْنَاهُ وَلَا عَلِمْنَا لَهُ قَاتِلًا [او هغوی به داسي قسم اخلي] په الله قسم! نه موږ هغه قتل كړی دی او نه موږ د هغه څه قاتل پيژنو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِذَا كَانَ هُنَاكَ لَوْثٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي كه هلته يو قرينه موجوده وي اُسْتُحْلِفَ الْأَوْلِيَاءُ خَمْسِيْنَ يَمِيْنًا نو [د مقتول] له وليانو څخه به پنځوس قسمونه اخيستل كيږي وَيُقْضٰى لَهُمْ بِالدِّيَةِ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ او [تر قسم وروسته] د دوی لپاره به پر مدعیٰ عليه د ديت فيصله كيږي عَمَدًا كَانَتِ الدَّعْوٰى أَوْ خَطَأً [برابره ده] دعویٰ د عمد وي او كه د خطاء وي وَقَالَ مَالِكٌ او امام مالك رَحِمَهُ الله فرمايي يُقْضٰى بِالْقَوَدِ إِذَا كَانَتِ الدَّعْوٰى فِي الْقَتْلِ الْعَمَدِ چي د قصاص فيصله به كيږي كله چي دعویٰ د قتل عمد وي وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دی.

**اللغات:** ﴿قتيل﴾ پر وزن د فعيل په معنیٰ مفعول سره دی: قتل كړی سوی. مقتول. ﴿استحلف﴾ د استفعال له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: له چا څخه قسم اخيستل. ﴿لَوْث﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه څيني دا دي: شبهه. قرينه (داسي قرينه [نښه] كوم چي پر يو امر او پر يو شي دلالت وكړي بغير له قطعي دليل څخه). د امام شافعي رَحِمَهُ الله وغيره په نېز د لوث مراد به په را روان عبارت كي ذكر سي. ﴿الْقَوَد﴾ قصاص.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو په محله يا كوڅه كي داسي مقتول وميندل سي چي د هغه قاتل معلوم نه وي او پر هغه مقتول د قتل آثار موجود وي يعني د هغه پر بدن زخم يا د وهلو ښېې وي او د مقتول ولي د هغه محلې (يا كوڅې) پر خلكو د قتل دعویٰ وكړي چي دا تاسي قتل كړی دی. نو زموږ په نېز د مقتول ولي ته دا حق سته چي له هغه محلې والا وو څخه پنځوس كسان اختيار كړي او له هغو څخه په مذكوره الفاظو قسم واخلي كوم چي په عبارت كي ذكر سوه. تر قسم اخيستلو

وروسته د هغو له ذمې څخه قصاص ساقطيږي او د هغو پر عاقله وو ديت واجبيږي. برابره ده د قتلِ عمد دعوىٰ وي او که د قتلِ خطاء وي، په هر صورت کې زموږ په نيز همدا حکم دى.

په دې سلسله کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې که د مقتول کس او محلې والا په هکله د قتل څه قرينه (لوث) موجود وي، نو بيا به اول د مقتول له وليانو (مدعيانو) څخه پنځوس قسمونه اخيستل کيږي او هغوی به داسې قسم اخلي چې "په الله قسم! همدې محلې والا هغه قتل کړی دی". که د مقتول وليان قسم واخلي، نو بيا پر هغه محلې والا د دوی لپاره ديت واجبيږي. برابره ده د قتلِ عمد دعوىٰ وي او که د قتلِ خطاء (د قتلِ خطاء په صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله همدا يو قول دی چې ديت واجبيږي. لېکن د عمد په صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوه قوله نقل سوي دي چې د يوه قول مطابق قصاص او د بل قول مطابق ديت واجبيږي. او که د مقتول ولي [مدعي] له قسم څخه انکار وکړي، نو بيا به له محلې والا څخه قسم اخيستل کيږي. که هغوی قسم واخلي نو بري کيږي يعني بيا پر هغو نه قصاص سته او نه ديت. خو که محلې والا له قسم څخه انکار وکړي. نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله د يوه قول مطابق قصاص او د بل قول مطابق ديت واجبيږي او زموږ په نيز ديت واجبيږي. او که هيڅ قرينه [لوث] نه وي، نو بيا به هغه طريقه اختيارول کيږي کوم چې زموږ مذهب دی).

<u>وقال مالك إلخ</u>: د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز که د مدعي دعوىٰ د قتلِ عمد وي (يعني په هغه صورت کې کله چې مدعي [د مقتول ولي] له قسم څخه انکار وکړي. په دې صورت کې که د هغه دعوىٰ د قتلِ عمد وي)، نو مدعي چې له مدعىٰ عليهم (اهلِ محلة) څخه کوم کس اختيار کړي يا په بله وينا دا چې پر کوم يوه دعوىٰ ثابته کړي، له هغه څخه به قصاص اخيستل کيږي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دی (لکه څه مخکې چې موږ ذکر کړه). (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د "لَوْث" وضاحت

<u>وَاللَّوْثُ عِنْدَهُمَا</u> او د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز لوث [قرينه] دا ده <u>أَنْ يَكُوْنَ هُنَاكَ عَلَامَةُ الْقَتْلِ عَلىٰ وَاحِدٍ بِعَيْنِهِ</u> چې هلته پر يو معيّن کس د قتل نښه موجوده وي <u>أَوْ ظَاهِرٌ يَشْهَدُ لِلْمُدَّعِيْ مِنْ عَدَاوَةٍ ظَاهِرَةٍ</u> يا ظاهر حال د مدعي په حق کې ګواه وي يعني [د قاتل او د مقتول تر منځ] ظاهري دښمني وي <u>أَوْ شَهَادَةِ عَدْلٍ</u> يا [د قتل په هکله] د يوه عادل کس ګواهي وي <u>أَوْ جَمَاعَةٍ غَيْرِ عُدُوْلٍ أَنَّ أَهْلَ الْمَحَلَّةِ قَتَلُوْهُ</u> يا د څو نا عادله خلکو ګواهي وي پر دې خبره چې محلې والا وو هغه قتل کړی دی

وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لَهُ او که ظاهر حال د مدعي لپاره ګواه نه وي فَمَذْهَبُهُ مِثْلُ مَذْهَبِنَا نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب زموږ د مذهب په شان دی غَيْرَ أَنَّهُ لَا يُكَرِّرُ الْيَمِيْنَ خو هغه قسم نه مکرر کوي بَلْ يَرُدُّهَا عَلَى الْوَلِيِّ بلکې [د مقتول] پر ولي يې واپس کوي فَإِنْ حَلَفُوْا نو که هغوی قسم واخلي لَا دِيَةَ عَلَيْهِمْ نو پر هغو [محلې والا] باندې دیت نسته.

**اللغات:** ﴿عداوة﴾ دښمني.

**تشریح:** په تېر عبارت کې چې کوم لفظ د "لَوْث" راغلی دی. دلته د هغه وضاحت کوي فرمايي چې د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د "لوث" تشریح دا ده چې د هغه محلې په خلکو کې پر یو معین کس د قتل نښه (نښاني) موجوده وي په دې توګه چې د هغه پر تورو د وینو اثر وي (توره يې په وینه لړلې وي) یا مثلاً د هغه د ټوپک ګولۍ د مقتول تر بدن وتلې وي. یا په هغه محله کې د یو معین کس او مقتول تر مینځ عداوت او دښمني وي نو په دې حواله سره ظاهر حال د مدعي (ولي المقتول) په حق کې شاهد وي چې همدا دښمن د هغه قاتل دی. یا یو عادل کس د هغه محلې والا په خلاف د قتل ګواهي ورکړي. یا یو غیر عادل جماعت دا ګواهي ورکړي چې همدې محلې والا د مقتول قاتلان دي. نو دا صورتونه په "لوث" (قرینه) کې داخل دي او په دې ټولو صورتونو کې به له مدعیانو (یعنې د مقتول له ولیانو) څخه قسم اخیستل کیږي.

وإن لم يكن إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د قتل په هکله هیڅ لوث یعني قرینه او نښه موجوده نه وي او ظاهر حال د مدعي په حق کې شاهد نه وي. نو په دې صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز هم اول به له محلې والا څخه قسم اخیستل کیږي لکه څرنګه چې زموږ په نېز هم دغه حکم دی. لیکن زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله تر مینځ فرق دا دی چې که د محلې والا شمېر پنځوسو ته نه رسیږي او پنځوس نفره نه پوره کیږي. نو زموږ په نېز به له هغو څخه مکرر قسم اخیستل کیږي تر دې چې پنځوس قسمونه پوره سي. لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له محلې والا څخه مکرر قسم نه اخیستل کیږي بلکې د پنځوسو شمېر به د مقتول په ولیانو سره پوره کول کیږي. مثلاً که د محلې والا ټوله (۳۵) نفره وي نو د هغو سره به (۱۵) نفره د مقتول ولیان یو ځای کول کیږي او له ټولو څخه به قسم اخیستل کیږي. او تر دې وروسته زموږ په نېز پر محلې والا وو دیت واجبیږي. لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دیت ساقطیږي. (احسن الهدایه)

## د امام شافعي رحمه الله دليل

لِلشَّافِعِيِّ فِي الْبِدَايَةِ بِيَمِينِ الْوَلِيِّ قَوْلُهُ ﷺ لِلْأَوْلِيَاءِ د قسم له ولي څخه [د قسامت] د شروع کولو په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دى د مقتول وليانو ته فَيُقْسِمُ ❶ مِنْكُمْ خَمْسُونَ أَنَّهُمْ قَتَلُوهُ چي له تاسي څخه به پنځوس کسان دا قسم اخلي چي دوى [محلي والا] هغه قتل کړى دى وَلِأَنَّ الْيَمِينَ تَجِبُ عَلَى مَنْ يَشْهَدُ لَهُ الظَّاهِرُ او ځکه چي قسم پر هغه چا واجبيږي چي د هغه په حق کي ظاهر حال شاهد [ګواه] وي وَلِهَذَا تَجِبُ عَلَى صَاحِبِ الْيَدِ په همدې وجه قسم پر قبضې والا [قابض] باندي واجبيږي فَإِذَا كَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِلْوَلِيِّ بيا کله چي ظاهر حال [د مقتول] د ولي لپاره شاهد وي يُبْدَأُ بِيَمِينِهِ نو د هغه له قسم څخه به شروع کيږي وَرَدُّ الْيَمِينِ عَلَى الْمُدَّعِي أَصْلٌ لَهُ او يمين پر مدعي واپس کول د امام شافعي رحمه الله اصل دى كَمَا فِي النُّكُولِ لکه [له يمين څخه] د انکار کولو په صورت کي چي دى غَيْرَ أَنَّ هَذِهِ دَلَالَةٌ فِيهَا نَوْعُ شُبْهَةٍ خو دا [يمين] داسي دلالت دى چي په هغه کي يو قسم شبهه ده وَالْقِصَاصُ لَا يُجَامِعُهَا او قصاص د شبهي سره نه جمع کيږي وَالْمَالُ يَجِبُ مَعَهَا حال دا چي مال د شبهي سره جمع کېداى سي فَلِهَذَا وَجَبَتِ الدِّيَةُ په همدې وجه ديت واجبيږي وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ ❷ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دى «الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ» بينه پر مدعي ده او قسم پر انکار کونکي دى وَفِي رِوَايَةٍ: «عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ» او په يوه روايت کي دي: اچي قسم] پر مدعى عليه دى وَرَوَى سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ او سعيد بن مسيب رضي الله عنه روايت کړى دى أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ ❸ بَدَأَ بِالْيَهُودِ بِالْقَسَامَةِ چي نبي کريم ﷺ له يهودو څخه د قسامت [قسم اخيستلو] شروع وکړه وَجَعَلَ الدِّيَةَ عَلَيْهِمْ لِوُجُودِ الْقَتِيلِ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ او پر هغو يې ديت لازم وګرځوى. د هغو په مينځ کي د مقتول د موجودېدلو په وجه [چي مقتول کس د هغو په

---

❶ تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم والبيهقي في السنن الكبرى في كتاب القسامة، باب اصل القسامة، حديث رقم:١٦٢٣٦.

❷ تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الأحكام، باب ما جاء في أن البينة على المدعي واليمين على المدعى عليه، حديث رقم:١٣٤١.

❸ تخريج: أخرجه تعليقا ابن أبي شيبة في مصنفه، باب ما جاء في القسامة، حديث رقم:٢٧٨٠٦. (حسن عنده)

مینځ کي میندل سوی وو] .وَلِأَنَّ الْيَمِينَ حُجَّةٌ لِلدَّفْعِ دُوْنَ الِاسْتِحْقَاقِ او ځکه چي قسم د دفع لپاره حجت دی، نه د استحقاق لپاره وَحَاجَةُ الْوَلِيِّ إِلَى الِاسْتِحْقَاقِ او د ولي ضرورت استحقاق لره دی وَلِهٰذَا لَا يَسْتَحِقُّ بِيَمِينِهِ الْمَالَ الْمُبْتَذَلَ په همدې وجه مدعي په قسم سره د خرچ کړی سوي مال نه مستحق کيږي فَأَوْلٰى أَنْ لَا يَسْتَحِقَّ بِهِ النَّفْسَ الْمُحْتَرَمَةَ نو په درجه اولیٰ به هغه په قسم سره د نفسِ محترم نه مستحق کيږي.

**اللغات**: ﴿بداية﴾ د فتح د باب مصدر دی: شروع کول. ﴿نكول﴾ د نصر او ضرب د باب مصدر دی: له قسم ځخه انکار کول. ﴿بيّنة﴾ ګواهي. ﴿أظهُر﴾ جمع د ظَهرٌ ده: شا، ملا، او که په صله کي يې خلګ او ضمير ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: په مینځ کي، لکه څرنګه چي ويل کيږي: أقام بين الناس يا بينهم: د دوی په مينځ کي ودريدی. ﴿مبتذل﴾ د افتعال د باب فاعل دی: خرچ کونکی. صرفونکی.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي که د مقتول پر قتل يو قرينه موجوده وي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي اول به د مقتول له وليانو ځخه قسم اخيستل کيږي (يا په بله وينا دا چي د قسم شروع به د مقتول له وليانو ځخه کيږي)، نو په دې هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل هغه حديث دی کوم چي په صحاح سته وو کي موجود دی چي د هغه ځه حصه په عبارت کي ذکر سوې ده، د هغه تفصيل دا دی چي د خيبر له کندو ځخه په يو کنده (کندې) کي يو مسلمان مقتول (عبد الله بن سهل ﷺ) پروت وميندل سو او نبي کريم ﷺ ته د هغه اطلاع ورکول سوه، نو نبي ﷺ اول د مقتول وليانو ته وفرمايل چي تاسي پنځوس قسمونه واخلئ! او د خپل ملګري (عبد الله بن سهل) د وينې مستحق سئ. نو د مقتول وليانو وويل چي اې د الله رسوله! د کوم شي په هکله چي موږ ته قطعي علم (خبر) نسته د هغه په باره کي موږ څنګه قسم واخلو، نو نبي ﷺ وفرمايل چي بيا به يهود (اهلِ قليب) پنځوس قسمونه واخلي او ستاسي ځخه به بري او خلاص سي، نو د مقتول وليانو وويل چي هغوی کافران دي او د کافرانو قسم موږ څنګه قبول کړو!. نو بيا نبي ﷺ د مقتول وليانو ته د صدقې له اوښانو ځخه سل اوښان د فديې په توګه ورکړه. په دې واقعه سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې توګه دليل نيسي چي دلته نبي ﷺ د مقتول د وليانو قسم مخکي کړی دی يعني اول يې له هغو ځخه د قسم اخيستلو مطالبه کړې ده. نو ځکه د مقتول د وليانو قسم به د محلې والا له قسم ځخه مخکي کيږي.

ولأن اليمين إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چي ظاهر حال د کوم چا په حق کي گواه وي، قسم پر هغه واجبيږي، همدا وجه ده چي پر قابض قسم واجبيږي چي ظاهر حال د هغه په حق کي گواه وي (ځکه چي شی د هغه په قبضه کي وي)، او په قسامت کي ظاهر حال د مدعي په حق کي گواه وي، او مدعي د مقتول وليان دي، نو ځکه هم پر هغو به قسم واجب وي او له هغو څخه به د قسم شروع کيږي.

و ردّ اليمين إلخ: د دې حاصل دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز چي څرنگه يو اصل دا دی چي که محلې والا له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي نو له مدعي څخه تر قسم اخيستلو وروسته به د ديت فيصله کيږي. نو همداسي د هغه په نيز دا هم يو اصل دی چي که د محلې والا شمېر پنځوسو ته نه رسيږي او پنځوس نفره نه پوره کيږي، نو په دې صورت کي به له محلې والا وو څخه مکرر قسم نه اخيستل کيږي بلکي، د پنځوسو شمېر به په مدعي سره يعني د مقتول په وليانو سره پوره کول کيږي او د هغو پر قسم به د ديت د وجوب فيصله کول کيږي (لکه مخکي چي ذکر سوه).

غير أنّ هذه دلالة إلخ: او که سؤال وسي چي بيا خو امام شافعي رَحِمَهُ الله ته پکار دي چي د عمد په صورت کي يې د قصاص د وجوب فيصله کړې وای، نو د دې جواب دا دی چي په يمين (قسم) سره چي پر قتل کوم دلالت قايميږي هغه د دومره درجې دلالت او علامت نه وي چي په هغه سره قصاص ثابت سي، په همدې وجه امام شافعي رَحِمَهُ الله د قتل عمد په صورت کي هم ديت واجب کړی دی، نه قصاص؛ ځکه د يمين په ذريعه په ثابت سوي حکم کي څه نا څه شبهه وي او قصاص په شبهې سره ساقطيږي.

ولنا قوله ﷺ إلخ: زموږ په نيز حکم دا وو چي اول به له محلې والا (مدعىٰ عليهم) څخه قسم اخيستل کيږي، نو په دې هکله زموږ دليل دا دوه روايتونه دي: ① "البيّنة على المدعي واليمين على من أنكر" ② او بل د حضرت سعيد بن مسيّب رضي الله عنه دا روايت دی "أنّ النبي ﷺ بدأ باليهود بالقسامة إلخ". په اول روايت کي نبي کريم ﷺ د "واليمين على من أنكر" په فرمان سره په قولي توگه او په دويم روايت کي په "بدأ باليهود بالقسامة إلخ" سره په فعلي توگه له مدعىٰ عليه څخه د قسم شروع کړې ده کوم چي د دې خبري څرگند دليل دی چي دلته به اول له مدعىٰ عليه څخه قسم اخيستل کيږي.

ولأن اليمين إلخ: دا زموږ عقلي دليل دی. حاصل يې دا دی چې يمين (قسم) حُجتِ دافعه دی نه حُجتِ مُثْبِته (يعني په قسم سره دعوی وغيره دفع کيږي په ثابتيږي نه). او دلته مدعي (يعني د مقتول ولي) ته حُجتِ مُثْبِته مدعي دی يعني هغه د قصاص يا د ديت د استحقاق او ثابتېدلو مدعي دی. حال دا چې مدعیٰ عليه پر ځان د دې استحقاق د دفع کېدلو يعني د قصاص يا ديت د نه واجبېدلو مدعي دی. نو ځکه په دې حواله سره هم قسم پر مدعیٰ عليه اصلا لازميږي او هم له هغه شخصه به قسم اخيستل مفيد وي او له مدعي شخصه به د قسم اخيستلو هيڅ فايده نه وي: ځکه کله چې د مدعي په قسم سره مال هم نه ثابتيږي يعني که مدعي د مال دعوی کړې وي نو په دې دعوی کې د هغه قسم هيڅ فايده نه کوي او په قسم اخيستلو سره مدعي د مال نه مستحق کيږي. نو هغه به د نفس محترم (يعني د قصاص) په درجه اولیٰ نه مستحق کيږي: ځکه چې د نفس مقام او مرتبه له مال څخه ډېره لوړه ده.

**له اهلِ محله څخه د پنځوسو خلکو د اختيارولو حق چا ته حاصل دی؟**

وَقَوْلُهُ يَتَخَيَّرُهُمُ الْوَلِيُّ إِشَارَةٌ او د امام قدوري رحمة الله دا قول "يتخيرهم الولی" و دې طرف ته اشاره ده إِلَى أَنَّ خِيَارَ تَعْيِينِ الْخَمْسِينَ إِلَى الْوَلِيِّ چې اهل محلې څخه د پنځوسو کسانو د متعينولو اختيار ولي لره دی لِأَنَّ الْيَمِينَ حَقُّهُ ځکه چې قسم د هغه حق دی وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ يَخْتَارُ مَنْ يَتَّهِمُهُ بِالْقَتْلِ او ښکاره ده چې (د مقتول) ولي به هغه څوک اختياروي کوم چې په قتل کولو سره متهم (تورن) ومومي أَوْ يَخْتَارُ صَالِحِي أَهْلِ الْمَحَلَّةِ يا ولي به د محلې والا نېکان (ديندار کسان) اختياروي لِمَا أَنَّ تَحَرُّزَهُمْ عَنِ الْيَمِينِ الْكَاذِبَةِ أَبْلَغُ التَّحَرُّزِ ځکه چې د دروغو له قسم څخه د نېکانو بچ کېدل به کامل بچ کېدل وي (يعني هغوی به په کامله توګه د دروغو له قسم څخه ځان ساتي) فَيَظْهَرُ الْقَاتِلُ نو قاتل به ښکاره سي وَفَائِدَةُ الْيَمِينِ النُّكُولُ او د قسم فايده (له قسم څخه) انکار کول دي (نو مطلوب به حاصل سي) فَإِنْ كَانُوا لَا يُبَاشِرُونَ وَيَعْلَمُونَ بيا که محلې والا وو قتل نه وي کړی او دوی (په قاتل) خبر وي يُفِيدُ يَمِينُ الصَّالِحِ عَلَى الْعِلْمِ بِأَبْلَغَ مِمَّا يُفِيدُ يَمِينُ الطَّالِحِ نو (په قاتل) په خبرېدلو باندې به د نېک کس قسم له هغه څخه زيات فايده وکړي کوم چې د بدکاره کس قسم فايده کوي (يعني که د محلې والا په قاتل خبر وي. نو له دوی څخه د نېک کس قسم به په دې خبر باندې د بدکاره کس له قسم څخه زيات مفيد وي) وَلَوِ اخْتَارُوا أَعْمَى أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ او که د مقتول وليان ړوند (نابينا) يا محدود في

القذف کس اختیار کړي جَازَ نو [هم] جائز دي لِأَنَّهُ يَمِينٌ وَلَيْسَ بِشَهَادَةٍ ځکه چي دا قسم دی او ګواهي نه ده.

**اللغات:** ﴿يتخيّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: اختیارول. منتخب کول. ﴿يمين﴾ قسم. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ځان ساتل. ډډه کول. بچ کېدل. ﴿نکول﴾ د ضرب او نصر د باب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول. ﴿طالح﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: فاسد. بدکاره. ﴿القذف﴾ دضرب د باب مصدر دی: د زنا تهمت لګول (پر ښځي د زنا تور لګول). ﴿محدود فی﴾ هغه کس چي په دروا غو پر يو چا د زنا تهمت ولګوي خو هغه ثابت نه کړی سي چي د هغه په وجه حد پرې جاري کړی سي. ﴿شهادة﴾ ګواهي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د قسم اخیستلو لپاره چي له اهلِ محله څخه کوم پنځوس کسان اختیارول کیږي، د هغوی د متعینولو اختیار د مقتول ولیانو لره دی: ځکه قسم د همدوی حق دی. ځکه چي د هغه سره د دوی د قصاص یا د دیت حق تړلی دی. لهذا په دې سلسله کي به د تعیین وغیره اختیار هم دوی لره وي: ځکه د مقتول ولیان به د خپل حق د ساتلو او ترلاسه کولو لپاره داسي کسان اختیاروي کوم چي په قتل سره متهم وي لکه فاسقان او پایلوچان: ځکه زیاتره وخت همداسي خلک د قتل کارونه کوي، لهذا دوی په اختیارولو سره به په قسم اخیستلو کي په آسانه توګه د قاتل درک معلوم سي. یا د مقتول ولیان به د قسم لپاره د محلې دینداره خلک اختیاروي: ځکه دینداره حضرات د دروا غو له قسم څخه په تینګه ځان ساتي او حقیقي حال بیانوي چي په دې سره به د قاتل پته معلومه سي. او د قسم اخیستلو فایده به دا وي چي که محلې والا قسمونه واخلي یا له قسم اخیستلو څخه انکار وکړي. په دې هر یوه صورت کي به مطلوب ژر تر ژره حاصل سي او معامله به ختمه سي.

فإن كانوا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که محلې والا قتل نه وي کړی لېکن په قاتل خبر وي. نو په دې صورت کي هم د هغه محلې له دینداره خلکو څخه قسم اخیستل به زیات مفید وي: ځکه ښکاره خبره ده چي د دیندارانو قسم به د بدکارانو له قسم څخه زیات ریښتونی او پاک وي.

ولو اختاروا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د مقتول ولیان یو نابینا یا محدود فی القذف کس د قسم لپاره اختیار کړي. نو دا هم جائز دي: ځکه دا قسم دی او ګواهي نه ده. او نابینا او محدود فی القذف که څه هم د ګواهۍ اهل نه دي. لېکن د قسم اخیستلو اهل دي.

## تر قسم اخیستلو وروسته د دیت د وجوب بیان

قَالَ: وَإِذَا حَلَفُوْا فرمايي او کله چې هغوی قسم واخلي قُضِيَ عَلٰى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِالدِّيَةِ نو پر محلې والا وو به د دیت فیصله کول کیږي وَلَا يُسْتَحْلَفُ الْوَلِيُّ او له ولي څخه به قسم نه اخیستل کیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَجِبُ الدِّيَةُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دیت نه واجبیږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] فِي حَدِيْثِ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَهْلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځکه نبي ﷺ د عبد الله بن سهل رضي الله عنه په حدیث کې فرمایلي دي «تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُوْدُ بِأَيْمَانِهَا» چې یهود به په خپلو قسمونو سره ستاسې څخه بري سي وَلِأَنَّ الْيَمِيْنَ عُهِدَ فِي الشَّرْعِ مُبَرِّئًا لِلْمُدَّعٰى عَلَيْهِ لَا مُلْزِمًا او ځکه چې په شریعت کې قسم د مدعیٰ علیه بري کونکی پېژندل سوی دی كَمَا فِي سَائِرِ الدَّعَاوٰى لکه څرنګه چې په ټولو دعوه ګانو کې دي وَلَنَا: أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ جَمَعَ [2] بَيْنَ الدِّيَةِ وَالْقَسَامَةِ فِي حَدِيْثِ ابْنِ سَهْلٍ وَفِي حَدِيْثِ زِيَادِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ او زموږ دلیل دا دی: چې نبي کریم ﷺ د عبد الله بن سهل رضي الله عنه په حدیث کې او د زید بن ابو مریم رضي الله عنه په حدیث کې د دیت او قسامت تر مینځ جمع کړې ده [یعني قسامت او دیت یې دواړه لازم کړي دي] وَكَذَا جَمَعَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بَيْنَهُمَا عَلٰى وَادِعَةَ او همدارنګه حضرت عمر رضي الله عنه پر وادعه قبیلې د دیت او قسامت تر مینځ جمع کړې ده وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: "تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُوْدُ" مَحْمُوْلٌ عَلَى الْإِبْرَاءِ عَنِ الْقِصَاصِ وَالْحَبْسِ او د نبي ﷺ دا فرمان له قصاص او قید څخه پر بري کېدلو محمول دی وَكَذَا الْيَمِيْنُ مُبَرِّئَةٌ عَمَّا وَجَبَ لَهُ الْيَمِيْنُ او همدارنګه قسم له هغه شي څخه بري کونکی دی چې د هغه لپاره قسم واجب وي وَالْقَسَامَةُ مَا شُرِعَتْ لِتَجِبَ الدِّيَةُ إِذَا نَكَلُوْا او قسامت [قسم اخیستل] د دې لپاره نه دي مشروع سوي چې دیت واجب سي کله چې دوی [محلې والا] له قسم څخه انکار وکړي [یعني چې تر نکول وروسته د دوی لپاره دیت واجب سي] بَلْ شُرِعَتْ لِيَظْهَرَ الْقِصَاصُ بِتَحَرُّزِهِمْ عَنِ الْيَمِيْنِ الْكَاذِبَةِ فَيُقِرُّوْا بِالْقَتْلِ بلکې د دې لپاره مشروع سوی دی چې د دروغو له قسم څخه د دوی د ځان ساتلو په وجه قصاص

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الأدب، باب اكرام الكبير، حديث رقم: ۶۱۴۲. ومسلم في كتاب القسامة، حديث رقم: ۱، ۲، ۴. (احسن الهدايه)

[2] تخريج: أخرجه البيهقي بمعناه في السنن الكبرىٰ، كتاب القسامة، باب اصل القسامة، حديث رقم: ۱۶۳۵۱. (احسن الهدايه)

ښکاره سي نو دوی به د قتل اقرار وکړي فَإِذَا حَلَفُوْا نو کله چي دوی قسم واخلي حَصَلَتِ الْبَرَاءَةُ عَنِ الْقِصَاصِ نو له قصاص څخه بري کېدل [خلاصېدل] حاصل سوه ثُمَّ الدِّيَةُ تَجِبُ بِالْقَتْلِ الْمَوْجُوْدِ مِنْهُمْ ظَاهِرًا بيا ديت د هغه قتل په وجه واجبيږي کوم چي ظاهراً د دوی له طرفه موجود سوی [واقع سوی] وي لِوُجُوْدِ الْقَتِيْلِ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ د دوی په مينځ کي د مقتول د موجودېدلو په وجه لَا بِنُكُوْلِهِمْ نه [له قسم څخه] د دوی د انکار په وجه [يعني ديت د دوی د انکار په وجه نه واجبيږي] أَوْ وَجَبَتْ بِتَقْصِيْرِهِمْ فِي الْمُحَافَظَةِ يا په ساتنه [او څارنه] کي د دوی د کوتاهي [لا پروايي] کولو په وجه ديت واجبيږي كَمَا فِي الْقَتْلِ الْخَطَإِ لکه څرنګه چي په قتل خطاء کي دي.

**اللغات**: ﴿حلفوا﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صيغه ده: قسم کول، قسم اخيستل، ﴿عُهِدت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده، د دې باب يوه معنیٰ ده: پېژندل، ﴿حبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندول (بندي کول)، قيدول، ﴿تقصير﴾ د تفعيل مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: کوتاهي کول، د وس او قدرت لرلو باوجود لازم شُده کار نه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي په کومه محله کښي مقتول کس ميندل سوی وي، که د هغه محلې پنځوس کسان دا قسم وکړي چي "بالله ما قتلناه ولا نعلم له قاتلاً"، نو زموږ په نيز د هغو له ذمې څخه قصاص ساقطيږي او ديت پرې واجبيږي، او د مقتول له وليانو څخه به قسم نه اخيستل کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حُکم دا دی چي که محلې والا قسم واخلي، نو بيا له دوی څخه قصاص هم ساقطيږي او ديت هم ساقطيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د عبد الله بن سهل ﷺ د حديث هغه حصه ده چي په هغه کي دا جمله مذکوره ده "تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُوْدُ بِأَيْمَانِهَا" يعني که تاسي قسمونه نه اخلی نو بيا به يهود قسمونه واخلي او ستاسي څخه به بري سي، او ښکاره خبره ده چي برائت په همغه صورت کي ثابتيږي کله چي هغوی له قصاص او ديت دواړو څخه بري سي، نو ځکه زموږ (د امام شافعي) په نيز په مذکوره صورت کي نه قصاص واجبيږي او نه ديت واجبيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دلیل دا دی چې په شریعت کې چې په کومو ځایو کې له مدعیٰ علیه څخه قسم اخیستل کیږي هلته تر قسم وروسته مدعیٰ علیه بري کول کیږي او تر قسم وروسته پر مدعیٰ علیه هیڅ شی نه لازمول کیږي. نو ځکه په قسامت کې به هم مدعیٰ علیه تر قسم وروسته د مدعي له دعوې او مطالبې څخه بري کول کیږي او پر هغه به دیت نه واجبیږي.

ولنا إلخ: زموږ مذهب ذکر سو چې کله محلې والا قسم واخلي نو له هغو څخه قصاص خو ساقطیږي لیکن دیت پر هغو واجب پاتیږي. نو په دې هکله زموږ نقلي دلیلونه دا حدیثونه دي:

①... د عبد الله بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث چې په هغه کې نبي ﷺ دا جمله فرمایلې ده "أَتَحْلِفُونَ خَمْسِيْنَ يَمِيْنًا وَتَسْتَحِقُّوْنَ دَمَ صَاحِبِكُمْ" او بیا د همدې په آخر کې دي "فَوَدَاهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِمِائَةٍ مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ" چې تر قسم وروسته نبي کریم ﷺ د مقتول ولیانو ته د صدقې سل اوښان په دیت کې ورکړه.

②... دویم دلیل د زیاد بن ابو مریم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه حدیث دی چې په هغه کې نبي ﷺ دیت او قسامت سره جمع کړي دي.

③... دریم دلیل هغه واقعه ده کوم چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې د "همدان" قبیلې په یو ښاخ "وادعه" کې پېښه سوې وه او په هغه کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دیت او قسامت سره جمع کړه. له دې دریو دلیلونو څخه دا خبره څرګنده سوه چې د قسامت او دیت اجتماع ممکنه ده او د نبي ﷺ په زمانه کې دا سې سوي دي. نو ځکه تر قسامت (قسم اخیستلو) وروسته به پر محلې والاوو دیت واجبیږي.

وقوله ﷺ إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل د عبد الله بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حدیث دا جمله وه "تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُوْدُ" او برائت همغه وخت ثابتیږي چې له دې څخه برائت عن الدیة هم مراد سي. نو د دې په جواب کې فرمایي چې له دې څخه برائت عن الدیة مرادول صحیح نه دي. بلکي دا حدیث له قصاص او قید څخه پر بري کېدلو محمول دی (چې یهود په قسمونو سره له قصاص او بند څخه بري سي). او له دیت څخه د بري کېدلو په هکله حدیث ساکت دی. نو ځکه موږ وایو چې تر قسم وروسته محلي والا له دیت څخه نه بري کیږي.

وكذا اليمين مبرئة إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دلیل جواب دی. حاصل یې دا دی چې دا موږ هم تسلیموو چې یمین (قسم) د مدعیٰ علیه د بري کولو لپاره مشروع سوی دی. لیکن یمین صرف

له هغه شي څخه مدعیٰ علیه بري کوي کوم شي لره چي هغه شامل وي او د کوم مقصد لپاره چي له مدعیٰ علیه څخه قسم اخیستل کیږي. او یمین چي کوم مقصد او کوم شي لره شامل نه وي. له هغه څخه مدعیٰ علیه نه بري کوي. او په مذکوره مسئله کي د یمین مقصد دا وو چي محلې والا د دروا غو له قسم څخه ډډه وکړي او د قتل اقرار وکړي او قصاص ثابت سي. لېکن کله چي محلې والا وو قسم واخیستی نو د هغو له ذمې څخه قصاص ساقط سو. خو څرنګه چي مقتول د دوی په محله کي میندل سوی دی. نو ځکه ظاهراً د هغه قتل د همدوی وطرف ته منسوب کیږي او دوی که څه هم له قصاص څخه بچ کیږي لېکن له دیت څخه نه سي بچ کېدلای او دیت خامخا پرې واجبیږي.

پر محلې والا (اهل محله) باندي د دیت واجبېدلو بل دلیل دا دی چي پر دوی باندي لازمه وه چي د خپلي محلې او په محله کي د راتلونکو کسانو څارنه او ساتنه وکړي. لېکن هلته د قتل معاملې دا ښکاره کړه چي دوی د هغه په حفاظت کي غفلت او لا پروایي کړې ده. نو څرنګه چي په قتلِ خطاء کي دیت په حفاظت کي د لا پروایي کولو په وجه واجبیږي. نو همداسي به دلته هم په حفاظت کي د لا پروایي کولو په وجه پر محلې والا وو دیت واجبیږي.

**له قسم اخیستلو څخه د انکار کونکي کس حکم**

وَمَنْ أَبَى مِنْهُمُ الْيَمِينَ او له دوی (اهل محله) څخه چي څوک له قسم څخه انکار وکړي حُبِسَ حَتَّى يَحْلِفَ نو هغه به قیدول کیږي تر دې چي قسم واخلي لِأَنَّ الْيَمِينَ فِيهِ مُسْتَحَقَّةٌ لِذَاتِهَا تَعْظِيمًا لِأَمْرِ الدَّمِ ځکه په دې کي د وینې د امر د تعظیم په وجه بذات خود قسم واجب دی وَلِهَذَا يُجْمَعُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الدِّيَةِ په همدې وجه د قسم او دیت تر مینځ جمع کول کیږي بِخِلَافِ النُّكُولِ فِي الْأَمْوَالِ په خلاف په مالونو کي (له قسم څخه) د انکار کولو لِأَنَّ الْيَمِينَ بَدَلٌ عَنْ أَصْلِ حَقِّهِ ځکه (په مالونو کي) قسم د هغه د اصل حق بدل دی وَلِهَذَا يَسْقُطُ بِبَذْلِ الْمُدَّعَى په همدې وجه د دعوه داره مال په خرچ کولو سره قسم ساقطیږي وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ لَا يَسْقُطُ بِبَذْلِ الدِّيَةِ او په کومه مسئله کي چي موږ یو په دې کي په دیت خرچ کولو (ورکولو) سره قسم نه ساقطیږي.

**اللغات**: ﴿أَبَى﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول. ﴿دم﴾ وینه. مراد: خون. قتل. ﴿مُدَّعَى﴾ د تفعیل د با مفعول دی: دعوه کړی سوی. دعوه داره. ﴿بذل﴾ د نصر د باب مصدر دی: خرچ کول (خرچول). ورکول.

**تشریح**: **مسئله:** دا ده چې که د هغه محلې له خلکو څخه یو کس یا څو کسان له قسم څخه انکار وکړي، نو هغوی به قیدول کیږي او د قسم اخیستلو تر وخته به په بندیخانه کې ساتل کیږي؛ ځکه د قسامت په باب کې یمین اصل او مقصود دی او د وینې د حفاظت او تعظیم په خاطر بذات خود واجب دي، په همدې وجه خو قسم او دیت دواړه سره جمع کول کیږي (یعني تر قسم اخیستلو وروسته دیت واجبول کیږي)، نو ځکه له قسم څخه انکار کونکي به آزاد نه پرېښوول کیږلي بلکې د قید او بند سزا به ورکول کیږي.

د دې په خلاف که پر مال د قسم اخیستلو مسئله وي او مدعیٰ علیه له قسم څخه انکار وکړي، نو هغه به نه قیدول کیږي او پر هغه به دعوه داره مال واجبول کیږي؛ ځکه په مال کې یمین (قسم) د مدعي د حق یعني د مال بدل وي، اصل نه وي. لهذا کله چې مدعي ته د هغه مُدعیٰ مال ورکول سي نو یمین ساقطیږي، لېکن په مذکوره مسئله کې یمین اصل دی، بدل نه دی، نو ځکه د مال یعني د دیت ورکولو باوجود هم له محلې والا وو څخه یمین نه ساقطیږي.

## مخکنی حکم په کومو صورتونو کې جاري کیږي

هٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَا إِذَا ادَّعَى الْوَلِيُّ الْقَتْلَ عَلٰى جَمِيْعِ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ دا تفصیل کوم چې موږ ذکر کړی هغه وخت دی کله چې ولي پر ټوله محلې والا وو د قتل دعویٰ کړې وي وَكَذَا إِذَا ادَّعٰى عَلَى الْبَعْضِ لَا بِأَعْيَانِهِمْ او همدارنګه کله چې هغه له دوی څخه پر بعضو غیر معیّنو دعویٰ کړې وي وَالدَّعْوٰى فِي الْعَمَدِ أَوِ الْخَطَإِ او دعویٰ [برابره ده] په عمد کې وي یا په خطاء کې وي لِأَنَّهُمْ لَا يَتَمَيَّزُوْنَ عَنِ الْبَاقِيْ ځکه بعضِ غیرِ معیّن له پاتو کسانو څخه نه سي بېلېدلای وَلَوِ ادَّعٰى عَلَى الْبَعْضِ بِأَعْيَانِهِمْ أَنَّهُ قَتَلَ وَلِيَّهُ عَمَدًا أَوْ خَطَأً او که ولي له محلې والا وو څخه پر بعضو معیّنو دعویٰ کړې وي چې هغه [بعض معیّن] زما ولي عمداً یا خطاءً قتل کړی دی فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ نو همدغه حکم دی يَدُلُّ عَلَيْهِ إِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ پر همدې باندې دلالت کوي په قدوري [متن] کې د جواب [حکم] اطلاق وَهٰكَذَا الْجَوَابُ فِي الْمَبْسُوْطِ او همدغسې جواب دی په مبسوط کې.

**اللغات**: ﴿لا یتمیزون﴾ د تفعّل له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: جلا کېدل، بېلېدل، علیحده کېدل.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی چې که د مقتول ولي پر ټوله اهل محله د قتل دعوی کړې وي، يا هغه د اهلِ محله پر بعضِ غيرِ معين يا يې پر بعضِ معيّن دعوی کړې ويّ (يعني هغه له محلې والا وو څخه پر بعضو کسانو دعوی کړې وي او هغه بعضي يې متعيّن کړي وي يا يې متعيّن کړي نه وي)، په دې دريو سره صورتونو کې هاغه حکم دی کوم چې مخکې بيان سو يعني پر مدعیٰ عليهم (محلې والا وو) باندې قسامت او ديت دواړه واجب دي برابره دعوی د قتلِ عمد دعوی وي او که د قتلِ خطاء وي؛ پاته سوه په ټوله اهلِ محله وو باندې د دعوې کولو مسئله خو ښکاره ده. همدارنګه کله چې دعوی پر بعضِ غيرِ معيّن وي، نو په دې صورت کې هغه بعضِ غيرِ معين د محلې له نورو کسانو څخه بېلول او متعيّنول ناممکن وي، نو ځکه پر هر يوه به ديت او قسامت واجب وي.

ولو ادّعیٰ إلخ: د دې حاصل دا دی چې که ولي په هغه محلې والا وو کې پر يو معيّن کس دا دعوی کړې وي چې دغه کس زما ورور قتل کړی دی، نو په دې صورت کې هم پر محلې والا وو قسامت او ديت واجبيږي او يوازې پر مدعیٰ عليه (معيّن کس) دا نه واجبيږي؛ ځکه د امام قدوري رَحِمَهُ الله اطلاق پر همدې دلالت کوي چې هغه د باب په شروع کې مطلقاً فرمايلي دي "وإذا وُجِدَ القتيلُ فی محلة لا يعلم من قتله، استحلف خمسون رجلًا منهم"، په دې عبارت کې د ټوله اهل محله يا د بعضِ غير معيّن يا د بعضِ معين هيڅ قيد او تفصيل نسته. لهذا دا خبره څرګنده سوه چې په دې دريو سره صورتونو کې پر محلې والا وو قسامت او ديت دواړه واجب دي، او په مبسوط کې هم دغه حکم ذکر سوی دی يعني پر بعضِ معيّن د دعوې کولو په صورت کې قسامت او ديت واجبيږي. همدا ظاهر روايت دی. خو له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت له دې څخه بغير نقل سوی دی چې هغه به په راروان عبارت کې ذکر سي.

## د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د غيرِ ظاهر الرواية والا قول

وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ فِيْ غَيْرِ رِوَايَةِ الْأُصُوْلِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت [نقل سوی دی] دی په غير د روايت د اُصولو کې أَنَّ فِي الْقِيَاسِ تَسْقُطُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَنِ الْبَاقِيْنَ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ چې د قياس مطابق له پاته محلې والا وو څخه قسامت او ديت ساقطيږي وَيُقَالُ: لِلْوَلِيِّ أَلَكَ بَيِّنَةٌ ؟ او ولي ته به ويل کيږي: آيا ستا لپاره بينه نسته؟ فَإِنْ قَالَ: لَا نو که هغه ووايي: چې نسته يُسْتَحْلَفُ الْمُدَّعٰی عَلَيْهِ عَلٰى قَتْلِهِ يَمِيْنًا وَاحِدَةً نو له مدعیٰ عليه څخه به د هغه پر قتل يو قسم

اخیستل کیږي وَوَجْهُهُ أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ او د دې وجه [دلیل] دا دی چې قیاس د دې [قسم او دیت اخیستلو] انکار کوي لِاحْتِمَالِ وُجُودِ الْقَتْلِ مِنْ غَيْرِهِمْ د دې احتمال په وجه چې قتل به له محلې والا شخه بغیر د بل چا له طرفه سوی وي وَإِنَّمَا عُرِفَ بِالنَّصِّ فِيمَا إِذَا كَانَ فِي مَكَانٍ يُنْسَبُ إِلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِمْ او په نص سره دا [قسامت او دیت] په هغه صورت کي پېژندل سوي دي کله چې مقتول په داسې ځای کي وي چې هغه ځای د مدعیٰ علیهم [اهل محله وغیره] وطرف ته منسوب وي وَالْمُدَّعِي يَدَّعِي الْقَتْلَ عَلَيْهِمْ او مدعي پر هغو د قتل دعویٰ کوي وَفِيمَا وَرَاءَهُ بَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ او له دې ځخه بغیر په بل صورت کي دا پر اصل قیاس باقي دي وَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعَى الْقَتْلَ عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ او دا داسې سوه لکه کله چې هغه [د مقتول ولي] له محلې والا ځخه بغیر پر بل چا د قتل دعویٰ کړې وي.

**اللغات:** ﴿بینة﴾ گواهي. حجت او دلیل.

**تشریح:** له ظاهر روایت ځخه بغیر یو روایت له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله ځخه دا نقل سوی دی چې که د مقتول ولي پر بعض معین دعویٰ کړې وي (یعني د محلې والا وو پر یوه معین کس یا پر ځو معینو کسانو یې د قتل دعویٰ کړې وي). نو په دې صورت کي قیاساً پر ټوله اهل محله وو قسامت او دیت نه واجبیږي. بلکي له مدعیٰ علیه (بعض معین) ځخه بغیر له نورو اهل محله وو ځخه دیت ساقطیږي. او ولي ته به وېل کیږي چې که ستا سره د مدعیٰ علیه په خلاف بینه وي نو هغه پېش کړه! کنې وو وایه. نو که ولي ووایي چې زما سره بینه نسته. نو له مدعیٰ علیه (بعض معین) ځخه به د دې قتل په هکله قسم اخیستل کیږي.

ووجهه إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دغه قول دلیل دا دی چې کله د مقتول ولي پر بعض معین د قتل دعویٰ کړې که. نو بیا له ټولې محلې والا وو ځخه قسم او دیت اخیستل خلاف القیاس دي. ځکه کېدلای سي چې همدې معین کس به هغه مقتول قتل کړی وي یا بل چا به هغه قتل کړی او دلته به یې غورځولی وي. لهذا ټولې محلې والا مجرمان ګڼل او پر ټولو قسامت او دیت واجبول خلاف القیاس دی. او کوم نص چې د قسامت او دیت واجبونکی دی. هغه نص پر هغه صورت محمول دی کله چې مقتول کس د مدعیٰ علیه په محله کي مېندل سوی وي او د مقتول ولي پر هغو د قتل دعویٰ هم کوي. او ځرنګه چې دلته د مدعي دعویٰ پر ټوله محلې والا وو نه ده بلکي پر بعض معین ده. نو ځکه دا صورت به له مورد نص ځخه خارج وي او دلته به حکم پر اصل قیاس باقي پاته وي. یعني د

قياس مطابق به پر ټوله اهل محله وو قسامت او ديت نه واجبيږي. د دې مثال داسي دی لکه د مقتول ولي چي له اهل محله څخه بغير پر بل چا د قتل دعوىٰ کړې وي. نو په دې صورت کي هم پر اهل محله وو قسامت او ديت نه واجبيږي. همداسي به په مذکوره مسئله کي هم پر هغو قسامت او ديت نه واجبيږي.

## د قسامت او ديت د واجبېدلو په هکله د استحسان حکم

وَفِي الِاسْتِحْسَانِ تَجِبُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ او په استحسان کي پر محلې والا وو قسامت او ديت واجبيږي لِأَنَّهُ لَا فَصْلَ فِي إِطْلَاقِ النُّصُوصِ بَيْنَ دَعْوَى وَدَعْوَى ځکه د نصوصو په اطلاق کي د يوې دعوې او بلي دعوې تر مينځ هيڅ فرق نسته فَنُوجِبُهُ بِالنَّصِّ لَا بِالْقِيَاسِ نو ځکه موږ په نص سره دا [قسامت او ديت] واجبوو. نه په قياس سره بِخِلَافِ مَا إِذَا ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ په خلاف د هغه صورت کله چي ولي له دوی [اهل محله] څخه بغير پر بل يوه دعوىٰ کړې وي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ نَصٌّ ځکه چي په دې سلسله کي هيڅ نسته فَلَوْ أَوْجَبْنَاهُمَا نو که موږ دا دواړه [قسامت او ديت] واجب کړو لَأَوْجَبْنَاهُمَا بِالْقِيَاسِ نو موږ به هغوی په قياس سره واجبوو وَهُوَ مُمْتَنِعٌ حال دا چي دا ممنوع دي.

**اللغات:** ﴿فصل﴾ د دې لفظ يوه معنىٰ ده: فرق او توپير.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي استحساناً په مذکوره دريو سره صورتونو کي پر اهل محله وو قسامت او ديت دواړه واجبيږي: ځکه په کومو نصوصو کي چي قسامت او ديت دواړه يو ځای جمع ذکر سوي دي هغه ټوله مطلق نصوص دي يعني په هغوی کي دا قيد او تفصيل نسته چي که په ټوله اهل محله وو باندي د قتل دعوىٰ وي نو دا حکم دی او که په بعضي اهل محله وو باندي د قتل دعوىٰ وي نو دا حکم دی. بلکي على الاطلاق يو حکم دی يعني د قسامت او ديت وجوب. لهذا کله چي په نصوصو کي على الاطلاق قسامت او ديت دواړه واجب کړل سوي دي. نو موږ هم په هر يوه صورت کي دواړه واجب کړي دي.

د دې په خلاف که د مقتول ولي له اهل محله وو څخه بغير پر بل چا د قتل دعوىٰ کړې وي. نو په دې صورت کي موږ هم د دې قائل يو چي پر اهل محله وو قسامت او ديت نه واجبيږي: ځکه په دې صورت کي پر اهل محله وو د قسامت او ديت د واجبېدلو په هکله هيڅ نص نسته. اوس که په دې صورت کي هم پر اهل محله وو قسامت او ديت واجب کړل سي. نو ښکاره خبره ده چي د هغه واجبول

به په قیاس سره وي او په قیاس سره د دې شیانو واجبول ممنوع دي (په بله وینا دا چې قیاس دلته باطل دی، ځکه مقیس علیه خپله خلاف القیاس دی).

**له محلي والا څخه بغیر پر بل چا د قتل د دعوې کولو حکم**

ثُمَّ حُكْمُ ذٰلِكَ أَنْ يَثْبُتَ مَا ادَّعَاهُ إِذَا كَانَ لَهُ بَيِّنَةٌ بیا د دې حکم دا دی چې مدعي د کوم شي دعوی کړې ده هغه دعوی ثابته سي کله چې د مدعي لپاره بینه وي وَإِنْ لَمْ تَكُنْ او که بینه نه وي اِسْتَحْلَفَهُ يَمِيْنًا وَاحِدَةً نو مدعي به له مدعیٰ علیه څخه یو قسم اخلي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقَسَامَةٍ ځکه چې دا قسامت نه دی لِانْعِدَامِ النَّصِّ وَامْتِنَاعِ الْقِيَاسِ د نص د نشتوالي او د قیاس د ممتنع والي په وجه ثُمَّ إِنْ حَلَفَ بیا که مدعیٰ علیه قسم واخلي بَرِئَ نو هغه بري کیږي وَإِنْ نَكَلَ او که [له قسم څخه] انکار وکړي وَالدَّعْوٰى فِي الْمَالِ حال دا چې دعوې د مال په هکله وي ثَبَتَ بِهِ نو د انکار په وجه دعوی ثابتیږي وَإِنْ كَانَ فِي الْقِصَاصِ او که دعوی په قصاص کي وي فَهُوَ عَلَى اخْتِلَافٍ مَضٰى فِي كِتَابِ الدَّعْوٰى نو دا پر هغه اختلاف دی کوم چې په کتابُ الدعویٰ کي تېر سو.

**اللغات:** ﴿مضی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تېر بدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې کله مدعي (یعني د مقتول ولي) له محلي والا څخه بغیر پر بل چا قتل دعوی کړې وي، نو د دې څه حکم دی؟، فرمایي چې که د مدعي سره بینه وي، نو په دې بینه سره د مدعي دعوی ثابتیږي، او که بینه ور سره نه وي، نو مدعي به له مدعیٰ علیه څخه یو قسم اخلي او پر همدې یوه قسم به اکتفا کیږي؛ ځکه دا قسامت نه دی، ځکه چې د قسامت لپاره نص ته ضرورت دی او نص دلته معدوم دی او په قیاس سره د قسامت ثبوت ممتنع او محال دی.

ثم إن حلف إلخ: فرمایي که چیري مدعیٰ علیه قسم واخلي، نو هغه له قصاص او دیت دواړو څخه بري کیږي او پر هغه هیڅ ضمان نه لازمیږي، او که هغه له قسم څخه انکار وکړي نو د دې دوه صورتونه دي: ① که دعوی د مال وي، نو مدعیٰ علیه د انکار په وجه (د مدعي لپاره) مال ثابتیږي، ② او که دعوی د قصاص وي، نو په دې کي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز قصاص واجبیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز قصاص خو نه واجبیږي، لیکن دیت واجبیږي، لکه څرنګه چې په کتابُ الدعویٰ کي د دې تفصیل تېر سوی دی.

## که محلې والا پنځوس کسان نه پوره کیږي نو د قسم طریقه

قَالَ: وَإِنْ لَمْ تَكْمُلْ أَهْلُ الْمَحَلَّةِ فرمايي: او که مخلې والا [پنځوس] پوره نه سي كُرِّرَتِ الْأَيْمَانُ عَلَيْهِمْ حَتّٰى تَتِمَّ خَمْسِيْنَ نو پر هغو به قسمونه مکررول کیږي تر دې چي پنځوس پوره سي لِمَا رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رضي الله عنه لَمَّا قَضٰى فِي الْقَسَامَةِ ځکه روایت سوی دی چي کله حضرت عمر رضي الله عنه د قسامت فیصله کوله وَوَافٰى إِلَيْهِ تِسْعَةٌ وَأَرْبَعُوْنَ رَجُلًا نو هغه ته نهه څلوېښت [۴۹] سړي راغلل فَكَرَّرَ الْيَمِيْنَ عَلٰى رَجُلٍ مِنْهُمْ حَتّٰى تَمَّتْ خَمْسِيْنَ نو حضرت عمر رضي الله عنه له هغوی [۴۹ سړیو] څخه پر یوه کس قسم مکرر کړی تر دې چي پنځوس پوره سول ثُمَّ قَضٰى بِالدِّيَةِ بیا حضرت عمر رضي الله عنه د دیت فیصله وکړه وَعَنْ شُرَيْحٍ وَالنَّخَعِيِّ مِثْلُ ذٰلِكَ او له حضرت شریح او حضرت نخعي رَحِمَهُمَا الله څخه هم داسي نقل سوي دي وَلِأَنَّ الْخَمْسِيْنَ وَاجِبٌ بِالسُّنَّةِ او ځکه چي پنځوس په سنت [حدیث] سره ثابت دي فَيَجِبُ إِتْمَامُهَا مَا أَمْكَنَ نو ځکه د هغه پوره کول واجب دي تر څو چي ممکنه وي وَلَا يُطْلَبُ فِيْهِ الْوُقُوْفُ عَلَى الْفَائِدَةِ او په دې کي به پر فایدې واقف کېدل نه طلب کول کیږي لِثُبُوْتِهَا بِالسُّنَّةِ ځکه چي پنځوس په سنت سره ثابت دي ثُمَّ فِيْهِ اِسْتِعْظَامُ أَمْرِ الدَّمِ بیا په دې کي د وینې [خون] د امر تعظیم هم سته فَإِنْ كَانَ الْعَدَدُ كَامِلًا. نو که [د پنځوسو] شمېر پوره وي فَأَرَادَ الْوَلِيُّ أَنْ يُكَرِّرَ عَلٰى أَحَدِهِمْ او ولي اراده وکړي چي له دوی څخه پر یوه قسم مکرر کړي فَلَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو ولي ته دا حق نسته لِأَنَّ الْمَصِيْرَ إِلَى التَّكْرَارِ ضَرُوْرَةُ الْإِكْمَالِ ځکه د تکرار وطرف ته رجوع کول [د پنځوسو شمېر] د پوره کولو د ضرورت په خاطر دي.

**اللغات:** ﴿لم تکمل﴾ د جحد صیغه ده، له سمع، نصر او کرُم ټولو بابونو څخه راځي: پوره کېدل. ﴿کُرّرت﴾ د تفعیل له بابه د ماضي صیغه ده: مکرر کول. دوباره کول. ﴿وافیٰ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي: راتلل. ناڅاپه راتلل. پوره حق ورکول. ﴿استعظام﴾ د استفعال مصدر دی. د دې باب یوه معنیٰ ده: لوی ګڼل (د عظمت په نظر ورته کتل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د محلې والا شمېر له پنځوسو څخه کم وي. نو د دې شمېر د پوره کولو لپاره به له محلې والا څخه مکرّر (دوباره) قسم اخیستل کیږي: په دې هکله اول دلیل دا

روایت دی چي کله حضرت عمر ﷺ ته د قسامت د فیصلې په وخت کي یو کم پنځوس کسان حاضر سول، نو حضرت عمر ﷺ له هغو څخه تر قسم اخیستلو وروسته د هغو له یوه کس څخه دوباره قسم واخیستی چي پنځوس قسمونه پوره سي، همداسي له قاضي شریح رَحِمَهُ الله او له ابراهیم نخعي رَحِمَهُ الله څخه هم د قسم د تکرار روایات نقل سوي دي کوم چي په بنایه وغیره کي په تفصیل سره ذکر سوي دي. (بنایه ۱۲/ ۴۲)

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چي د پنځوسو شمېر په سنت یعني په حدیث سره ثابت دی. لهذا حتی الامکان د هغه پوره کول واجب دي چي په حدیث عمل وسي. او په حدیث د عمل کولو په وجه به دې خبري ته هیڅ پاملرنه او توجه نه کیږي چي "د قسم په تکرار سره تحصیل د حاصل لازمیږي او په دې کي هیڅ فایده نسته"؛ ځکه د دې فایده د حدیث اتباع ده او د وینې (خون) د امر تعظیم دی، او همدا اهم فوائد دي.

فإن كان العدد كاملًا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که محلې والا پنځوس کسان پوره وي او بیا د مقتول ولي په هغوی کي له یوه څخه مکرر قسم اخیستل وغواړي، نو ولي ته د دې حق او اختیار نسته: ځکه د قسم تکرار د ضرورت په خاطر ثابت دی چي د پنځوسو شمېر پوره سي. او کوم شی چي د ضرورت پر بناء ثابت وي د هغه په هکله قاعده دا ده چي هغه صرف د ضرورت په اندازه ثابتیږي. لهذا کله چي دلته پنځوس کسان پوره دي او هیڅ ضرورت نسته، نو ځکه بلا وجه به قسم نه مکرر ول کیږي.

## پر نا اهله کسانو قسامت نسته

قَالَ: وَلَا قَسَامَةَ عَلٰى صَبِيٍّ وَلَا مَجْنُوْنٍ فرمایي: او پر بچي او لېوني قسامت نسته لِأَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْ أَهْلِ الْقَوْلِ الصَّحِيْحِ ځکه دوی دواړه د صحیح قول اهل نه دي وَالْيَمِيْنُ قَوْلٌ صَحِيْحٌ حال دا چي قسم صحیح قول دی. قَالَ: وَلَا امْرَأَةٍ وَلَا عَبْدٍ فرمایي: او نه پر ښځي او غلام قسامت سته لِأَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْ أَهْلِ النُّصْرَةِ ځکه دوی دواړه د نصرت [مدد] کولو له اهل څخه نه دي وَالْيَمِيْنُ عَلٰى أَهْلِهَا حال دا چي قسم پر هغه چا دی چي د نصرت اهل وي.

**اللغات:** ﴿صبي﴾ بچی. هغه کوچنی کوم چي د هلک والي تر وخته رسېدلی نه

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي پر بچي، لېوني، ښځي او غلام باندي قسامت نسته. یعني د دې کسانو قسامت له اعتبار نسته: ځکه قسم صحیح قول ته وایي، همدارنګه قسامت پر هغه چا

واجبيږي کوم چې د مدد کولو اهليت لري، او دلته اول دوه يعني بچې او لېونی د قول صحيح او صحيح خبري تکلم نه سي کولای، او آخري دوه (ښځه او غلام) که څه هم د قول صحيح تکلم کولای سي لېکن د مقتول کس وغيره مدد نه سي کولای. نو ځکه په قسامت کي د دوی قسم لره اعتبار نسته.

## په کومو صورتونو کي پر محلي والا وو قسامت او ديت نسته؟

قَالَ: وَإِنْ وُجِدَ مَيِّتًا لَا أَثَرَ بِهِ فرمايي: او که څوک مړ وميندل سي چې پر هغه [د قتل] اثر نه وي فَلَا قَسَامَةَ وَلَا دِيَةَ نو نه قسامت سته او نه ديت سته لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقَتِيلٍ ځکه چې هغه مقتول نه دی إِذِ الْقَتِيلُ فِي الْعُرْفِ مَنْ فَاتَتْ حَيَاتُهُ بِسَبَبٍ يُبَاشِرُهُ حَيٌّ ځکه په عرف عام کي مقتول هغه کس دی چې ژوندي يې په داسي سبب سره فوت سوی وي کوم چې ژوندي کس ترسره کړی وي وَهٰذَا مَيِّتٌ حَتْفَ أَنْفِهِ او دا کس په خپل [طبعي] مرګ مړ سوی دی وَالْغَرَامَةُ تَتْبَعُ فِعْلَ الْعَبْدِ او تاوان د بنده د فعل تابع دی وَالْقَسَامَةُ تَتْبَعُ احْتِمَالَ الْقَتْلِ او قسامت د قتل د احتمال تابع دی ثُمَّ يَجِبُ عَلَيْهِمُ الْقَسَمُ بيا پر هغو قسم واجبيږي فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ بِهِ أَثَرٌ يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى كَوْنِهِ قَتِيلًا نو ضروري ده چې پر مړي داسي اثر [نښه] وي چې په هغه سره د مړي پر مقتول کېدلو دليل ونيول سي وَذٰلِكَ بِأَنْ يَكُونَ بِهِ جِرَاحَةٌ أَوْ أَثَرُ ضَرْبٍ أَوْ خَنْقٍ او هغه اثر دا دی چې پر مړي زخم وي يا د وهلو يا د خپه کولو اثر وي وَكَذَا إِذَا كَانَ خَرَجَ الدَّمُ مِنْ عَيْنِهِ أَوْ أُذُنِهِ او همدارنګه کله چې د هغه له سترګي يا غوږ څخه وينه وتلې وي لِأَنَّهُ لَا يَخْرُجُ مِنْهَا إِلَّا بِفِعْلٍ مِنْ جِهَةِ الْحَيِّ عَادَةً ځکه له دې دواړو څخه عادتاً وينه نه وځي مګر د ژوندي کس له طرفه ديو فعل په وجه بِخِلَافِ مَا إِذَا خَرَجَ مِنْ فِيهِ أَوْ دُبُرِهِ أَوْ ذَكَرِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې د مړي له خولې يا د هغه له دُبر يا ذکر څخه وينه وتلې وي لِأَنَّ الدَّمَ يَخْرُجُ مِنْ هٰذِهِ الْمَخَارِجِ عَادَةً بِغَيْرِ فِعْلِ أَحَدٍ ځکه له دې لارو څخه عادتاً وينه وځي بغير د يو چا له فعل څخه وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الشَّهِيدِ او موږ دا په باب الشهيد کي ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿حتف أنفه﴾ طبعي مرګ. په خپل مرګ. (يعني په قتل سره نه دی مړ سوی. بلکي په طبعي مرګ سره د هغه ساه وتلې ده). ﴿غرامة﴾ جرمانه. تاوان. ﴿خنق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: د نصر ماضي ده:

غاړه خپه کول. تر ستوني نيول. ﴿القَسَم﴾ دالله تعالیٰ قسم. جمع: أَقْسَام. ﴿أثر﴾ د دې لفظ له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: نښه (نښان). علامت. ﴿دُبر﴾ د شا لاره. مقعد (کونه).

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل واضح او آسانه دی چې د هغه مختصره تشريح دا ده چې که په يو محله کې داسې مړی وميندل سي چې د هغه پر بدن د قتل. ضرب او خنق هيڅ اثر نه وي او نه د هغه له سترګې يا غوږ څخه وينه وتلې وي. نو پر هغه محلې والا وو نه قسامت واجبيږي او نه ديت؛ ځکه د قسامت او ديت تعلق د مقتول سره دی او دا کس مقتول نه دی: ځکه مقتول هغه کس ته وايي چې په داسې سبب مړ سوی وي چې هغه سبب ژوندي کس ترسره کړی وي (يا په بله وينا دا چې ژوندي کس هغه وژلی وي). او په مذکوره مسئله کې دغه کس په خپل مرګ مړ سوی دی او په خپل مرګ مړ کېدونکی کس نه پر چا د قسامت مستحق کيږي او نه د تاوان: ځکه تاوان د بنده د فعل په وجه واجبيږي او دلته د بنده فعل معدوم دی. همدارنګه (پر اهل محله وغيره باندې) قسامت د قتل د احتمال په وجه واجبيږي (چې کېدای سي دا کس به دغه محلې والا وو يا نورو قتل کړی وي) او د قتل د احتمال لپاره د مړي پر بدن د قتل يو نښه موجود دل ضروري دي. يعني د زخم، يا د وهلو وغيره نښه. يا د مړي له سترګې يا غوږ څخه وينه وتل ضروري دي: ځکه دا شيان د بنده له فعل څخه بغير نه واقع کيږي. لهذا که چيري له دې نښو څخه يو نښه وي. نو قسامت او ديت به واجبيږي. کنې نه به واجبيږي. همدا وجه ده چې که د مړي له خولې يا د هغه د شا يا د مخ له لاري (دُبر او ذکر) څخه وينه وتلې وي. نو په دې صورت کې پر محلې والا وو قسامت نسته: ځکه له دې ځايو څخه د چا له فعل او حرکت څخه بغير هم وينه وځي. لهذا دا وينه به د قتل نښه نه وي او په دې سره به مړی مقتول نه ګڼل کيږي او کله چې داسې مړی مقتول نه دی. نو ځکه پر محلې والا وو به نه قسامت واجبيږي او نه ديت. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې مخکې په "باب الشهيد" کې موږ د دې بيان کړی دی.

## په کومو صورتونو کې پر محلې والا وو قسامت او ديت سته؟

وَلَوْوُجِدَ بَدَنُ الْقَتِيْلِ او که د مقتول [بشپړ] بدن پيدا سي أَوْأَكْثَرُمِنْ نِصْفِ الْبَدَنِ يا له نيمايي بدن څخه زيات بدن [پيدا سي] أَوِالنِّصْفُ وَمَعَهُ الرَّأْسُ يا نيم بدن د سر سره [پيدا سي] فِيْ مَحَلَّةٍ په يوه محله کې فَعَلٰى أَهْلِهَا الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ نو پر هغه محلې والا وو قسامت او ديت [واجب] دي وَإِنْ وُجِدَ نِصْفُهُ مَشْقُوْقًا بِالطُّوْلِ او که د هغه نيم بدن پيدا سي کوم چې په اوږدول سره څيرل سوی وي أَوْوُجِدَ أَقَلُّ مِنَ النِّصْفِ وَمَعَهُ الرَّأْسُ يا له نيمايي بدن څخه کم د سر سره پيدا سي أَوْوُجِدَ يَدُهُ أَوْ

رِجْلُهُ أَوْ رَأْسُهُ يا د مقتول لاس يا پښه يا سر پيدا سي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمْ نو پر هغو هيڅ شی نسته لِأَنَّ هٰذَا حُكْمٌ عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ ځکه دا داسي حکم دی کوم چي موږ په نص سره پېژندلی دی وَقَدْ وَرَدَ بِهِ فِي الْبَدَنِ او نص د دې حکم په هکله په بدن کي وارد سوی دی إِلَّا أَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ تَعْظِيمًا لِلْآدَمِيِّ خو د انسان د تعظيم په خاطر [د هغه] اکثره لره حکم د کُل دی.

**اللغات:** ﴿مشقوق﴾ د نصر له بابه مفعول دی: څیرل سوی. دوه ځایه کړل سوی. ﴿آدمي﴾ انسان.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که په یو محله کي د مقتول ټوله بدن، یا له نیم بدن څخه زیات بدن یا نیم بدن د سر (رأس) سره ومیندل سي. نو په دې ټولو صورتونو کي پر هغه محلې والا وو قسامت او دیت واجبیږي، د دې په خلاف که د مقتول داسي نیم بدن ومیندل سي کوم چي په اوږدول پرېکړل سوی وي، یا له نیم بدن څخه کمه حصه د سر (رأس) سره ومیندل سي. یا د مقتول لاس یا پښه یا سر ومیندل سي. نو په دې صورتونو کي پر محلې والا وو قسامت او دیت نه واجبیږي؛ ځکه د قسامت او دیت وجوب خلاف القیاس په نص سره ثابت دی. او کوم څه چي خلاف القیاس ثابت وي هغه له مورد نص څخه نه متجاوز کیږي، او مورد نص ټوله بدن دی، نو ځکه د نیم بدن او د بعضې حصې په صورتونو کي پر محلې والا وو قسامت او دیت نه واجبیږي لیکن د اکثره بدن د وجود په صورت کي پر محلې والا وو قسامت واجبیږي؛ ځکه د انسان د تعظیم په خاطر د "للأکثر حکم الکل" پر بناء اکثر لره د کُل درجه ورکول سوې ده، نو څرنګه چي په یو محله کي د مقتول د ټوله بدن د پیدا کېدلو په صورت کي پر محلې والا وو قسامت او دیت واجبیږي. همداسي به د اکثره بدن د پیدا کولو په وجه هم پر هغو قسامت او دیت واجبیږي.

## د قسامت واجبېدلو او نه واجبېدلو په هکله قاعدهٔ کلیه

بِخِلَافِ الْأَقَلِّ په خلاف د اقل [کمي حصې] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِبَدَنٍ وَلَا مُلْحَقٍ بِهِ ځکه اقل نه بدن دی او نه د بدن سره ملحق دی فَلَا تَجْرِي فِيهِ الْقَسَامَةُ نو ځکه په هغه کي به قسامت نه جاري کیږي وَلِأَنَّا لَوِ اعْتَبَرْنَاهُ او ځکه که چیري موږ د اقل اعتبار وکړو تَتَكَرَّرُ الْقَسَامَتَانِ وَالدِّيَتَانِ بِمُقَابَلَةِ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ نو د یوه نفس په مقابله کي به دوه قسامتونه او دوه دیتونه مکرّر [واجب] سي وَلَا تَتَوَالَيَانِ حالانکي دا دواړه [قسامت او دیت] نه پرلپسې کیږي وَالْأَصْلُ فِيهِ أَنَّ الْمَوْجُودَ الْأَوَّلَ إِنْ كَانَ بِحَالٍ او په دې باره کي قاعدهٔ کلیه دا ده چي اوله پیدا سوې حصه که په داسي حال سره وي لَوْ وُجِدَ الْبَاقِي تَجْرِي فِيهِ

الْقَسَامَةُ چي که پاته حصه پيدا سي نو په هغه [پاته حصه] کي قسامت جاري کيږي لَا تَجِبُ فِيْهِ نو په هغه [موجود اول] کي قسامت نه واجبيږي وَإِنْ كَانَ بِحَالٍ لَوْ وُجِدَ الْبَاقِي لَا تَجْرِي فِيْهِ الْقَسَامَةُ او که هغه [موجود اول] په داسي حال سره وي چي که پاته حصه پيدا سي نو په هغه [پاتهِ حصه] کي قسامت نه جاري کيږي تَجِبُ نو قسامت واجبيږي وَالْمَعْنٰى مَا أَشَرْنَا إِلَيْهِ او وجه هغه ده کوم ته چي موږ اشاره وکړه [أن تكرار القسامة والدية في نفس واحدة غير مشروع] وَصَلَاةُ الْجِنَازَةِ فِيْ هٰذَا تَنْسَحِبُ عَلٰى هٰذَا الْأَصْلِ او د جنازې لمونځ په دې هکله پر همدغه قاعدهٔ کليه متفرع کيږي لِأَنَّهَا لَا تَتَكَرَّرُ ځکه چي د جنازې لمونځ نه مکرر کيږي.

**اللغات:** ﴿لا تتواليان﴾ دَ تفاعل له بابه د تثنيه غائب نفي صيغه ده: پرلپسې کېدل. ﴿تنسحب﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث صيغه ده: کشېدل. مراد: متفرع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په يو محله کي د مقتول د بدن کمه حصه وميندل سي، نو پر محلي والا وو قسامت او ديت ځکه نه واجبيږي چي اقلّ حصه خو نه بدن دی او نه هغه د بدن سره ملحق ده او قسامت په بدن کي جاري کيږي، نو ځکه په اقلّ کي قسامت نه جاري کيږي. او په اقلّ کي د قسامت نه واجبېدلو يوه وجه دا هم ده چي که موږ په اقلّ حصه کي قسامت او ديت واجب کړو او بيا د بدن د اکثره حصې د پيدا کېدلو په وخت کي هم قسامت او ديت واجب کړو، نو د يوه نفس په مقابله کي به دوه قسامتونه او دوه ديتونه واجب سي، حال دا چي پرلپسې دوه قسامتونه او ديتونه واجبېدل د نصِّ خلاف دي، نو په دې وجه هم په هغه کي قسامت او ديت نه واجبيږي.

والأصل إلخ: له دې ځايه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله قاعدهٔ کليه بيانوي فرمايي چي د مقتول د بدن کومه حصه چي ميندل سوې وي. که چيري هغه په دې اندازه وي چي که له هغه شخصه بغير د بدن ما بقي (ورکه) حصه وميندل سي نو په هغه (ما بقي) کي قسامت جاري کېدلای سي، نو په اوله ميندل سوې حصه کي به قسامت نه جاري کيږي، او که اوله حصه په دې اندازه وي چي په ما بقي حصه کي قسامت نه سي جاري کېدلای، نو په اوله حصه کي به قسامت جاري کيږي.

د دغه قاعدې حاصل دا دی چي قسامت صرف په يوه حصه کي جاري کيږي او په هغه کي هيڅکله تکرار نه کيږي؛ ځکه يوازي په يوه مقتول او په يوه نفس کي تکرار مشروع نه دی. په "والمعنى ما أشرنا إليه" سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله همدې ته اشاره کړې ده.

وصلاة الجنازة إلخ: د دې حاصل دا دی چې د جنازې د لمانځه حکم هم پر دغه قاعده متفرع دی. یعني د مړي د بدن کومه حصه چې میندل سوې وي، که چیري هغه په دې اندازه وي چې له هغه څخه بغیر د بدن پاته (ورکه) حصه د جنازې د لمانځه قابله وي او پر هغه د جنازې لمونځ کول صحیح وي. نو پر اوله میندل سوې حصه به د جنازې لمونځ نه کیږي، او که پاته حصه د جنازې د لمانځه قابله نه وي او لمونځ پرې کول صحیح نه وي، نو پر اوله حصه به د جنازې لمونځ کیږي؛ ځکه چې د جنازې لمونځ هم مکرّر نه کیږي.

## د جنین یا مړه بچي په صورت کي د قسامت او دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ فِيهِمْ جَنِينٌ أَوْ سِقْطٌ لَيْسَ بِهِ أَثَرُ الضَّرْبِ او که په اهلِ محلّه کي یو جنین یا نا بشپړ بچی ومیندل سي چې پر هغه د وهلو اثر [نښه] نه وي فَلَا شَيْءَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ نو پر محلې والا وو هیڅ شی نسته لِأَنَّهُ لَا يَفُوقُ الْكَبِيرَ حَالًا ځکه جنین د حالت په اعتبار د لوی کس څخه بالا نه دی وَإِنْ كَانَ بِهِ أَثَرُ الضَّرْبِ وَهُوَ تَامُّ الْخَلْقِ او که پر هغه د وهلو اثر وي او هغه بشپړ خلقت والا وي وَجَبَتِ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَيْهِمْ نو پر اهلِ محلّه وو قسامت او دیت واجبیږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ تَامَّ الْخَلْقِ يَنْفَصِلُ حَيًّا ځکه ښکاره همدا ده چې بشپړ خلقت والا [له مور څخه] ژوندی جلا کیږي وَإِنْ كَانَ نَاقِصَ الْخَلْقِ او که هغه ناقص [نا بشپړ] خلقت والا وي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمْ نو پر هغو هیڅ شی نسته لِأَنَّهُ يَنْفَصِلُ مَيِّتًا لَا حَيًّا ځکه ناقص خلقت والا مړ [له مور څخه] جلا کیږي، نه ژوندی.

**اللغات:** ﴿جنین﴾ د مور په نس کي موجود بچی. یعني کوچنی چې تر څو د مور په نس کي وي هغه ته "جَنِین" وایي. ﴿سِقْط﴾ سَقط او سُقط: نا بشپړ بچی کوم چې تر وخت مخکي ساقط سي، یعني هغه کوچنی چې محض خلقت یې ښکاره سوی وي او د مور له نس څخه ولوېږي. ﴿لا یفوق﴾ د نصر له بابه د نفي صیغه ده: پورته کېدل، بالا کېدل. ﴿تام الخلق﴾ بشپړ خلقت والا، مکمل جسم والا. ﴿ینفصل﴾ د انفعال د باب مضارع ده: جلا کېدل، بېلېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که په یو محله کي داسي مړ جنین یا نا بشپړ کوچنی (سقط) ومیندل سي چې د هغه پر بدن د وهلو اثر وغیره نه وي، نو پر هغه محلې والا وو قسامت او دیت نه واجبیږي؛ ځکه د جنین او سقط بدني حالت د لوی کوچني او سړي له حالت څخه کمزوری وي او د لوی په نسبت په هغه کي دا احتمال زیات وي چې په خپل مرګ به مړ سوی وي. او دا مُسلّمه خبره ده

چي که لوی کوچنی یا سړی مړ ومیندل سي او د هغه پر بدن د وهلو اثر وغیره نه وي. نو پر محلې والا وو هیڅ شی نه واجبیږي. نو ځکه د جنین او سقط په صورت کي به په درجه اولی پر هغو هیڅ شی نه واجبیږي.

ها! که چیري د جنین پر بدن د وهلو اثر وي او هغه کامل خلقت والا وي. نو په دې صورت کي پر محلې والا وو قسامت او دیت واجبیږي: ځکه اوس ښکاره همدا ده چي دا تام الخلق بچی به له خپلي مور څخه ژوندی بېل سوی او پیدا سوی وي او بیا به دیو چا د وهلو او وار کولو وجه هغه مړ سوی وي ځکه چي د هغه پر بدن د وهلو او وژلو آثار سته. نو ځکه پر محلې والا وو د هغه دیت واجبیږي.

او که هغه جنین ناقص خلقت والا وي. نو پر محلې والا وو هیڅ شي نه واجبیږي که څه هم د هغه پر بدن د وهلو اثر موجود وي: ځکه د ناقص الخلق کېدلو په وجه غالب گومان همدا دی چي دا بچی به د مور له نس څخه مړ پیدا سوی وي او د محلې یو کس یا بل چا به هغه وژلی نه وي او دلته به یې غورځولی وي.

## که مقتول پر چارپای ومیندل سي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيلُ عَلَى دَابَّةٍ يَسُوقُهَا رَجُلٌ فرمایي: او کله چي مقتول پر یو چارپای ومیندل سي او یو سړی هغه چارپاری [د شا لخوا] شړي فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ دُونَ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ نو دیت د هغه پر عاقله وو دی. نه پر محلې والا وو لِأَنَّهُ فِي يَدِهِ ځکه چي مقتول د هغه [سائق] په قبضه کي دی فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ فِي دَارِهِ نو داسي سو لکه مقتول چي د هغه په کور کي وي وَكَذَا إِذَا كَانَ قَائِدَهَا أَوْ رَاكِبَهَا او همداسي [حکم] دی کله چي هغه د چارپای کشونکی وي یا پر چارپای سنپور وي فَإِنِ اجْتَمَعُوا بیا که دا کسان [سائق. قائد او راکب] سره جمع سي فَعَلَيْهِمْ نو دیت پر دوی ټولو [واجب] دی لِأَنَّ الْقَتِيلَ فِي أَيْدِيهِمْ ځکه چي مقتول د دوی په قبضه کي دی فَصَارَ كَمَا إِذَا وُجِدَ فِي دَارِهِمْ نو داسي سو لکه مقتول چي د دوی په کور کي ومیندل سي.

**اللغات:** ﴿دابة﴾ چارپای (سپارلي). څاروی. ﴿يسوق﴾ د نصر له بابه د مضارع صیغه ده: چارپای د شا لخوا شړل (مشه کول). بیول. ﴿عاقلة﴾ د قاتل متعلقین او نژدې قریبان او قومیان (خاندان والا). ﴿قائد﴾ د نصر د باب فاعل دی: کشونکی. یعني د مخ لخوا د چارپای کشونکی او بیونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړي د محلې سره چارپای (یامثلاً موټر) روان کړی وي او پر هغه چارپاي (یاموټر کي) مقتول ومیندل سي، نو د مقتول دیت د سائق (بېونکي) پر عاقله وو دی، نه پر محلې والا وو: ځکه مقتول کس د سائق په قبضه کي دی. لهذا د هغه دیت به د سائق عاقله اداء وي. نه محلې والا . د دې مثال داسي دی لکه دیسائق په خپل کور کي چي مقتول ومیندل سي. نو په دې صورت کي هم د سائق پر عاقله وو دیت واجبیږي او پر محلې والا وو نه واجبیږي.

وکذا إلخ: فرمايي کوم حکم چي د سائق دی یعني هغه کس کوم چي د شالخوا په چارپای پسې وي، هغه حکم د قائد هم دی کوم چي د مخ لخوا چارپای کشوي او هغه حکم د سپاره کس هم دی.

فإن اجتمعوا إلخ: د دې حاصل دا دی چي کـه د چارپـای سره یو سائق وي او بل قائد وي او بل پر چارپـای سپور (راکب) وي، بیا پر هغه چارپـای یـو مقتـول ومیـنـدل سي، نـو پـر دوی ټولـو دیـت واجبیږي: ځکه مقتول د دوی ټولو په قبضه کي دی، لهذا څرنګه چي په هغه صورت کي پر دوی دیت واجب دی چي مقتول د دوی په کورو کي میندل سوی وي، نو همداسي به د دوی په قبضه کي د مقتول د موجودېدلو په صورت کي هم پر دوی د مقتول دیت واجبیږي.

### د دوو کلو او آبادیو تر مینځ پر چارپای د مقتول میندل کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ مَرَّتْ دَابَّةٌ بَيْنَ الْقَرْيَتَيْنِ وَعَلَيْهَا قَتِيلٌ فرمايي: او که یو چارپای د دوو کلو تر مینځ تېر سي او پر هغه یو مقتول [اینښول سوی] وي فَهُوَ عَلَى أَقْرَبِهِمَا نو دیت له هغوی دواړو څخه پر نژدې کلي والا [واجب] دی لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أُتِيَ بِقَتِيلٍ وُجِدَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ [1] ځکه روایت سوی دی چي نبي ﷺ ته یو داسي مقتول راوړل سو کوم چي د دوو کلو تر مینځ میندل سوی وو فَأَمَرَ أَنْ يُذْرَعَ نو نبي ﷺ د ګز کولو [ګزولو] حکم وکړی وَعَنْ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّهُ لَمَّا كُتِبَ إِلَيْهِ فِي الْقَتِيلِ الَّذِي وُجِدَ بَيْنَ وَادِعَةَ وَأَرْحَبَ او له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی کله چي دوی ته د هغول مقتول په هکله خط لیکل سوی وو کوم چي د [همدان د دوو قبیلو] وادعه او أرحب تر مینځ میندل سوی وو كَتَبَ بِأَنْ يَقِيسَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ نو حضرت عمر رضي الله عنه ولیکل چي د دواړو کلو مینځ دې اندازه کړی سي فَوُجِدَ الْقَتِيلُ إِلَى وَادِعَةَ أَقْرَبَ نو مقتول وادعه ته زیات نژدې ومیندل سو فَقَضَى عَلَيْهِمْ بِالْقَسَامَةِ

[1] تخریج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، كتاب القسامة، باب ما روي في القتيل يوجد بين قريتين، حديث رقم:۱۶۵۳۰.

نو حضرت عمر ﷛ پر هغو [اهل وادعه] باندي د قسامت فیصله وکړه قِيْلَ: هٰذَا مَحْمُوْلٌ عَلٰى مَا

ویل سوي دي: چي دا [پر أقرب د دیت فیصله کول] پر هغه صورت محمول دي إِذَا كَانَ بِحَيْثُ يَبْلُغُ

أَهْلَهُ الصَّوْتُ کله چي مقتول پر داسي ځای وي چي اهلِ أقرب ته آواز رسېدلای سي لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ

بِهٰذِهِ الصِّفَةِ ځکه کله چي مقتول په داسي صفت سره [او پر داسي موقع] وي يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ نو هغه ته

مدد رسېدلای سي فَتُمْكِنُهُمُ النُّصْرَةُ نو د هغوی [اهل أقرب] لپاره مدد کول ممکن وي وَقَدْ قَصَّرُوْا

حال دا چي [دلته] هغو کوتاهي [او لا پروايي] کړې ده.

**اللغات:** ﴿قریتین﴾ تثنیه د قَرْيَةٌ: غټ کلی، قبصه، هغه سیمه او علاقه چي یو بل ته نژدې ډېري ودانۍ (استوګنځی) او کورونه کښېي جوړ سوي وي. ﴿یُذرع﴾ د فتح د باب مضارع مجهول ده: ګزول، په ذراع (ګز) سره اندازه کول. ﴿یقیس﴾ د ضرب د باب مضارع ده: د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: اندازه کول، ناپول ﴿غوث﴾ مدد، مرسته، مراد: مدد کونکی، غاروسي (فریادرس). ﴿قصروا﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: کوتاهي او لا پروایي کول، د قدرت باوجود لازم کار نه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو داسي چارپای چي پر هغه مقتول ومیندل سي د دوو کلو تر مینځ روان وي او د چارپای سره څوک نه وي، نو په دې صورت کي د نژدې کلي والا پر خلګو د مقتول دیت واجبېږي یعني کوم کلی چي چارپای ته نژدې وي، مثلاً که چارپای له یوه کلي څخه شل قدمه او له بل کلي څخه څلوېښت قدمه لیري وي، نو د شلو قدمو پر فاصله چي کوم کلی واقع دی د هغه پر خلګو د مقتول دیت واجب دی: په دې هکله اول دلیل په عبارت کي مذکوره حدیث دی چي نبي کریم ﷺ ته یو داسي مقتول راوړل سو کوم چي د دوو کلو تر مینځ میندل سوی وو. نو نبي ﷺ کریم د هغه دوو کلو د فاصلې د ګزولو حکم وکړی او پر نژدي کلي والا یې دیت واجب کړی.

دوېم دلیل د حضرت عمر ﷛ هغه خط دی کوم چي د "وادعه" او "ارحب" تر مینځ د پیدا کېدونکي مقتول په هکله حضرت عمر ﷛ لیکلی وو او په هغه کي یې داليکلي وه چي مقتول ته کوم کلی زیات نژدې وي، د هغه پر اهل دي دیت واجب کړی سي، نو تر اندازه کولو وروسته معلومه سوه چي "قریه وادعه" مقتول ته زیاته نژدې ده، لهذا د هغې پر خلګو دیت واجب کړی سو: له دې

دوارو دلیلونو څخه دا خبره څرګنده سوه چې مقتول کوم کلي ته زیات نژدې وي، د هغه پر خلګو به دیت واجبول کیږي.

قیل هذا إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د بعضي فقهاؤ رایه دا ده چې پر کلي والا وو د دیت واجبولو لپاره دا ضروري ده چې هغه کلی به د مقتول چارپای ته دومره نژدې وي چې له هغه څخه د مقتول آواز کلي والا ته رسېدلای سي، ځکه صرف په همدې صورت کې د کلي د خلګو لپاره مقتول ته لاس رسی او د هغه مدد کول ممکن دي او صرف په همدې صورت کې د هغو له طرفه په حفاظت او مدد کې کوتاهي او لا پروايي ثابتیږي چې د هغه پر بناء به دوی دیت اداء کوي. لېکن که نژدې کلي ته آواز نه سي رسېدلای، نو بیا پر هغو دیت نه واجبیږي، لېکن دا د بعضي حضراتو قول دی. په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله هغه په "قِیلَ" سره بیان کړی دی، او ظاهر روایت اول قول دی.

## د یو انسان په کور کې د مقتول میندل کېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ وُجِدَ الْقَتِيْلُ فِي دَارِ إِنْسَانٍ فرمایي: او که مقتول د یو انسان په کور کې ومیندل سي فَالْقَسَامَةُ عَلَيْهِ نو قسامت پر هاغه [واجب] دی لِأَنَّ الدَّارَ فِيْ يَدِهِ ځکه چې کور د هاغه په قبضه کې دئ وَالدِّيَةُ عَلٰى عَاقِلَتِهِ او دیت د ده پر عاقله وو [واجب] دی لِأَنَّ نُصْرَتَهُ مِنْهُمْ وَقُوَّتَهُ بِهِمْ ځکه د ده مرسته له هغو څخه ده او د ده قوت په هغو سره دی [یعني عاقله د ده مرسته کوونکي دي او د هغو په وجه ده ته قوت حاصل دی].

**اللغات:** ﴿عاقله﴾ متعلقین او نژدې قریبان او قومیان (خاندان والا). ﴿نُصْرَة﴾ مدد او کومک، امداد.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو چا په کور کې مقتول ومیندل سي، نو قسامت صرف د کور پر مالک واجبیږي، او دیت به د هغه عاقله اداء کوي؛ قسامت ځکه د کور پر مالک واجبیږي چې کور د هاغه په قبضه او ملکیت کې دی او د مقتول قتل د هاغه په ملکیت کې واقع سوی دی (لهذا هغه تنها د اهلِ محلې په درجه کې دی)، نو ځکه د مقتول ضامن به هم هاغه وي، او دا دیت به ځکه د هغه عاقله اداء کوي چې همدا عاقله د هغه مرسته کوونکي او لاس نیوونکي دي او په همدوی سره هغه طاقتمن او قدرتمن شمېرل کیږي.

## د محلې په مالکانو او اوسېدونکو کې پر کوم چا قسامت واجبېږي؟

قَالَ: وَلَا تَدْخُلُ السُّكَّانُ فِي الْقَسَامَةِ مَعَ الْمُلَّاكِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په قسامت کې د مالکانو سره اوسېدونکي نه داخلېږي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ۞ : هُوَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دیت پر اوسېدونکو او مالکانو ټولو باندې [واجب] دی لِأَنَّ وِلَايَةَ التَّدْبِيرِ كَمَا تَكُونُ بِالْمِلْكِ ځکه د تدبیر ولایت چې څرنګه د ملکیت [مالک کېدلو] په ذریعه وي تَكُونُ بِالسُّكْنَى همداسې د استوګنې [اوسېدلو] په ذریعه وي أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ ﷺ ❶ جَعَلَ الْقَسَامَةَ وَالدِّيَةَ عَلَى الْيَهُودِ آیا ته نه ګورې! چې نبي ﷺ پر یهودو قسامت او دیت واجب کړي وه وَإِنْ كَانُوا سُكَّانًا بِخَيْبَرَ که څه هم هغوی په خيبر کې اوسېدونکي وه [مالکان نه وه] وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَالِكَ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِنُصْرَةِ الْبُقْعَةِ دُونَ السُّكَّانِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د ځمکې د نصرت سره صرف د ځمکې مالک خاص دی. نه اوسېدونکي لِأَنَّ سُكْنَى الْمُلَّاكِ أَلْزَمُ ځکه د مالکانو استوګه زیاته دوام والا وي وَقَرَارُهُمْ أَدْوَمُ او د هغو بقاء زیاته دائمي وي فَكَانَتْ وِلَايَةُ التَّدْبِيرِ إِلَيْهِمْ لهذا د تدبير ولايت به همدوی ته حاصل وي فَيَتَحَقَّقُ التَّقْصِيرُ مِنْهُمْ نو [په حفاظت کې] کوتاهي [او لاپروايي] به د همدوی له طرفه ثابته وي وَأَمَّا أَهْلُ خَيْبَرَ فَالنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَقَرَّهُمْ عَلَىٰ أَمْلَاكِهِمْ او پاته سو اهل خيبر نو نبي کريم ﷺ هغوی پر خپلو ملکیتونو باقي پرې ایښي وه وَكَانَ يَأْخُذُ مِنْهُمْ عَلَىٰ وَجْهِ الْخَرَاجِ او له هغو څخه به يې د خراج په توګه اخيستنه کوله.

**اللغات:** ﴿سُكَّان﴾ جمع د سَاكِنٌ ده: اوسېدونکي. ﴿سكنى﴾ اوسېدنه. استوګنه (استوګه) ﴿بقعة﴾ د ځمکې ټوټه (ټوکره). قطعه. ﴿ألزم﴾ د سمع له بابه اسم تفضيل دی: زيات ثابت. زيات دائم (دوام والا). ﴿أقرّ﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: باقي پرېښوول. برقرار ساتل.

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله ... القول الراجح [ج۲، ص: ۳۶۵]

❶ تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، كتاب القسامة، باب أصل القسامة، حديث رقم: ۱۶۵۰۰

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که په یو کلي کې ځینې داسې خلک وي کوم چې د دې کلي د ځمکو اصلي مالکان وي او ځینې داسې خلک وي کوم چې بغیر له ملکیته د کرایې وغیره په توګه دلته اوسیږي (یعني عارضي اوسېدونکي)، بیا په دې کلي کې یو مقتول وموندل سي. نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز صرف پر مالکانو قسامت او دیت واجبیږي او پر اوسېدونکو (کرایه دارانو) دیت نه واجبیږي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر اوسېدونکو او مالکانو دواړو قسامت او دیت واجبیږي: ځکه د قسامت تعلق د تدبیر د ولایت سره دی او په دې ولایت او اختیار کې ټوله سره برابر دي ځکه د تدبیر ولایت په ملکیت (مالک کېدلو) سره هم حاصلیږي او په او په سکنیٰ (اوسېدلو) سره هم حاصلیږي. لهذا څرنګه چې پر مالکانو قسامت او دیت واجب دي. نو همداسې به پر عارضي اوسېدونکو هم دا شیان واجب وي، همدا وجه ده چې نبي کریم ﷺ د خیبر پر یهودو قسامت او دیت واجب کړی وو. حال دا چې هغوی د خیبر د ځمکو مالکان نه وه بلکې هلته استوګن وه. که پر اوسېدونکو قسامت او دیت نه واجبېدلای نو د خیبر پر یهودو به نبي ﷺ هغه نه واجبولای. معلومه سوه چې پر اوسېدونکو هم دا شیان واجبیږي.

ولهما إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل حاصل دا دی چې د ځمکې نصرت او څارنه د ځمکې د مالک سره خاص ده. او د اوسېدونکو تعلق ور سره نسته: ځکه د اوسېدونکو (کرایه دارانو) په اوسېدنه کې دوام او قرار نه وي. بلکې د موسمي مرغانو په څېر هغوی هم کورونه او استوګې بدلوي. د دوی په خلاف د مالکانو په اوسېدنه کې دوام او ابدیت وي او هغوی استوګه نه بدلوي، لهذا حِقیقي تدبیر او نصرت و حفاظت به د همدې مالکانو سره متعلق وي او صرف د همدوی له طرفه به د مقتول او محلې په حفاظت او څارنه کمي او لا پروایي ثابته وي. نو ځکه قسم او دیت به صرف له همدوی څخه اخیستل کیږي. نه له اوسېدونکو (کرایه دارانو) څخه.

وأما أهل خيبر إلخ: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په خپل دلیل کې د اهلِ خیبر واقعه پېش کړې وه. دلته د هغه جواب ورکوي فرمایي چې اهل خیبر عارضي اوسېدونکي (سکان) ګڼل صحیح نه دي: ځکه هغوی اوسېدونکي نه وه بلکې مالکان وه او نبي ﷺ هغوی پر خپلو ملکیتونو او ځمکو باقي پرې اېښې وه. او کوم څه چې یې له هغو څخه اخیستل. هغه یې د خراج په توګه ځني اخیستل. لهذا د اهل خیبر په واقعه سره دلیل نیول او پر عارضي اوسېدونکو قسامت او دیت واجبول صحیح نه دي.

## د محلې پر کومو مالکانو قسامت واجبيږي؟

قَالَ: وَهُوَ عَلٰى أَهْلِ الْخُطَّةِ دُوْنَ الْمُشْتَرِيْنَ فرمايي: او هغه [وجوب د قسامت او ديت] په اهل خطه وو باندې دی. نه په رانيونکو باندې وَهٰذَا قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ۞: الْكُلُّ مُشْتَرِكُوْنَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دوی ټوله [په قسامت او ديت کې] مشترک دي لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِتَرْكِ الْحِفْظِ مِمَّنْ لَهُ وِلَايَةُ الْحِفْظِ ځکه ضمان د هغه کس له طرفه د حفاظت پرېښوولو په وجه واجبيږي چې هغه لره د حفاظت کولو ولايت [او اختيار] حاصل وي وَبِهٰذَا الطَّرِيْقِ يُجْعَلُ جَانِيًا مُقَصِّرًا او په همدې توګه هغه [من له ولاية الحفظ] جنايتکاره او قصور واره ګرځول کيږي وَالْوِلَايَةُ بِاعْتِبَارِ الْمِلْكِ او د حفاظت ولايت د ملکيت [مالک والي] په اعتبار سره وي وَقَدِ اسْتَوَوْا فِيْهِ او په ملکيت کې دوی ټوله سره برابر دي وَلَهُمَا: أَنَّ صَاحِبَ الْخُطَّةِ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِنُصْرَةِ الْبُقْعَةِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې همدا صاحب خطه [جاګيردار] د ځمکې په نصرت سره مختص دی هُوَ الْمُتَعَارَفُ همدا متعارف ده وَلِأَنَّهُ أَصِيْلٌ وَالْمُشْتَرِيْ دَخِيْلٌ او ځکه چې صاحب خطه اصيل دی او مشتري دخيل دی وَوِلَايَةُ التَّدْبِيْرِ إِلَى الْأَصِيْلِ او د تدبير ولايت اصيل ته حاصل وي وَقِيْلَ: أَبُوْحَنِيْفَةَ بَنٰى ذٰلِكَ عَلٰى مَا شَاهَدَ بِالْكُوْفَةِ او ويل سوي دي: چې امام صاحب رَحِمَهُ الله دا [مسئله] پر هغه حالت بناء کړې ده چې دوی په کوفه کې د هغه مشاهده کړې وه [يعني امام صاحب رَحِمَهُ الله د کوفې پر عُرف او حالت د دې مسئلې بنياد ايښی دی].

**اللغات**: ﴿اهل خطة﴾ د يو وطن او علاقې د فتح کولو په وخت کې چې امام او واکمن کومې ځمکې او جايدادونه خلګو ته په تقسيم ورکړي وي چې همدوی يې اول مالکان وي. هغو ته "اهل خطه" وايي او د هغو د نشتوالي په صورت کې بيا د هغو اولاد او نسل ته اهل خطه وايي. داسې

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رحمهما الله، كما ذكر في الكتاب. [illegible] قال الأستاذ [illegible] العثماني: والعمل على قول أبي يوسف رحمه الله أوفق هذا الزمان لأن الملاك [illegible] القسامة على الملاك الحديثة دون القديمة، لارتفاع [illegible] في البلاد [illegible]. وأشار إلى هذا العلامة [illegible] حسب حال [illegible] ويظهر أن هذا الرأي في الظروف الحاضرة هو الأولى بالاتباع. [القول الراجح ج۲ ص [illegible]]

ځمکي او جایداد ته "جاګیر" او خاوند ته یې "جاګیردار" وایي. او له مشترین (رانیونکو) څخه مراد هغه خلک دي کوم چي وروسته راغلی وي او دا ځمکه او جایداد یې پېرلي وي او دامام له طرفه هغو ته دا ځمکه ابتداءً نه وي ورکول سوې. په لنډه وینا دا چي اهلِ خِطه د ځمکو هغو مالکانو ته وایي چي په شروع کي دامام له طرفه هغه ځمکي ورکول سوي وي. او مشترین هغو مالکانو ته وایي چي په رانیولو سره د ځمکو مالکان سوي وي. ﴿مقصر﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: کوتاهي او لاپروایي کونکی، د قدرت لرلو برسېره د لازم کار پرېښوونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي دامام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَا الله په نېز په اهل محله کي صرف پر هغو مالکانو قسامت او دیت واجبېږي کوم چي اهلِ خطه (جاګیرداران) وي، نه پر مشترینو (رانیونکو). لېکن دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر اهلِ خطه او مشترینو ټولو باندي قسامت او دیت واجبېږي. ځکه دواړه فریقه مالکان دي او دواړو ته د حفاظت ولایت حاصل دی. لهذا د حفاظت او څارني د پرېښوولو په وجه به د دواړو فریقو (اهل خطه او مشترینو) له طرفه کوتاهي او لاپروایي ثابته وي، نو ځکه ضمان به هم پر دواړو فریقو واجب وي.

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي متعارف همدا ده چي د دې علاقې او ځمکي د حفاظت اصل ذمه واران اهلِ خطه دي. او ځکه چي اهلِ خطه اصیل دي او مشترین دخیل دي او "ولایت تدبیر" (د تدبیر ولایت) اصیل لره حاصل وي، نه دخیل لره. لهذا د حفاظت د پرېښوولو کوتاهي او لاپروایي به صرف د اهلِ خطې له طرفه ثابته او موجوده وي نو صرف پر هغو به قسامت او دیت واجبېږي.

**وقیل: أبوحنیفة إلخ**: فرمایي چي د ځیني حضراتو رایه دا ده چي امام صاحب رَحِمَهُ الله په کوفه کي د دې لیدنه کړې وه چي کوفیانو صرف اهلِ خطه د "ولایت تدبیر" مالکان شمېرل او مشترین یې له هغه څخه بري ګڼل. نو امام صاحب رَحِمَهُ الله دا مسئله د خپلي لیدني او مشاهدې مطابق وضع کړه او مشترین یې له قسامت او دیت څخه بري کړل.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ بَقِيَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ فرمایي: او که له دوی څخه صرف یو پاته وي فَكَذٰلِكَ نو همداسي [حکم] دی يَعْنِيْ مِنْ أَهْلِ الْخُطَّةِ یعني له اهلِ خطه وو [جاګیردارنو] څخه [صرف یو پاته وي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَإِنْ لَمْ يَبْقَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ او که له دوی څخه یو هم پاته نه

وي بِأَنْ بَاعُوا كُلُّهُمْ په دې توګه چي دوی ټولو خرڅ کړي وي فَهُوَعَلَى الْمُشْتَرِيْنَ نو هغه [قسامت او دیت] پر رانیونکو دی لِأَنَّ الْوِلَايَةَ اِنْتَقَلَتْ اِلَيْهِمْ ځکه چي ولایت د دوی وطرف ته منتقل سو أَوْ خَلَصَتْ لَهُمْ یا د دوی لپاره خالص سو [یعني ولایت فقط د دوی سره خاص دی] لِزَوَالِ مَنْ يَتَقَدَّمُهُمْ أَوْ يُزَاحِمُهُمْ د هغه خلګو د لیري کېدلو [نه پاتېدلو] په وجه کوم چي له دوی څخه مخکي دي یا د دوی مزاحم [مقابل] دي [یعني اهل خطه].

**اللغات:** ﴿خلصت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: خالص کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی کېږه په یو کلي او محله کي له اهلِ خطه وو (جاګیردارانو) څخه صرف یو کس پاته وي. بیا په هغه کلي کي یو مقتول ومیندل سي. نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز صرف پر هغه یوه جاګیردار قسامت او دیت واجبیږي. ځکه چي هم هاغه د تدبیر ولي دی.

ها! که له اهلِ خطه وو څخه یو هم پاته نه وي په دې توګه چي ټولو خپلي ځمکي او جایدادونه خرڅ کړي وي. نو په دې صورت کي پر خریدارانو (مشترینو) قسامت او دیت واجبیږي: ځکه اوس اهلِ خطه له دې ځایه کوچېدلي دي او د هغو په تګ سره د مشترینو په حق کي مزاحمت هم معدوم سوی دی او تقدمیت هم ختم سوی دی (ځکه ښکاره خبره ده چي کله اهل خطه دلته موجود ول نو هغوی د مشترینو مزاحم ول او هغو ته حق د تقدم حاصل وو. او د ځمکو په خرڅولو او کوچېدلو سره دا تقدمیت او مزاحمت زایل سول). او هلِ خطه وو ته چي کوم "ولایت تدبیر" حاصل وو. هغه اوس د مشترینو ته نقل سو. نو ځکه اوس به صرف همدا مشترین (رانیونکي) د قسامت او دیت ذمه واره وي. (احسن الهدایه)

## که د یو چا په کور کي مقتول ومیندل سي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا وُجِدَ قَتِيْلٌ فِيْ دَارٍ او کله چي په یو کور کي یو مقتول ومیندل سي فَالْقَسَامَةُ عَلٰى رَبِّ الدَّارِ وَعَلٰى قَوْمِهِ نو قسامت د کور پر مالک او د هغه پر قوم [عاقله وو] باندي دی وَتَدْخُلُ الْعَاقِلَةُ فِي الْقَسَامَةِ إِنْ كَانُوْا حُضُوْرًا او عاقله [په دې شرط] په قسامت کي داخلیږي که چیري هغوی حاضر وي وَإِنْ كَانُوْا غُيَّبًا او که هغوی غائب وي فَالْقَسَامَةُ عَلٰى رَبِّ الدَّارِ يُكَرَّرُ عَلَيْهِ الْأَيْمَانُ نو قسامت د کور پر مالک دی چي قسمونه به پر هغه مکررول کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د

طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ ۞ : لَا قَسَامَةَ عَلَى الْعَاقِلَةِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر عاقله وو قسامت نسته لِأَنَّ رَبَّ الدَّارِ أَخَصُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ ځکه د کور مالک د دې کور سره تر بل چا زيات خاص دی فَلَا يُشَارِكُهُ غَيْرُهُ فِيهَا نو ځکه بل څوک به د هغه سره په دې قسامت کې نه شريکيږي كَأَهْلِ الْمَحَلَّةِ لَا يُشَارِكُهُمْ فِيهَا عَوَاقِلُهُمْ لکه محلې والا چې د هغو سره په قسامت کې د هغو عاقلې نه شريکيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْحُضُوْرَ لَزِمَتْهُمْ نُصْرَةُ الْبُقْعَةِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې پر حاضرينو د ځمکې نصرت لازم دی كَمَا تَلْزَمُ صَاحِبَ الدَّارِ لکه څرنګه چې د کور پر مالک لازم دی فَيُشَارِكُونَهُ فِي الْقَسَامَةِ لهذا حاضر عاقله به په قسامت کې د کور د مالک سره شريکيږي.

**اللغات**: ﴿حضور﴾ جمع د حَاضِرٌ ده: موجود. ﴿غيّب﴾ جمع د غَائِبٌ ده: نا موجود. ﴿ربّ الدار﴾ د کور مالک. ﴿نُصْرَة﴾ مدد او کومک، امداد.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د زيد په کور کې يو مقتول وميندل سي او د مقتول ولي د کور په مالک (زيد) باندې د قتل دعویٰ وکړي، نو بالاتفاق د کور پر مالک قسامت واجب دی. لېکن د هغه پر قوم او عاقله وو د قسامت په وجوب کې زموږ د امامانو اختلاف دی، د طرفينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې که د کور د مالک عاقله په دې کلي يا په ښار کې موجود وي، نو د کور د مالک سره پر هغو هم قسامت واجب دی. لېکن که هغوی موجود نه وي، نو بيا صرف د کور پر مالک قسامت واجب دی. چې د کور پر مالک به قسم مکرر ول کيږي او پنځوس قسمونه به څني اخيستل کيږي.

د دې په خلاف امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې قسامت صرف د کور پر مالک واجب دی. پر عاقله وو واجب نه دی؛ ځکه د کور په ملکيت کې د کور مالک منفرد دی او د هغه د عاقله وو فرد په هغه کې ور سره شريک نه دی، لهذا د ګور حفاظت او څارنه به هم يوازې د کور د مالک ذمه واري وي او په حفاظت کې د کوتاهي او لا پروايي کولو په وجه به صرف د هغه مؤاخذه کيږي، لکه پر اهلِ محله وو چې کوم قسامت واجبيږي په هغه کې د اهل محلې عاقله نه ور سره شريک کيږي، نو همداسې به د کور پر مالک په واجبيدونکي قسامت کې هم د هغه عاقله نه ور سره شريک کيږي.

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الكتاب "القول الراجح" [ج:۲، ص:۳۶۷]

ولهما أن الحضور إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې له عاقلې والا څخه چې کوم کسان حاضر او موجود وي، پر هغو د ځمکې حفاظت او نصرت لازم دی. او په هغه ځمکه کې د کور د مالک کور هم شامل دی.لهذا په کور کې د مقتول د پیدا کېدلو په وجه به د حاضرو عاقله وو له طرفه هم په حفاظت کې لا پروایي او کوتاهي ثابته وي. نو ځکه د کور د مالک سره به هغوی هم په قسامت کې شریکان کېږي.

## که په مشترک کور کې مقتول ومیندل سي نو د ضمان طریقه

قَالَ: فَإِنْ وُجِدَ الْقَتِيْلُ فِيْ دَارٍ مُشْتَرَكَةٍ فرمایي: او که مقتول په داسې مشترک کور کې ومیندل سي نِصْفُهَا لِرَجُلٍ چې د هغه کور نیمه حصه د یوه سړي وي وَعُشْرُهَا لِرَجُلٍ او لسمه یې د بل سړي وي وَلِآخَرَ مَا بَقِيَ او پاته حصه یې د بل [دریم] سړي وي فَهُوَ عَلَى رُءُوْسِ الرِّجَالِ نو ضمان د هغه خلکو د رؤسُ [افرادو] مطابق دی لِأَنَّ صَاحِبَ الْقَلِيْلِ يُزَاحِمُ صَاحِبَ الْكَثِيْرِ فِي التَّدْبِيْرِ ځکه لږ حصې والا په تدبیر کې د زیاتې حصې والا مزاحم دی فَكَانُوْا سَوَاءً فِي الْحِفْظِ وَالتَّقْصِيْرِ نو په حفاظت او کوتاهي [او لا پروایي] کولو کې به دوی ټول سره برابر وي فَيَكُوْنُ عَلَى عَدَدِ الرُّءُوْسِ بِمَنْزِلَةِ الشُّفْعَةِ نو ځکه ضمان به د رؤسُ [افرادو] د شمېر مطابق وي د شفعې په څېر.

**اللغات:** ﴿عُشر﴾ لسمه حصه (لسمه). ﴿رؤس﴾ سرونه. افراد. عدد رؤس: د افرادو تعداد.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په یو داسې کور کې مقتول ومیندل سي کوم چې د څو خلکو ترمینځ مشترک وي او د هغه شریکانو ملکیتونه یو له بل څخه جلا وي یعني یو شریک د نیم کور مالک وي او یو د ثلث او یو د ربع. نو دیت د عدد رؤس مطابق واجبېږي. یعني پر دوی ټولو به مشترکه توګه دیت واجبېږي. او د دوی د ملکیتونو په اعتبار هره دیت نه واجبېږي چې د نیم کور مالک به نیم دیت ورکوي او ثلث والا به ثلث دیت او ربع والا به ربع دیت ورکوي. بلکې څرنګه چې د مشترک کور تر څنګ په خرڅېدونکي کور کې د عدد رؤس مطابق هر شریک ته شفعه حاصلېږي. نو همدغسې د عدد رؤس په اعتبار سره پر هر شریک دیت واجبېږي او د ملکیتونو تفاوت د دیت په وجوب کې نه مؤثر کېږي.

## په رانيول سوي کور کې له قبضې څخه مخکې د مقتول د پيدا کېدلو په صورت کې ديت پر چا واجبيږي؟

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَىٰ دَارًا فرمايي: او څوک چې يو کور رانيسي وَلَمْ يَقْبِضْهَا حَتّٰى وُجِدَ فِيْهَا قَتِيْلٌ او پر کور قبضه نه وکړي تر دې چې په هغه کې يو مقتول وميندل سي فَهُوَ عَلٰى عَاقِلَةِ الْبَائِعِ نو ديت د بائع پر عاقله وو دی [د "هُوَ" ضمير يا "مذکور" يعني ديت يا "وجوب د ديت" ته راجع دی] وَإِنْ كَانَ فِي الْبَيْعِ خِيَارٌ لِأَحَدِهِمَا او که په بيع کې د يوه عاقد [مشتري يا بائع] لپاره خيار وي فَهُوَ عَلٰى عَاقِلَةِ الَّذِيْ فِيْ يَدِهٖ نو ديت د هغه کس پر عاقله وو دی چې د هغه په قبضه کې [کور] وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: إِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْهِ خِيَارٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که په بيع کې خيار نه وي فَهُوَ عَلٰى عَاقِلَةِ الْمُشْتَرِيْ نو ديت د مشتري پر عاقله وو دی وَإِنْ كَانَ فِيْهِ خِيَارٌ او که په بيع کې خيار وي فَهُوَ عَلٰى عَاقِلَةِ الَّذِيْ تَصِيْرُ لَهٗ نو ديت د هغه يوه پر عاقله وو دی چې کور د هغه وګرځي [يعني که مشتري کور واخلي او د کور مالک سي نو ديت د هغه پر عاقلې دی. کنې د بائع پر عاقلې دی] لِأَنَّهٗ إِنَّمَا أُنْزِلَ قَاتِلًا بِاعْتِبَارِ التَّقْصِيْرِ فِي الْحِفْظِ ځکه هغه [مالک] په حفاظت کې د کوتاهي کولو په وجه د قاتل په درجه ګرځول سوی دی وَلَا يَجِبُ إِلَّا عَلٰى مَنْ لَهٗ وِلَايَةُ الْحِفْظِ او ضمان نه واجبيږي مګر په هغه چا باندې چې هغه لره د حفاظت ولايت حاصل وي وَالْوِلَايَةُ تُسْتَفَادُ بِالْمِلْكِ او د حفاظت ولايت په ملکيت سره حاصليږي وَلِهٰذَا كَانَتِ الدِّيَةُ عَلٰى عَاقِلَةِ صَاحِبِ الدَّارِ دُوْنَ الْمُوْدَعِ په همدې وجه ديت د کور د مالک پر عاقله وو واجبيږي، نه د مودَع وَالْمِلْكُ لِلْمُشْتَرِيْ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْبَيْعِ الْبَاتِّ او په قطعي بيع کې تر قبضې مخکې هم ملکيت د مشتري لپاره ثابتيږي وَفِي الْمَشْرُوْطِ فِيْهِ الْخِيَارُ يُعْتَبَرُ قَرَارُ الْمِلْكِ او په هغه بيع کې چې خيار پکښې شرط وي د ملکيت د قرار اعتبار کول کيږي كَمَا فِيْ صَدَقَةِ الْفِطْرِ لکه په صدقهٔ فطر کې [چې د ملکيت د قرار حالت معتبر دی].

**اللغات**: ﴿تستفاد﴾ د استفعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: حاصلول او تر لاسه کول، ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چې امانتاً يو شی اېښوول سوي وي. په امانت يو څه ورکول

سوي وي. ﴿باتّ﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی: قطعي، حتمي (کوم څه چې په حتمي او یقیني توګه نافذ وي). مراد ځني نافذه سوې بیع (بیع تام) ده چې په هغه کې خیار شرط نه وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک (مثلاً زید) کور رانیسي او پر هغه قبضه نه وکړي. بیا په هغه کور کې یو مقتول ومیندل سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې مقتول دیت د بائع پر عاقله وو لازمېږي: ځکه د هغه په نېز د ضمان مدار پر قبضه دی او دلته مشتري تر اوسه پر دې کور قبضه نه ده کړې. نو ځکه کوم یو چې قابض دی یعني بائع د هغه پر عاقله وو به دیت واجبیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په مذکوره صورت کې د مشتري پر عاقله وو دیت واجبیږي: ځکه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دیت واجبېدلو مدار پر ملکیت دی او په رانیولو سره مشتري ته ملکیت حاصل سوی دی.

او که په بیع کې یوه عاقد یعني مشتري یا بائع لره خیلږ (اختیار) شرط وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه یوه پر عاقله وو دیت واجبیږي کوم چې فی الحاله پر کور قابض وي. لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دیت حکم موقوف پاتیږي او په آینده کې چې کور د کوم یوه ملکیت ته راسي. د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې د ضمان واجبېدلو تعلق په حفاظت کې د تقصیر او لا پروایي کولو سره دی (لکه مخکې چې ضمناً ذکر سوه): ځکه په همدې حفاظت کې د لا پروایي کولو په وجه من له ولایة الحفظ قاتل شمېرل کیږي. او ولایة الحفظ په ملکیت سره حاصلیږي (یعنې د حفاظت کولو ولایت او اختیار مالک ته حاصلیږي). نو ځکه موږ وایو چې که په بیع کې خیار شرط نه وي نو څرنګه چې په دې صورت کې په رانیولو سره مشتري د کور مالک کیږي. نو ځکه د هاغه پر عاقله وو به دیت واجبیږي. او که په بیع کې خیار شرط وي نو په دې صورت کې ملکیت بې قرار او موقوف پاتیږي او په حتمي توګه یوه ته ملکیت نه حاصلیږي. نو موږ په هغه کې د ملکیت د قرار په اعتبار کولو سره د دیت حکم موقوف کړی دی او فیصله مو دا کړې ده چې په آینده کې کوم هو مالک سي. د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي. همدا وجه ده چې که یو کور مثلاً زید ته په ودیعت ورکول سوی وي او بیا په هغه کور کې مذکوره قصه پېښه سي. نو ضمان د کور پر مالک واجبیږي. نه پر مودَع (زید). د دې مثال داسې دی لکه څنګه چې په صدقة فطر کې کیږي چې که څوک د اختر په ورځ په خیار شرط سره خپل غلام خرڅ کړي. نو د خیار په وخت کې د هغه غلام صدقة فطر پر یوه هم نه واجبیږي (نه پر بائع او نه پر مشتري). بلکې تر خیار وروسته چې کوم یو د غلام مالک سي. پر هاغه د

غلام صدقهٔ فطر واجبیږي. نو همداسي دلته هم که چیري بیع بشرط الخیار وي، نو تر خیار وروسته چي کوم یو د کور مالک سي، د هاغه پر عاقله وو به دیت واجبیږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل

وَلَهُ: أَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى الْحِفْظِ بِالْيَدِ لَا بِالْمِلْكِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي پر حفاظت قدرت لرل په قبضه سره وي، نه په ملکیت سره أَلَا يَرَىٰ أَنَّهُ يَقْتَدِرُ عَلَى الْحِفْظِ بِالْيَدِ بِدُوْنِ الْمِلْكِ آیا نه ګوري! چي انسان له ملکیت څخه بغیر [یوازي] په قبضه سره پر حفاظت قادر کیږي وَلَا يَقْتَدِرُ بِالْمِلْكِ بِدُوْنِ الْيَدِ او له قبضې څخه بغیر [یوازي] په ملکیت سره نه قادر کیږي وَفِي الْبَاتِّ الْيَدُ لِلْبَائِعِ قَبْلَ الْقَبْضِ او په قطعي بیع کي [د مشتري] تر قبضې مخکي د بائع قبضه وي وَكَذَا فِيمَا فِيهِ الْخِيَارُ لِأَحَدِهِمَا قَبْلَ الْقَبْضِ او همداسي به [د بائع قبضه وي] په هغه بیع کي چي په هغه کي تر قبضې مخکي د یوه [بائع یا مشتري] لپاره خیار وي لِأَنَّهُ دُوْنَ الْبَاتِّ ځکه چي دا [خیار والا بیع] له قطعي بیع څخه لاندي [د کمي درجې] ده وَلَوْ كَانَ الْمَبِيْعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي وَالْخِيَارُ لَهُ او که مبیع د مشتري په قبضه کي وي او خیار هغه لره وي فَهُوَ أَخَصُّ النَّاسِ بِهِ تَصَرُّفًا نو دا مشتري د تصرف په اعتبار تر ټولو خلکو د دې مبیع سره زیات خاص دی وَلَوْ كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ او که خیار د بائع لپاره وي فَهُوَ فِي يَدِهِ مَضْمُوْنٌ عَلَيْهِ بِالْقِيمَةِ نو مبیع د مشتري په قبضه کي مضمون بالقیمة ده كَالْمَغْصُوْبِ لکه غصب کړی سوی شی فَتُعْتَبَرُ يَدُهُ نو ځکه د مشتري قبضه به معتبره وي إِذْ بِهَا يَقْدِرُ عَلَى الْحِفْظِ ځکه د همدې قبضې په وجه مشتري پر حفاظت قادر کیږي.

**اللغات**: ﴿ید﴾ لاس، مراد: قبضه. ﴿أخصّ﴾ د نصر له بابه اسمِ تفضیل دی: زیات خاص. زیات خصوصیت لرونکی.

**تشریح**: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دی، حاصل یې دا دی چي کوم شی د انسان په قبضه کي وي او انسان د هغه مالک نه وي، نو هم انسان د هغه شي پر حفاظت کولو قدرت لري، یعني د قبضې په وجه انسان پر حفاظت او څارنه قادر کیږي، لیکن که قبضه نه وي او ملکیت وي یعني شی د انسان په قبضه کي نه وي او انسان د هغه مالک وي، نو انسان د هغه پر حفاظت قادر نه وي، او دلته په مذکوره مسئله کي چي کله په قطعي بیع (بیع بدون شرط الخیار) کي د مشتري له قبضې څخه مخکي پر مبیع

(کور) د بائع قبضه ده، نو ښکاره ده چي په دې صورت کي خو دیت د بائع پر عاقلـه وو لازم دی. او په کوم صورت کي چي بیع قطعي نه وي او په هغه کي دیوه لپاره خیار شرط وي (یعني بیع بشرط الخیار وي)، نو په هغه کي به په درجه اولیٰ پر مبیع (کور) د بائع قبضه وي او دیت به د بائع پر عاقلـه وو لازم وي: ځکه بیع بشرط الخیار له قطعي بیع څخه لاندي او کمتره ده.

ولوکان المبیع إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مبیع د مشتري په قبضه کي وي او هغه ته په بیع کي خیار هم حاصل وي، نو مشتري په دې مبیع کي تر هر چا زیات د تصرف حقدار دی: ځکه قبضه او ملکیت دواړه شیان د هغه په حق کي جمع دي. لهذا د مبیع سره اړوند اُمور (ضمان او دیت وغیره) به پر هاغه لازم وي.

ولوکان الخیار للبائع إلخ: فرمایي چي که مبیع د مشتري په قبضه کي وي او خیار بائع ته حاصل وي، نو څرنګه چي (د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز) اصل مدار پر قبضه دی، نو ځکه دا مبیع د مشتري په قبضه کي مضمون بالقیمت ده، یعني که مبیع د مشتري په قبضه کي هلاک سي نو پر هغه د مبیع د قیمت ضمان واجبیږي، لکه څرنګه چي مغصوب شی د غاصب په قبضه کي مضمون بالقیمت وي، لنډه دا چي شرعاً قبضه معتبره سوه ځکه د قبضې په وجه څوک د شي پر حفاظت قادر کیږي نو ځکه د حفاظت پر ښنوولو په وجه پر هغه ضمان واجبیږي (خلاصه دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دلته د ضمان واجبدلو مدار پر قبضه دی او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز پر ملکیت دی).

## که د قابض په کور کي مقتول ومیندل سي نو د دیت حکم

قَالَ: وَمَنْ كَانَ فِيْ يَدِهٖ دَارٌ فرمایي: او د چا په قبضه کي چي یو کور وي فَوُجِدَ فِيْهَا قَتِيْلٌ او په هغه کي یو مقتول ومیندل سي لَمْ تَعْقِلْهُ الْعَاقِلَةُ نو عاقله به د هغه دیت نه اداء کوي حَتّٰى تَشْهَدَ الشُّهُوْدُ أَنَّهَا لِلَّذِيْ فِيْ يَدِهٖ تر دې چي ګواهان ګواهي ورکړي چي دا کور د هاغه دی د چا په قبضه کي چي دی لِأَنَّهٗ لَابُدَّ مِنَ الْمِلْكِ لِصَاحِبِ الْيَدِ حَتّٰى تَعْقِلَ الْعَوَاقِلُ عَنْهُ ځکه د قبضې والا لپاره ملکیت [د کور مالک کېدل] ضروري دي چي عاقلې د هغه له طرفه دیت اداء کړی سي وَالْيَدُ وَإِنْ كَانَتْ دَلِيْلًا عَلَى الْمِلْكِ او قبضه که څه هم د ملکیت دلیل ده لٰكِنَّهَا مُحْتَمَلَةٌ لیکن هغه محتمله ده فَلَا تَكْفِيْ لِإِيْجَابِ الدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو ځکه هغه [قبضه] به پر عاقله وو د دیت واجبولو لپاره کافي نه وي كَمَا لَا تَكْفِيْ لِاسْتِحْقَاقِ الشُّفْعَةِ بِهٖ فِي الدَّارِ الْمَشْفُوْعَةِ لکه څرنګه چي په مشفوعه کور کي د شفعي د مستحق

کېدلو لپاره قبضه کافي نه ده فَلَابُدَّ مِنْ اِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ نو ځکه د بېنې پېشول ضروري دي.

**اللغات**: ﴿يد﴾ لاس. مراد: قبضه. ﴿لم تعقل﴾ د ضرب له بابه د جحد صيغه ده. د دې باب له معناو څخه يوه معنىٰ ده: ديت اَداء کول (ديت ورکول). ﴿شهود﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د زيد په قبضه کې يو کور وي بيا په هغه کې يو مقتول وميندل سي. نو تر څو چې ګواهان د دې خبري ګواهي ورنه کړي چې کوم څوک پر دې کور قابض دی (يعني زيد) هاغه د دې کور مالک دی، نو تر هغه وخته پوري د قابض (زيد) پر عاقله وو د مقتول ديت نه واجبيږي: ځکه کله چې عاقله د قابض له طرفه د دې کور د مقتول ديت ورکوي نو د هغه لپاره دا ضروري ده چې قابض به د دې کور مالک وي او د ملکيت (مالک کېدلو) خبر په بېنه او ګواهي سره حاصليږي: نو ځکه بغير له بېنې به عاقله د قابض له طرفه ديت نه اداء کوي

او پاته سوه د قابض قبضه نو هغه که څه هم د ملکيت دليل ده لېکن خالص دليل نه ده. بلکي په هغه کي احتمال دی چې هغه به عاريتاً قبضه وي (يعني کور به يو چا عاريتاً ورکړی وي) او د عاريت په توګه به هغه پر کور قابض وي، اصل مالک به يې نه وي، لهذا کله چې د قابض په قبضه کي احتمال دی. نو ځکه دا يوازي قبضه به پر عاقله د ديت واجبولو لپاره کافي نه وي، لکه څرنګه چې په يوازي قبضه سره څوک په مشفوعه کور کي د شفعي نه مستحق کيږي يعني که مثلاً د خالد په قبضه کي يو کور وي او د دې کور څنګ ته بل کور خرڅ سي او خالد په هغه کور کي د شفعې دعوىٰ وکړي لېکن مشتري انکار وکړي او ووايي چې خالد د دې کور مالک نه دی پر کوم چې قابض دی. نو تر څو چې خالد پر خپل ملکيت بېنه پېش نه کړي. تر هغه وخته پوري خالد محض د قبضې په وجه د شفعي نه مستحق کيږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم محض د قبضې په وجه د قابض عاقله به د هغه په مقبوضه کور کي د ميندل سوي مقتول ديت نه اداء کوي او د ديت اداء کولو لپاره به د کور پر ملکيت بېنه پېشول ضروري وي.

## په کېنتۍ (بېړۍ) کي د مقتول د ميندل کېدلو په صورت کي د قسامت او ديت حکم

قَالَ: وَاِنْ وُجِدَ قَتِيْلٌ فِيْ سَفِيْنَةٍ فرمايي: او که مقتول په يو کېنتۍ کي وميندل سي فَالْقَسَامَةُ عَلٰى مَنْ فِيْهَا مِنَ الرُّكَّابِ وَالْمَلَّاحِيْنَ نو قسامت پر هغه کسانو واجب دی کوم چې په کېنتۍ کي وي يعني سواره [سپاره] او کېنتۍ چلونکي لِاَنَّهَا فِيْ اَيْدِيْهِمْ ځکه کېنتۍ د همدوی په قبضه کي ده وَاللَّفْظُ يَشْمَلُ اَرْبَابَهَا او لفظ (مَنْ فِيْهَا) د کېنتۍ مالکانو لره شامل دی حَتّٰى تَجِبُ عَلَى الْاَرْبَابِ

الَّذِيْنَ فِيْهَا وَعَلَى السُّكَّانِ تر دې چي قسامت واجبيږي پر هغه مالکانو [هم] کوم چي په کښتۍ کي دي او پر اوسېدونکو [سوارانو هم] وَكَذَا عَلٰى مَنْ يَمُدُّهَا او همدارنګه پر هغه خلګو کوم چي کښتۍ کشوي وَالْمَالِكُ فِي ذٰلِكَ وَغَيْرُ الْمَالِكِ سَوَاءٌ او په دې کي مالک او غير مالک ټوله سره برابر دي وَكَذَا الْعَجَلَةُ او همدارنګه ګاډۍ [يعني د ګاډۍ او ټانګې هم دغه حکم دی] وَهٰذَا عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ظَاهِرٌ او دا [يعني په قسامت کي مالک او غير مالک ټوله سره برابرېدل] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د روايت مطابق خو ښکاره دي وَالْفَرْقُ لَهُمَا أَنَّ السَّفِيْنَةَ تُنْقَلُ وَتُحَوَّلُ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله لپاره وجه د فرق دا ده چي کښتۍ [له يوه ځايه بل ځای ته] نقلول کيږي او وړل کيږي فَيُعْتَبَرُ فِيْهَا الْيَدُ دُوْنَ الْمِلْكِ نو ځکه په هغې کي به د قبضې اعتبار کيږي، نه د ملکيت كَمَا فِي الدَّابَّةِ لکه څرنګه چي په چارپای کي کيږي بِخِلَافِ الْمَحَلَّةِ وَالدَّارِ په خلاف د محلې او کور لِأَنَّهَا لَا تُنْقَلُ ځکه چي دا نه نقلول کيږي.

**اللغات:** ﴿سفينة﴾ کښتۍ، بېړۍ. ﴿رکّاب﴾ جمع د رَاكِبٌ: سپور (سوار). ﴿ملاح﴾ کښتۍ چلونکی، کښتۍ بان. ﴿العجلة﴾ ارابه، پايه او ټېر. مراد: د آس وغيره ګاډۍ (ټانګه). ﴿دابة﴾ چارپای، څاروی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په يو کښتۍ کي مقتول وميندل سي، نو په هغه کښتۍ کي چي څومره خلک وي، پر هغوی ټولو قسامت او ديت واجبيږي برابره ده سواره (سپاريان) وي او که ملاحين او مالکان وي، بلکه وينا دا چي د قسامت او ديت په وجوب کي مالکان او مسافران ټوله برابر شريکان دي (همدا حکم د موټر، ګاډۍ، بس وغيره هم دی). او دا حکم د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُمُ الله په اجماع سره دی.

**سوال:** مخکي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا ذکر سو چي د کور وغيره پر مالکانو قسامت واجبيږي، نه پر سُکّان (اوسېدونکو). صرف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز سُکّان او مالکان په حکم کي سره برابر وه. نو دلته دا حکم څنګه اجماعي سو؟.

**جواب:** د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول وجه خو ښکاره ده ځکه هغه پر خپل مخکيني أصول دی. او پر طرفينو رَحِمَهُمَا الله مذکوره اعتراض واردېږي، نو هغو د دې جواب دا ورکړی دی چي کور او محله

له يوه ځايه بل ځای ته نه نقلول کيږي او کشتۍ نقلول کيږي (يا په بله وينا دا چي کور له اشياءِ غيرِ منقوله وو شخه دي او کښتۍ له اشياءِ منقوله او محوله وو شخه ده. او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر سکانو د قسامت او ديت وجوب صرف په غيرِ منقوله شيانو کي جاري کيږي)، نو ځکه د چارپای په څېر په کښتۍ کي هم د ملکيت اعتبار نه دی سوی بلکي صرف د ظاهري قبضې اعتبار سوی دی، او پر کښتۍ د دوی ټولو قبضه ده، برابره ده هغه سپاريان دي او که مالکان دي.

وكذا العجلة إلخ: فرمايي چي کوم حکم د کښتۍ او بېړۍ دی، هغه د ګاډۍ هم دی.

## دِ يو مسجد په محله کي د ميندل سوي مقتول د قسامت حکم

قَالَ: وَإِنْ وُجِدَ فِي مَسْجِدِ مَحَلَّةٍ فرمايي: او که د محلې په مسجد کي مقتول وميندل سي فَالْقَسَامَةُ عَلَى أَهْلِهَا نو قسامت د هغه محلې پر خلکو واجبيږي لِأَنَّ التَّدْبِيرَ فِيهِ إِلَيْهِمْ ځکه د مسجد په باره کي تدبير [نظم او انتظام] همدوی ته حاصل دی وَإِنْ وُجِدَ فِي الْمَسْجِدِ الْجَامِعِ أَوِ الشَّارِعِ الْأَعْظَمِ او که په جامع مسجد يا په لوی سړک [عمومي لاره] کي مقتول وميندل سي فَلَا قَسَامَةَ فِيهِ نو په دې کي قسامت نسته وَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او ديت پر بيت المال دی لِأَنَّهُ لِلْعَامَّةِ لَا يَخْتَصُّ بِهِ وَاحِدٌ مِنْهُمْ ځکه دا [جامع مسجد او عام سړک] د عامو خلکو لپاره وي چي د هغه سره د دوی يو سړی خاص نه وي وَكَذَا الْجُسُورُ لِلْعَامَّةِ او همدارنګه پُلونه د عامو خلکو لپاره وي وَمَالُ بَيْتِ الْمَالِ مَالُ عَامَّةِ الْمُسْلِمِينَ او بيت المال د عامو مسلمانانو مال دی.

**اللغات:** ﴿شارع﴾ سړک، عمومي لاره. ﴿جسور﴾ جمع د جَسْرٌ او جِسْرٌ ده: پُل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د محلې په مسجد کي مقتول وميندل سي، نو د هغه ديت پر اهل محله وو واجبيږي؛ ځکه د محلې د مسجد نظم او انتظام د اهل محلې په غاړه دی، لهذا د محلې د مسجد د مقتول ديت به هم پر اهل محلې واجب وي.

وإن وجد إلخ: د دې حاصل دا دی چي که په جامع مسجد کي يا پر عام سړک مقتول وميندل سي يا پر يو پُل باندي مقتول وميندل سي، نو د دغه مقتول په باره کي قسامت نسته، خو پر بيت المال د هغه ديت واجبيږي؛ ځکه جامع مسجد، يا عام سړک يا پُل د يو مخصوص کس په ملکيت کي نه وي بلکي هر خاص او عام ته له دې شيانو شخه د استفاده کولو حق او اختيار وي، او شرنګه چي بيت

المال هم د عامو مسلمانانو دی، نو ځکه د دغه مقتول دیت به له همدې بیت المال څخه اداء کول کیږي.

په دې سلسله کې د حضرت علي رضي الله عنه فرمان هم دلیل دی چې هغه په عرفات کې د میندل سوي مقتول په هکله حضرت عمر رضي الله عنه ته فرمایلي وه "یا أمیرَ المؤمنین! لا یبطل دم امرأ مسلم إن علمتَ قاتله. وإلا فأعط دیته من بیت المال" (اې امیر المؤمنین! د هیڅ یو مسلمان کس وینه باطله او ضایع کیږي نه. که تاسي د هغه قاتل پېژنی نو سمه ده. کنې له بیت المال څخه د هغه دیت اداء کړئ). (نتائج ۱۲ ۴۳۷)

## په بازار کي د میندل سوي مقتول د قسامت او دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ فِي السُّوْقِ او که مقتول په بازار کي ومیندل سي إِنْ كَانَ مَمْلُوْكًا نو که هغه بازار [دیو چا] په ملکیت کي وي فَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ تَجِبُ عَلَى السُّكَّانِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دیت پر اوسېدونکو واجبیږي وَعِنْدَهُمَا عَلَى الْمَالِكِ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مالک [واجبیږي] وَإِنْ لَّمْ يَكُنْ مَمْلُوْكًا او که هغه بازار [د چا] په ملکیت کي نه وي كَالشَّوَارِعِ الْعَامَّةِ الَّتِيْ بُنِيَتْ فِيْهَا لکه هغه عام سړکونه چي بازارونه پکښې جوړول کیږي فَعَلَى بَيْتِ الْمَالِ نو [دیت] پر بیت المال دی لِأَنَّهُ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِيْنَ ځکه چي دا بازار د مسلمانانو د ټولني [عامو مسلمانانو] لپاره دی.

**اللغات:** ﴿شوارع﴾ جمع د شَارِعٌ ده: سړک. عمومي لاره. ﴿بنیت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: جوړول. تعمیرول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په یو بازار (او مارکېټ) کي مقتول ومیندل سي. نو دې ته به کتل کیږي چي هغه بازار (یا مارکېټ) د چا په ملکیت کي دی. که نه؟ که اول صورت وي. یعني هغه بازار د یو چا په ملکیت کي وي (یا په بله وینا دا چي بازار خپل مالک لري). نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د بازار پر مالک دیت واجبیږي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د بازار پر اوسېدونکو دیت واجبیږي. برابره ده هغوی د بازار له مالکانو څخه وي که نه وي. او که دویم صورت وي یعني بازار د یو چا په ملکیت کي نه وي لکه په عامو لارو کي جوړ سوي بازارونه. نو په دې صورت کي به د مقتول دیت له بیت المال څخه اداء کول کیږي: ځکه چي دا بازار هم د عامو مسلمانانو دی او بیت المال هم د عامو مسلمانانو دی. نو ځکه مذکوره دیت به له همدې بیت المال څخه اداء کول کیږي.

## په زندان کې د میندول سوي مقتول د قسامت او دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ فِي السِّجْنِ او که مقتول په زندان [بندیخانه] کې ومیندل سي فَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ نو دیت پر بیتُ المال [واجب] دی وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ الدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ عَلَى أَهْلِ السِّجْنِ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول مطابق دیت او قسامت پر زندان والا [واجب] دي لِأَنَّهُمْ سُكَّانٌ ځکه همدوی [د زندان] اوسېدونکي دي وَوِلَايَةُ التَّدْبِيرِ إِلَيْهِمْ او د تدبیر ولایت [او اختیار] همدوی لره دی وَالظَّاهِرُ أَنَّ الْقَتْلَ حَصَلَ مِنْهُمْ او ښکاره دا ده چي قتل د همدوی له طرفه حاصل سوی دی وَهُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ أَهْلَ السِّجْنِ مَقْهُورُونَ او طرفین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د زندان والا [زندانیان] مغلوبه کړل سوي دي فَلَا يَتَنَاصَرُونَ نو ځکه دوی مدد نه سي کولای فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِمْ مَا يَجِبُ لِأَجْلِ النُّصْرَةِ نو د دوی سره به هغه حکم نه متعلق کیږي کوم چي د مدد په وجه واجبیږي وَلِأَنَّهُ بُنِيَ لِاسْتِيفَاءِ حُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ او ځکه چي زندان د مسلمانانو د حقوقو داخیستلو لپاره جوړ سوی دی فَإِذَا كَانَ غُنْمُهُ يَعُودُ إِلَيْهِمْ لهذا کله چي د زندان منفعت مسلمانانو ته راجع کیږي فَغُرْمُهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِمْ نو د هغه تاوان به [هم] پر دوی راجع کیږي قَالُوا: وَهٰذِهِ فُرَيْعَةُ الْمَالِكِ وَالسَّاكِنِ مشایخ رَحِمَهُمُ الله فرمایي: او دا مسئله د مالک او اوسېدونکي [د مسئلې] فرع ده وَهِيَ مُخْتَلَفٌ فِيهَا بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او په هغه [د مالک او ساکن په مسئله] کې د امام صاحب او امام ابو یوسف رَحِمَهُمَا الله تر مینځ اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿سجن﴾ زندان، جېل، بندیخانه، جمع: سُجُوْن. ﴿سكّان﴾ جمع د سَاكِنٌ ده: اوسېدونکی. ﴿غُنم﴾ منفعت، غنیمت. ﴿غُرم﴾ تاوان، جرمانه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په زندان او بندیخانه کې مقتول ومیندل سي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه دیت پر بیتُ المال واجبیږي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د هغه دیت او قسامت پر بندیانو (زندانیانو) واجبیږي؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز په داسي صورت کې پر اوسېدونکو (سُكّانو) باندي یت واجبیږي او د زندان اوسېدنکي خو همدا بندیان دي او په زندان کې د تدبیر ولایت او اختیار همدوی ته حاصل دی، لهذا د زندان د مقتول دیت به هم پر بندیانو او قیدیانو واجب وي، او بل دا چي په زندان کې صرف بندیان اوسیږي. نو ښکاره همدا ده

چي د قتل کار به د همدوی له طرفه ترسره سوی وي، نو ځکه د هغه ضمان او تاوان به پر همدوی واجب وي.

وهما يقولان إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي په زندان کي بندي کړل سوي خلک خپله مغلوبه او مدد ته محتاجه وي او د چا نصرت نه سي کولای. لهذا د زندان د مقتول دیت او تاوان کوم چي د نصرت پر ښوولو په وجه واجبیږي، هغه به پر دې بندیانو واجب نه وي بلکي د زندان د مقتول دیت به پر بیت المال واجب وي؛ ځکه زندان د عامو مسلمانانو د حق اخیستلو لپاره جوړول کیږي او د زندان سره د عامو مسلمانانو نفع متعلق وي، نو ځکه د زندان سره متعلق ضمان او تاوان به هم د مسلمانانو سره متعلق وي او د همدې مسلمانانو له بانک (بیت المال) څخه به اداء کول کیږي.

قالوا وهٰذه إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي مشایخو د زندان والا مسئله د مالک او ساکن (اوسېدونکي) د مسئلې فرع ګرځولې ده او د مالک او ساکن په مسئله کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی، د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز په هغه مسئله کي پر ساکن (اوسېدونکي) ضمان واجب دي؛ نو ځکه دلته هم د هغه په نېز د زندان پر سکّانو یعني پر بندیانو ضمان واجب دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په هغه مسئله کي پر مالک ضمان واجب دی. نو ځکه دلته هم د هغه په نېز د زندان پر مالکانو یعني پر عامةُ المسلمین ضمان واجب دی چي دا ضمان (دیت) به د مسلمانانو له بیت المال څخه اداء کول کیږي.

## په دښت او صحرا کي د میندل سوي مقتول د قسامت او دیت حکم

قَالَ: وَإِنْ وُجِدَ فِي بَرِّيَّةٍ فرمایي: او که مقتول په یو داسي دښت کي ومیندل سي لَيْسَ بِقُرْبِهَا عِمَارَةٌ چي هغه ته نژدې څه آبادي [ودانی] نه وي فَهُوَ هَدَرٌ نو هغه هدر [او ضایع] دی وَتَفْسِيرُ الْقُرْبِ مَا ذَكَرْنَا مِنِ اسْتِمَاعِ الصَّوْتِ او د قُرب [نژدې والي] تفسیر هاغه دی کوم چي موږ ذکر کړی یعني آواز اورېدل لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ بِهٰذِهِ الْحَالَةِ ځکه کله چي مقتول پر دې حالت وي لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ مِنْ غَيْرِهِ نو هغه ته د بل چا مدد نه سي رسېدلای فَلَا يُوصَفُ أَحَدٌ بِالتَّقْصِيرِ نو ځکه هیڅوک به په کوتاهي [او لاپروایي] کولو سره نه متصف کیږي وَهٰذَا إِذَا لَمْ تَكُنْ مَمْلُوكَةً لِأَحَدٍ او دا حکم هغه وخت دی کله چي هغه دښت د یو چا په ملکیت کي نه وي أَمَّا إِذَا كَانَتْ لیکن که هغه [د یو چا په ملکیت کي] وي فَالدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو دیت او قسامت د دښت د مالک پر عاقله وو [واجب] دي.

**اللغات**: ﴿برية﴾ دښت، صحرا، بیابان. ﴿عمارة﴾ آبادي. وداني. ﴿هدر﴾ بې بدلې، ضایع. باطل. ویل کیږي: دَمُهٗ هَدر: د هغه خون ضایع سو (بدله یې چا نه واخیستل). ﴿قُرب﴾ نژدېکت. نژدې والی. ﴿غوث﴾ کومک او مدد. کومکي او غاورسي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که په یو دښت کي مقتول ومیندل سي او هغه دښت د هیچا په ملکیت کي نه وي او نه هغه ته دومره نژدې یو آبادي (وداني) وي چي له هغه ځایه د مقتول آواز آبادۍ ته رسېدلای سي نو په دې صورت کي د مقتول وینه هدر او ضایع کیږي او پر هیچا هم د هغه قسامت او دیت نه واجبیږي: ځکه کله چي دښت ته هیڅ آبادي (وداني) نژدې نه وي نو په دې صورت کي مقتول ته هیڅ کومکي او غاورسي نه سي راتللای چي د هغه حفاظت وکړي. لهذا په نه ورتګ او حفاظت نه کولو کي د هیچا له طرفه تقصیر او لا پروایي نه ده سوې، نو ځکه د دې مقتول وینه (خون) هدر کیږي.

لېکن که هغه دښت د یو چا په ملکیت کي وي، نو بیا د دښت د مالک پر عاقله وو قسامت او دیت واجبیږي.

## د دوو کلو یا د دریاب په مینځ کي د میندل سوي مقتول د قسامت او دیت حکم

وَإِنْ وُجِدَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ او که مقتول د دوو کلو تر مینځ ومیندل سي كَانَ عَلَى أَقْرَبِهِمَا نو ضمان [دیت] د هغوی دواړو پر نژدې کلي والا دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او موږ [مخکي] د دې بیان کړی دی وَإِنْ وُجِدَ فِي وَسَطِ الْفُرَاتِ يَمُرُّ بِهِ الْمَاءُ او که مقتول د دریاء فرات په مینځ کي ومیندل سي چي اوبو اخیستی وي فَهُوَ هَدَرٌ نو هغه هدر دی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي يَدِ أَحَدٍ وَلَا فِي مِلْكِهِ ځکه دریاء فرات نه د یو چا په قبضه کي دی او نه د یو چا په ملکیت کي دی.

**اللغات**: ﴿فرات﴾ د یو مشهوره دریاب نوم دی کوم چي په عراق او داسي نورو هیوادانو کي تېر سوی دی.

**تشریح**: دا مسئله مخکي تېره سوې ده چي که مقتول د دوو کلو تر مینځ ومیندل سي، نو په دې صورت کي پر نژدې کلي والا وو قسامت او دیت واجبیږي چي د هغه دلیل هم مخکي بیان سو.

ـ ویمه مسئله دا ده چي که د لوی دریاب مثلاً د دریاء فرات په مینځ کي یو مقتول ومیندل سي چي د اوبو څپو اخیستی وي، نو د داسي مقتول وینه (خون) هدر او ضایع دی یعني د هغه دیت پر هیچا واجب نه دی: ځکه دریاء فرات خو نه د چا په قبضه کي دی او نه پر هغه د چا ملکیت دی، او ذلته په همدې دوو شیانو سره ضمان (دیت) واجبیږي، لهذا کله چي دا دواړه شیان (قبضه او ملکیت) معدوم دي، نو ضمان به هم واجب نه وي.

## د درياب پر غاړه د ميندل سوي مقتول د قسامت او ديت حکم

وَإِنْ كَانَ مُحْتَبَسًا بِالشَّاطِئِ او که مقتول د درياب په غاړه کي ايسار [او پساو] وي فَهُوَ عَلَى أَقْرَبِ الْقُرَىٰ مِنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ نو ضمان پر هغه کلي والا [واجب] دی کوم چي دې ځای ته ډېر نژدې وي عَلَى التَّفْسِيْرِ الَّذِي تَقَدَّمَ د هغه تفسير مطابق کوم چي مخکي تېر سو [يعني چي له دې ځای څخه کلي ته آواز رسېدلای سي] لِأَنَّهُ أَخَصُّ بِنُصْرَةِ هٰذَا الْمَوْضِعِ ځکه چي هغه [نژدې کلي والا] د دې ځای د نصرت سره خاص دي فَهُوَ كَالْمَوْضُوْعِ عَلَى الشَّطِّ نو هغه [مقتول] داسي دی لکه د درياب پر غاړه [څنډه] ايښوول سوی وَالشَّطُّ فِيْ يَدِ مَنْ هُوَ أَقْرَبُ مِنْهُ او غاړه [څنډه] د هغه چا په قبضه کي ده کوم چي غاړي ته نژدې دي أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُمْ يَسْتَقُوْنَ مِنْهُ الْمَاءَ وَيُوْرِدُوْنَ بَهَائِمَهُمْ فِيْهَا آيا ته نه ګورې! چي هغوی له دې ځای څخه اُوبه وړي او هلته خپل څارويان راولي بِخِلَافِ النَّهْرِ الَّذِيْ يُسْتَحَقُّ بِهِ الشُّفْعَةُ په خلاف د هغه نهر چي د هغه په ذريعه [خلک] د شفعي مستحق کيږي لِاخْتِصَاصِ أَهْلِهَا بِهِ ځکه دا شفعي والا خلک مختص دي د هغه نهر سره لِقِيَامِ يَدِهِمْ عَلَيْهِ ځکه پر هغه نهر د دوی قبضه ده فَتَكُوْنُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَيْهِمْ نو ځکه قسامت او ديت به پر همدوی [واجب] وي.

**اللغات:** ﴿محتبس﴾ د افتعال د باب فاعل دی: راګر ځول سوی. بند او ايسار. پساو، ﴿الشاطئ﴾ د درياب او والې غاړه (څنډه)، کناره. ژی. او همدا د الشَّطّ معنیٰ ده. ﴿قُرىٰ﴾ جمع د قريةٌ ده: غټ کلی. قبصه. هغه سيمه چي يو بل ته نژدې ډېري ودانۍ (استوګنځی) او کوروته کښې جوړ سوي وي. ﴿يستقون﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: د اوبو طلب کول. له ځاه وغيره څخه اوبه را اخيستل او وړل. ﴿يوردون﴾ د افعال له بابه مخکنۍ صيغه ده: واردول او حاضرول. راوړل. ﴿بهائم﴾ جمع د بَهِيْمَةٌ ده: چارپای.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که د يو درياب په غاړه (کناره) کي مقتول وميندل سي. نو کوم کلی چي دې غاړي ته زيات نژدې وي، د هغه کلي پر خلکو د دغه مقتول قسامت او ديت واجبيږي. په دې شرط چي هغه کلی پر دومره فاصله وي چي له دې غاړي څخه هلته د مقتول آواز رسېدلای سي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "على التفسير الذي تقدّم" سره همدې د آواز رسېدلو وطرف ته اشاره کړې ده. لنډه دا چي داسي مقتول پر غاړه (څنډه) باندي د ايښوول سوي مقتول په څېر دی. او د

درياب غاړه (څنډه) د همدې کلي والا په قبضه کې ده. نو ځکه د مذکوره مقتول ديت به هم پر هغو واجب وي: ځکه چې د دې ځاى او د مقتول نصرت او څارنه د همدوى ذمه واري وه. لېکن دوى په دې هکله کوتاهي او لا پرواېي کړې ده. نو ځکه د هغه تاوان به هم دوى زغمي. او د دې خبرې دليل چې دا غاړه د نژدې کلي والا په قبضه کې ده دا دى چې دغه کلي والا له همدې ځاى څخه اوبه وړي او همدلته خپل څاروبان راولي او اُوبوي. ښکاره خبره ده چې که دا غاړه د دوى په قبضه کې نه واى. نو دوى ته به دومره اختيار نه واى. معلومه سوه چې د دې غاړې سره همدوى مختص دي. نو دلته د ميندل سوي مقتول ديت به پر همدوى واجب وي.

بخلاف النهرالخ: يعني که د کوچني نهر (والې) پر غاړه يو مقتول وميندل سي چې په هغه نهر (واله) کې څو خلک شريکان وي او د شرکت په وجه د شفعې مستحقين وي، نو د دې مقتول قسامت او ديت پرهمدوى واجب دى: ځکه پر کوچنى والې د همدوى قبضه وي او همدوى د هغه سره مختص وي. نو ځکه هلته د ميندل سوي قسامت او ديت به پر همدوى واجب وي.

## که ولي د مقتول د محلې پر يو معيّن کس د قتل دعوىٰ وکړي نو څه حکم دى؟

| |
|---|
| قَالَ : وَإِنِ ادَّعَى الْوَلِيُّ عَلَى وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِعَيْنِهِ فرمايي : او که [د مقتول] ولي له محلې والا وو څخه پر يو معيّن کس [د قتل] دعوىٰ وکړي لَمْ تَسْقُطِ الْقَسَامَةُ عَنْهُمْ نو له محلې والا وو څخه قسامت نه ساقطيږي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا [مخکې] ذکر کړي دي وَذَكَرْنَا فِيهِ الْقِيَاسَ وَالِاسْتِحْسَانَ او په دې کې موږ قياس او استحسان ذکر کړي دي. |

**تشريح**: صورت د مسئلې بالکل واضح دى او تقريباً ۱۲ - ۱۳ صفحې مخکې د دې پوره تفصيل تېر سوى دى.

## که د مقتول ولي له محلې والا وو څخه بغير پر بل چا د قتل دعوىٰ وکړي نو څه حکم دى؟

| |
|---|
| قَالَ : وَإِنِ ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ فرمايي : او که [د مقتول] ولي له اهل محلې څخه بغير پر بل چا [د قتل] دعوىٰ کړې وي سَقَطَتْ عَنْهُمْ نو له هغو [اهل محله] څخه قسامت ساقطيږي وَوَجْهُ الْفَرْقِ قَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او وجه د فرق موږ مخکې بيان کړې ده وَهُوَ أَنَّ وُجُوبَ الْقَسَامَةِ عَلَيْهِمْ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ الْقَاتِلَ مِنْهُمْ او هغه دا چې پر اهل محله وو د قسامت وجوب د دې خبرې دليل دى چې قاتل له |

همدوی څخه دی فَتَعْیِیْنُهُ وَاحِدًا مِنْهُمْ لَا یُنَافِیْ ابْتِدَاءَ الْأَمْرِ نو له دوی څخه د یوه کس متعینول د امر د شروع منافي نه دي لِأَنَّهُ مِنْهُمْ ځکه چي هغه [متعین سوی کس] له همدوی څخه دی بِخِلَافِ مَا إِذَا عَیَّنَ مِنْ غَیْرِهِمْ په خلاف د هغه صورت کله چي ولي له اهلِ محلې څخه بغیر بل څوک متعین کړی وي لِأَنَّ ذٰلِكَ بَیَانُ أَنَّ الْقَاتِلَ لَیْسَ مِنْهُمْ ځکه دا [بل څوک متعینول] د دې خبري وضاحت کول دي چي قاتل له اهل محلې څخه نه دی وَهُمْ إِنَّمَا یَغْرَمُوْنَ إِذَا کَانَ الْقَاتِلُ مِنْهُمْ او دوی [اهل محله] همغه وخت ضامن کیږي کله چي قاتل له دوی څخه وي لِکَوْنِهِمْ قَتَلَةً تَقْدِیْرًا ځکه [په دې صورت کي] دوی تقدیراً قاتلان دي حَیْثُ لَمْ یَأْخُذُوْا عَلٰی یَدِ الظَّالِمِ په دې حیثیت سره چي دوی د ظالم لاس نه دی نیولی وَلِأَنَّ أَهْلَ الْمَحَلَّةِ لَا یَغْرَمُوْنَ بِمُجَرَّدِ ظُهُوْرِ الْقَتِیْلِ بَیْنَ أَظْهُرِهِمْ او ځکه چي محض د محلې والا په مینځ کي د مقتول د ښکاره کېدلو په وجه محلې والا نه ضامن کیږي إِلَّا بِدَعْوَی الْوَلِیِّ مګر د ولي په دعویٰ سره [ضامن کیږي] فَإِذَا ادَّعَی الْقَتْلَ عَلٰی غَیْرِهِمْ نو کله چي ولي له دوی څخه بغیر پر بل چا قتل دعویٰ وکړه اِمْتَنَعَ دَعْوَاهُ عَلَیْهِمْ نو پر اهل محله.وو د هغه دعویٰ ممتنع سوه وَسَقَطَ لِفَقْدِ شَرْطِهِ او تاوان ساقط سو د تاوان د شرط د نشتوالي په وجه [چي هغه شرط د ولي دعویٰ ده].

**اللغات:** ﴿یغرمون﴾ د سمع له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده: ضامن کېدل. ضمان (تاوان) پرې لازمېدل. تاوان اداء کول. ﴿قتلة﴾ جمع د قَاتِلٌ ده: قتل کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په یو محله کي مقتول ومیندل سي او د مقتول ولي د هغه محلې له خلکو څخه بغیر پر یو بل جلا سړي د قتل دعویٰ وکړي. نو په دې صورت کي له هغه محلې والا وو څخه قسامت او دیت دواړه ساقطیږي: ځکه کله چي له محلې والا څخه بغیر په بل چا باندي د قتل دعویٰ سوې ده. نو د محلې والا هر فرد له دغه دعوې څخه خارج دی. لهذا د دوی پر هیڅ فرد به هم قسامت او دیت واجب نه وي. ها! که چیري د مقتول ولي پر هغه محلې والا وو د قتل دعویٰ کړې وي نو بیا قسامت او دیت پر دوی ټولو واجبیږي چي له دوی څخه به پنځوس افراد قسم اخلي (لکه مخکي چي ذکر سوه)؛ ځکه پر محلې والا وو د قسامت وجوبَ د دې خبري دلیل دی چي قاتل له همدوی څخه یو کس دی همداسي کله چي ولي له مخلې والا وو څخه یو کس متعین کړی وي نو

هم پر دوی ټوله قسامت او ديت واجبيږي: ځکه د شروع په صورت کي (يعني کله چي ولي پر ټوله محلې والا وود قتل دعویٰ کړې وي) هم ټوله محلې والا قاتلان شمېرل سوي دي او په دويم صورت کي (يعني کله چي ولي له دوی څخه يو کس متعين کړی وي) هم تقديراً دوی ټوله قاتلان دي: ځکه پر دوی دا لازم وه چي د قاتل لاس ونيسي او هغه له ظلم او قتل څخه را وګرځوي.

**بخلاف ما إذا عيّن إلخ:** يعني کله چي ولي له محلې والا وو څخه بغير بل څوک متعيّن کړی وي او قاتل بل څوک وي، نو په دې صورت کي خو هغه محلې والا نه حقيقتاً د مقتول قاتلان دي او نه تقديراً. نو ځکه په دې صورت کي پر دوی نه قسامت واجبيږي او نه ديت: او په دې صورت کي پر دوی د ديت نه واجبېدلو يوه وجه دا هم ده چي پر محلې والا وو فقط په محله کي د مقتول مېندل کېدلو په وجه ديت نه واجبيږي. بلکي هغه وخت واجبيږي کله چي د مقتول ولي پر دوی د قتل دعویٰ کړې وي. او دلته ولي پر بل چا د قتل دعویٰ کړې ده. نو ځکه اوس ولي پر محلې والا وو دعویٰ نه سي کولای کنې د هغه په دعویٰ کي تناقض لازميږي. نو دلته پر محلې والا وو د تاوان واجبېدلو شرط مفقود دی. نو ځکه پر دوی ديت نه واجبيږي.

**که يو قوم جنګ سره وکړي او په دې مېنځ کي يو مقتول ومېندل سي نو د قسامت او ديت حکم**

قَالَ: وَإِذَا الْتَقَى قَوْمٌ بِالسُّيُوفِ فرمايي: او کله چي يو قوم په خپل مېنځ کي په تورو سره وجنګيږي فَأَجْلَوْا عَنْ قَتِيلٍ بيا هغوی [خپل تر شا] يو مقتول پرېږدي فَهُوَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ نو هغه [د ديت وجوب] پر محلې والا وو دی لِأَنَّ الْقَتِيلَ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ ځکه مقتول د دوی تر مېنځ [مېندل سوی] دی وَالْحِفْظُ عَلَيْهِمْ او [د هغه] حفاظت پر دوی [ضروري] وو إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَ الْأَوْلِيَاءُ عَلَى أُولَئِكَ مګر دا چي وليان پر هغوی [جنګ کونکو] باندي د قتل دعویٰ وکړي أَوْ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ بِعَيْنِهِ يا له هغوی څخه پر يو متعيّن کس [د قتل دعویٰ وکړي] فَلَمْ يَكُنْ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ شَيْءٌ نو بيا پر محلې والا وو هيڅ شی نسته لِأَنَّ هَذِهِ الدَّعْوَى تَضَمَّنَتْ بَرَاءَةَ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ عَنِ الْقَسَامَةِ ځکه چي دا دعویٰ له قسامت څخه د محلې والا برې کېدلو لره متضمنه ده قَالَ: وَلَا عَلَى أُولَئِكَ حَتَّى يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ فرمايي: او نه پر هغو [جنګ کونکو] باندي [ديت او قسامت] سته تر دې چي د مقتول وليان بينه پېش کړي لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوَى لَا يَثْبُتُ الْحَقُّ ځکه يوازي په دعوې سره حق نه ثابتيږي لِلْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ د هغه

حديث په وجه کوم چي مونږ روايت کړی أَمَا يَسْقُطُ بِهِ الْحَقُّ عَنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ خو د دعوې په وجه له اهلې محلې څخه حق ساقطيږي لِأَنَّ قَوْلَهُ حُجَّةٌ عَلَىٰ نَفْسِهِ ځکه د مدعي [ولي المقتول] قول د هغه پر خپل ځان حجت دی.

**اللغات**: ﴿التقیٰ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: يو د بل سره مخامخ کېدل. يو د بل سره يو ځای کېدل. مقابله کول. ﴿أجلوا﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي: وتل. ايستل. پرېښوول. لکه څرنګه چي ويل کيږي: أجلی الرجل منزله: فلانکي سړي د بيري په وجه خپل کور پرېښوو. أجلوا عن القتيل: دوی خپل تر شا مقتول پرېښوو او وتښتېدل. ﴿تضمنت﴾ د تفعل له بابه ماضي ده: ضمناً شاملېدل. مشتمل کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د يو قوم او جماعت افراد (د قوميت وغيره پر بناء) په خپل مينځ کي جګړه وکړي او کله چي دوی د جنګ له ځای څخه جلا او ولاړ سي نو هلته يو مقتول وميندل سي. نو د دې حکم دا دی چي که چيري د مقتول وليان پر جنګ کونکو يا د هغو پر يو معين کس د قتل دعوىٰ نه وکړي، نو د دې مقتول ديت پر محلې والا وو لازميږي: ځکه مقتول د همدوی په مينځ کي ميندل سوی دی او پر همدوی د هغه حفاظت ضروري وو. خو هغو په حفاظت کي کوتاهي او لا پروايي کړې ده. نو ځکه همدوی به د هغه ضمان اداء کوي. لېکن که د مقتول وليان پر جنګ کونکو يا د هغو پر يو معين کس د قتل دعوىٰ وکړي. نو بيا پر محلې والا وو قسامت او ديت نه واجبيږي: ځکه په جنګ کونکو (مقاتلينو) باندي د قتل دعوىٰ د دې خبرې دليل دی چي قاتل له محلې والا وو څخه نه دی او د دې قتل سره د محلې والا وو هيڅ تعلق نسته. نو ځکه په دې صورت کي پر دوی قسامت او ديت نه واجبيږي. لېکن تر څو چي د مقتول وليان د جنګ کونکو په خلاف بينه پېش نه کړي. تر هغه وخته پوري په جنګ کونکو (مقاتلينو) باندي قسامت او ديت نه واجبيږي. ځکه بغير له بينې يوازي په دعوىٰ سره حق نه ثابتيږي: ځکه په حديث کي ذکر سوي دي "البيّنة على المدعى واليمين على من أنكر" يعني بيّنه پېشول پر مدعي لازم دي او قسم اخيستل پر منکر. لهذا تر څو چي مدعي يعني د مقتول وليان د جنګ کونکو په خلاف پر قتل بينه پېش نه کړي. تر هغه وخته پوري پر دوی قسامت او ديت نه واجبيږي. لېکن په جنګ کونکو باندي د دعوې کولو په وجه له

محلي والا وو څخه د مدعي حق يعني قسامت او ديت ساقطيږي : ځکه د دې حق سقوط د مدعي د دعوې په وجه سوی دی او د مدعي قول د هغه د خپل حق په اسقاط کې حجت دی. لهذا دا دعوی هيڅ بينې ته محتاجه نه ده او له بينې څخه بغير هم (د مدعي د قسامت او ديت حق) ساقطيږي.

## په ايسار سوي لښکر کي د ميندل کېدونکي مقتول د قسامت او ديت حکم

وَلَوْ وُجِدَ قَتِيلٌ فِي مُعَسْكَرٍ او که يو مقتول په [داسي] لښکرځای کي وميندل سي أَقَامُوا بِفَلَاةٍ مِنَ الْأَرْضِ لَا مِلْكَ لِأَحَدٍ فِيهَا کوم چي په يو داسي ډګر کي مقيم [تم سوی] وي چي هغه د هيچا په ملکيت کي نه وي فَإِنْ وُجِدَ فِي خِبَاءٍ أَوْ فُسْطَاطٍ نو که مقتول په يو خېمه يا کېږدۍ کي وميندل سي فَعَلَى مَنْ يَسْكُنُهَا الدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ نو پر هغو خلکو کوم چي په هغه [خېمه وغيره] کي اوسيږي ديت او قسامت [واجب] دي وَإِنْ كَانَ خَارِجًا مِنَ الْفُسْطَاطِ او که مقتول له خېمې څخه بهر [ميندل سوی] وي فَعَلَى أَقْرَبِ الْأَخْبِيَةِ نو پر دې نژدې خېمې والا وو [واجب] دي اِعْتِبَارًا لِلْيَدِ عِنْدَ انْعِدَامِ الْمِلْكِ د ملکيت د نشتوالي په صورت کي د قبضې په اعتبار کولو سره.

**اللغات**: ﴿معسکر﴾ لښکر ځای (لښکر ګاه). چوڼۍ. ﴿فلاة﴾ خالي ميدان. ډګر. ﴿خباء﴾ خېمه. کوچنۍ خېمې او کوچني تمبو ته وايي. جمع: أَخْبِيَة. ﴿فسطاط﴾ لويه خېمه. کېږدۍ. (معجم لغة العربية المعاصرة)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو لښکر په دښت او بيابان کي مقيم او دمه وي او هغه دښت د يوچا په ملکيت کي نه وي. بيا د دې لښکر په يو خېمه او دمه ځای کي مقتول وميندل سي. نو په کومه خېمه او ځای کي چي مقتول ميندل سوی وي، د هغه پر اوسېدونکو قسامت او ديت واجبيږي. او که له خېمو څخه بهر مقتول ميندل سوی وي، نو کومه خېمه چي تر ټولو زياته نژدې وي. د هغه پر اوسېدونکو قسامت او ديت واجبيږي: ځکه مخکي دا خبره تېره سوه چي د ديت او قسامت وجوب د ملکيت سره متعلق کيږي او چيري چي ملکيت معدوم وي. هلته بيا قبضه د ملکيت قائم مقام منل کيږي او قسامت او ديت د قابض سره متعلق کيږي. او څرنګه چي دلته خېمه وغيره د اوسېدونکو په قبضه کي دي. نو ځکه پر همدوی به قسامت او ديت واجبول کيږي.

**که لښکر د خپل ښمن سره جګړه وکړه او بیا یو مقتول ومیندل سو نو د قسامت او دیت حکم**

وَإِنْ كَانَ الْقَوْمُ لَقُوْا قِتَالًا او که قوم [لښکر] د دښمن سره قتال [جنګ] کړی وي وَوُجِدَ قَتِيلٌ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ او د دوی په مینځ کي یو مقتول ومیندل سي فَلَا قَسَامَةَ وَلَا دِيَةَ نو نه قسامت سته او نه دیت لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْعَدُوَّ قَتَلَهُ ځکه ښکاره همدا ده چي دښمن هغه قتل کړی دی فَكَانَ هَدَرًا نو دا به هدر وي وَإِنْ لَمْ يَلْقَوْا عَدُوًّا او که قوم [لښکر] د دښمن سره قتال نه وي کړی فَعَلَى مَا بَيَّنَّاهُ نو دا پر هاغه تفصیل دی کوم چي موږ بیان کړی وَإِنْ كَانَ لِلْأَرْضِ مَالِكٌ او که د ځمکي یو مالک وي فَالْعَسْكَرُ كَالسُّكَّانِ نو بیا لښکر دا وسېدونکو په شېر دي فَيَجِبُ عَلَى الْمَالِكِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دیت پر مالک واجبیږي خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او دا [څه مخکي] موږ ذکر کړه.

**اللغات**: ﴿قِتَال﴾ د مفاعلې باب مصدر دی: جنګ (جګړه) کول. ﴿هَدَر﴾ او هَدْر د ضرب له بابه اسم مصدر دی: ضایع. باطل. بلا بدله. ﴿عسکر﴾ لښکر.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که په یو ځای کي لښکر د دښمن سره جنګ او مقاتله وکړي. بیا هلته په دوی کي یو مقتول ومیندل سي. نو پر لښکریانو قسامت او دیت نه واجبیږي: ځکه دلته غالب ګومان همدا دی چي دا مقتول د دښمن له طرفه وژل سوی دی نو ځکه د هغه وینه او خون به هدر وي. او که جنګ واقع نه سي. بلکي لښکر یو ځای مقیم او دمه وي. بیا یو مقتول پکښي ومیندل سي. نو د دې بیان څه مخکي تېر سو.

او که دا ځای او میدان (چیري چي لښکر والا مقیم وي) د یو چا په ملکیت کي وي. نو په دې صورت کي لښکر والا د سُکّان (اوسېدونکو) په حکم کي دي. چي په هغه کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف وو. یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر مالک ضمان واجبیږي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر مالک او اوسېدنکو (لښکریانو) ټولو باندي ضمان واجبیږي.

## که مُستحلف په بل چا د قتل دعویٰ وکړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا قَالَ الْمُسْتَحْلَفُ فرمايي: او کله چي قسم اخيستلی سوی کس ووايي ايعني له چا څخه چي د قتل نه کولو قسم اخيستل سوی وي. هغه ووايي| قَتَلَهُ فُلَانٌ چي هغه |مقتول| فلانکي قتل کړی دی اُسْتُحْلِفَ بِاللهِ مَا قَتَلْتُ نو له هغه څخه دي داسي قسم واخيستل سي چي په الله قسم ما هغه نه دی قتل کړی وَلَا عَرَفْتُ لَهُ قَاتِلًا غَيْرَ فُلَانٍ او نه له فلانکي څخه بغير زه د هغه بل قاتل پېژنم لِأَنَّهُ يُرِيدُ إِسْقَاطَ الْخُصُومَةِ عَنْ نَفْسِهِ بِقَوْلِهِ ځکه چي هغه |مُستحلف| په خپل قول سره له خپل ځانه د خصومت ساقطول غواړي فَلَا يُقْبَلُ نو د هغه قول به نه قبلول کيږي فَيَحْلِفُ عَلَى مَا ذَكَرْنَا نو ځکه په هغه توګه به قسم اخلي کوم چي موږ ذکر کړه لِأَنَّهُ لَمَّا أَقَرَّ بِالْقَتْلِ عَلَى وَاحِدٍ ځکه کله چي هغه پر يوه کس د قتل اقرار وکړی صَارَ مُسْتَثْنًى عَنِ الْيَمِينِ نو هغه کس |مقر عليه| له قسم څخه مستثنیٰ سو فَبَقِيَ حُكْمُ مَنْ سِوَاهُ نو له هغه |مقر عليه| څخه د ما سوا حکم باقي پاته سو فَيَحْلِفُ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه |ماسوا| به |هم| قسم اخلي.

**اللغات**: ﴿مُسْتَحْلَف﴾ د استفعال د باب مفعول دی: له کوم چا څخه چي قسم اخيستلی سوی وي. له چا چي څخه قسم اخيستلی کيږي. ﴿خصومة﴾ تنازع او دعویٰ (خصومة په اصل کي دې ته وايي چي يو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او هغه له حق څخه انکار کوي).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که د قتل د تحقيق او تفتيش په وخت کي مثلاً له زيد څخه قسم واخيستلی سي او هغه داسي قسم واخلي چي په الله قسم! دا مقتول فلانکي کس قتل کړی دی. نو محض په دې وينا سره هغه نه خلاصيږي بلکي د دې قسم د بشپړولو او مؤکد کولو لپاره به له هغه (زيد) څخه په داسي الفاظو قسم اخيستل کيږي "بِاللهِ مَا قَتَلْتُ وَلَا عَرَفْتُ لَهُ قَاتِلًا غَيْرَ فُلَانٍ" يعني په الله قسم! نه ما هغه قتل کړی دی او نه زه له فلانکي څخه بغير بل څوک د هغه قاتل پېژنم": ځکه کله چي هغه قسم واخلي چي فلانکي قتل کړی دی نو دا قسم تر اوسه نا بشپړ دی: ځکه کېدای سي چي فلانکي خو قتل کړی وي. خو د هغه سره به دئ (زيد) خپله هم شامل وي يا مثلاً د ده پلار وغيره به ور سره شامل وي. نو ځکه د قسم د تکميل لپاره به اوس په مذکوره الفاظو قسم ځني اخيستل کيږي.

**سوال:** په مذکوره قسم کي خو پر فلانکي د قتل اقرار نسته؟.

**جواب:** پر هغه خو مخکي د قتل اقرار سوی دی. لهذا اوس فلانکی (فلان) له قسم څخه مستثنیٰ سو او د قسم حکم له هغه څخه ما سوا پر نورو باقي پاته سو. نو ځکه اوس به له مُستحلَف (زید) څخه پر نورو قسم اخیستل کیږي چي دا پوره څرګنده سي چي نور کسان په دې قتل کي ور سره شریک دي که نه. او د دې طریقه هاغه ده کوم چي موږ ذکر کړه.

## که له محلې والا څخه دوه کسان پر بل چا د قتل ګواهي ورکړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ اثْنَانِ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ عَلَىٰ رَجُلٍ مِنْ غَيْرِهِمْ فرمايي: او کله چي له محلې والا وو څخه دوه کسان د داسي چا په خلاف کوم چي له دوی [محلې والا] څخه نه وي دا ګواهي ورکړي أَنَّهُ قَتَلَ چي هغه مقتول قتل کړی دی لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُمَا نو د هغه دواړو ګواهي به نه قبول کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا : تُقْبَلُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ګواهي به يې قبول کیږي لِأَنَّهُمْ كَانُوا بِعُرْضَةِ أَنْ يَصِيْرُوا خُصَمَاءَ ځکه دوی [محلې والا] په دې نښه سوي وه چي همدوی به خصم وګرځي [یا په بله وینا دا چي محلې والا د خصم جوړېدلو پر نښه وه، ځکه په محله کي د مقتول میندل کېدلو په وجه اصلاً محلې والا (د ولي القتل) خصم ګرځېدل] وَقَدْ بَطَلَتِ الْعُرْضَةُ بِدَعْوَى الْوَلِيِّ الْقَتْلَ عَلَىٰ غَيْرِهِمْ او دا [د دوی] نښه کېدل پر بل چا د ولي د قتل د دعوې کولو په وجه باطل سوه فَتُقْبَلُ شَهَادَتُهُمْ نو ځکه د دوی ګواهي به قبول کیږي كَالْوَكِيْلِ بِالْخُصُوْمَةِ إِذَا عُزِلَ قَبْلَ الْخُصُوْمَةِ لکه د خصومت کولو وکیل چي کله له خصومت څخه معزوله کړی سي وَلَهُ: أَنَّهُمْ خُصَمَاءُ بِإِنْزَالِهِمْ قَاتِلِيْنَ لِلتَّقْصِيْرِ الصَّادِرِ مِنْهُمْ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي دوی [محلې والا] خصم دي د کوتاهي [او لاپروایي] په وجه کوم چي له دوی څخه صادره سوې ده فَلَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُمْ وَإِنْ خَرَجُوْا مِنْ جُمْلَةِ الْخُصُوْمِ نو ځکه د دوی ګواهي به نه قبول کیږي که څه هم دوی د خصمونو له ډولې څخه وتلي دي كَالْوَصِيِّ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْوِصَايَةِ بَعْدَ مَا قَبِلَهَا لکه وصي چي کله له وصایت [وصي کېدلو] څخه ووځي د وصایت له قبلولو څخه وروسته ثُمَّ شَهِدَ بیا ګواهي

ورکړي [نو ګواهي يې نه قبلول کيږي] قَالَ ﷺ : وَعَلٰى هٰذَيْنِ الْأَصْلَيْنِ يَتَخَرَّجُ كَثِيْرٌ مِنَ الْمَسَائِلِ مِنْ هٰذَا الْجِنْسِ او پر همدې دوو اصلونو د دغه جنس زيات مسائل متفرع کيږي.

**اللغات:** ﴿عُرْضَة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: هدف او نښه. نښانه لکه څرنګه چې ويل کيږي: هو عُرضة للناس: هغه د خلکو د اعتراضاتو نښه ده. وجعلتُه عُرضةً: ما هغه خپل نښه او هدف وګرځوی. ﴿خصماء﴾ جمع د خَصْمٌ ده: د جنګ او دعوې يو طرف والا (يو فريق). يعني مدعي ته هم ويل کيږي او مدعیٰ عليه ته هم. ﴿وکيل بالخصومة﴾ د خصومت کولو او دعوې پېشولو وکيل (کوم چې د مدعي يا مدعیٰ عليه پر ځای د قاضي مخ ته د دعوی ثابتولو يا ردولو لپاره حاضر سي). ﴿عزل﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده: معزوله کول. برطرفه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د محلې او کلي له خلکو څخه دوه کسان د بل ځای او بلي محلې پر يو کس د قتل ګواهي ورکړي چې هغه فلانکي سړي (مثلاً سليم) دا مقتول قتل کړی دی کوم چې زموږ د محلې نه دی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دوی ګواهي به نه قبلول کيږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به قبلول کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې که څه هم دا محلې والا د خصم کېدلو لپاره پر نښه وه او د قتل شبهه پر دوی وه چې همدوی به خصم وګرځي (يعني قسامت او ديت به پر همدوی واجب سي)، لېکن اوس چې کله د مقتول ولي (د دوی د ګواهي په وجه) له دوی څخه بغير پر بل چا د قتل دعویٰ وکړه نو اوس د دوی د خصم کېدلو احتمال او شبهه ختم سوه. او د دوی دا ګواهي د يو بل کس په هکله ده کوم چې د دوی د محلې نه دی. نو ځکه د دغه په هکله به د دوی ګواهي قبلول کيږي.

د دې مثال داسي دی لکه يو سړی (مثلاً خالد) چې يو څوک وکيل بالخصومت جوړ کړي نو هغه د خپل مؤکل (خالد) ګواه نه سي جوړېدلای. لېکن که مؤکل (خالد) هغه له خصومت کولو څخه مخکي معزوله کړي نو اوس هيڅ شبهه پاته نه سوه لهذا اوس هغه ګواه جوړېدلای سي او ګواهي به يې قبلول کيږي، نو همداسي په مذکوره مسئله چې کله محلې والا خصم پاته نه سوه. نو اوس به د هغو ګواهي قبلول کيږي.

ولہ أنهم خصماء إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی، حاصل يې دا دی چې محلې والا وو د محلې او مقتول په حفاظت او څارنه کي کوتاهي او لاپروايي کړې ده ځکه مقتول د دوی په محله کي مېندل سوی دی حال دا چې پر دوی حفاظت واجب وو. نو د دې تقصير او لاپروايي کولو په وجه دوی د قتل

کونکو په درجه کي سول او خصم وګرځېدل. او دا جلا خبره ده چي اوس پر بل چا (سليم) د دوی د ګواهي. ورکولو او پر هغه (سليم) د ولي د دعوې کولو په وجه دوی د خصم له فهرس څخه ووتل. خو په شروع کي چي کوم شی د دوی له ګواهي. څخه مانع وو. هغه مانع او شبهه اوس هم پاته ده. نو ځکه د دوی ګواهي به باطله ګرځول کيږي.

او د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي د يو بچي وصي وي. بيا د بچي بالغ کېدلو په وجه هغه له وصي کېدلو څخه خارج سي (ځکه د بلوغت په وجه وصايت ختميږي). نو اوس که دا بچی پر هغه سړي يو ګواهي ورکړي نو د هغه ګواهي هم نه قبلول کيږي: ځکه په شروع کي يعني د هغه کس د وصي کېدلو په حالت کي د دې بچي ګواهي مقبوله نه وه نو وروسته هم نه قبلول کيږي. همدغسي په مذکوره مسئله کي هم په شروع کي د دې محلې والا وو ګواهي مقبوله نه وه نو ځکه وروسته به هم د عدم قبوليت دا معامله باقي پاته وي او ګواهي به يې نه قبلول کيږي.

(خلاصه د کلام دا چي اوس دوی د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په اتفاق خصم نه دي لېکن صاحبينو دوی پر وکيل قياس کړي دي او امام صاحب پر وصي).

قال رحمه الله إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: دا دوا ړه داسي اصلونه دي چي پر هغوی د دغه جنس ډېري مسئلې متفرع کيږي. له دواړو اصلونو څخه اول ① اصل (قاعده کليه) دا ده چي که يو څوک په يو معامله کي خصم وي نو په هغه معامله کي بالاجماع د هغه ګواهي مقبوله نه ده (يعني نه به قبلول کيږي). ② دويم اصل دا دی چي که يو څوک د خصم کېدلو پر نښه وي. بيا د هغه نښه کېدل باطل سي (خصم نه وګرځي) او بيا هغه ګواهي ورکړي. نو د هغه ګواهي بالاجماع مقبوله او معتبره ده. له دغه دوو اصلونو څخه امام صاحب رَحِمَهُ الله اول صل اختيار کړی دی نو ځکه هغه دلته بالکل ګواهي نا مقبوله ګرځولې ده. او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دويم اصل اختيار کړی دی او د دوی ګواهي يې مقبوله او معتبره منلې ده. (احسن الهدايه بحواله عنايه)

## که دوه کسان د خپلې محلې پر يو معيّن کس د قتل ګواهي ورکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوِ ادَّعٰى عَلٰى وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِعَيْنِهِ فرمايي: او که د مقتول ولي له محلې والا وو څخه پر يو معيّن کس [د قتل] دعویٰ وکړي فَشَهِدَ شَاهِدَانِ مِنْ أَهْلِهَا عَلَيْهِ بيا له محلې والا څخه دوه ګواهان پر هغه ګواهي ورکړي لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ نو ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّ الْخُصُومَةَ قَائِمَةٌ مَعَ الْكُلِّ ځکه خصومت د ټوله محلې والا سره قائم دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم

چې موږ بیان کړی وَالشَّاهِدُ يَقْطَعُهَا عَنْ نَفْسِهِ او ګواه له خپل ځان څخه دا خصومت ختموي فَكَانَ مُتَّهَمًا نو هغه به [په خپل ګواهۍ کې] تورن وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ الشُّهُودَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَتَلْنَاهُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې ګواهان به داسې قسم اخلي چې په الله قسم موږ هغه نه دی قتل کړی وَلَا يَزْدَادُونَ عَلَى ذَلِكَ او دوی به پر دې اضافه نه کوي [یعني په قسم کې به د مذکوره جملې سره بله جمله "ولاعرفنا له قاتلا" نه اضافه کوي] لِأَنَّهُمْ أَخْبَرُوا أَنَّهُمْ عَرَفُوا الْقَاتِلَ ځکه دوی خو [مخکې لا] دا خبر ورکړی دی چې دوی قاتل پېژني.

**اللغات:** ﴿متهم﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دی: تورن. تهمتي (تومتي). هغه کس چې پر هغه يو تهمت وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مقتول ولي د محلې په خلکو کې پر یو معلوم سړي د قتل دعوی وکړي. بیا له همدې محلې والا وو څخه دوه کسان د هغه سړي په خلاف د قتل کولو ګواهي ورکړي، نو د هغو ګواهي به نه قبلول کیږي؛ ځکه کله چې په محله کې پر یوه سړي د قتل دعوی سوې ده نو ګواکې ټول محلې والا متهم دي او خصومت او دعوی د ټولو سره قائم ده، او دغه دوه کسان د خپل ګواهۍ په ذریعه له خپل ځان څخه د خصومت او دعوې لیرې کول غواړي. لهذا دوی په خپل ګواهۍ کې متهم او تورن دي او د متهم ګواهي نه قبلول کیږي.

**وعن أبي يوسف إلخ:** له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې د دوی ګواهي خو به نه قبلول کیږي لکه څرنګه چې ذکر سوه. لېکن د دوی له دغه ګواهۍ څخه دا خو معلومه سوه چې دوی دواړه قاتل پېژني. لهذا کله چې د اهلِ محلې په قسامت کې له دوی څخه قسم اخیستل کیږي. نو فقط په دې الفاظو سره به قسم ځني اخیستل کیږي "بالله ما قتلناه" چې "په الله قسم! موږ دا مقتول نه دی قتل کړی". یعني د محلې د نورو کسانو په څېر له دوی څخه به په داسې الفاظو پوره قسم نه اخیستل کیږي چې "بالله ما قتلناه ولا عرفنا له قاتلا"؛ ځکه چې د دوی په حق کې آخري جملې "ولا عرفنا له قاتلا" ته ضرورت پاته نه سو؛ ځکه دوی خو مخکې لا دا ګواهي ورکړې ده چې د مقتول قاتل فلانکی دی. نو ځکه په قسم کې به دوی صرف له خپل طرفه د قتل نفي کوي او اضافه به نه کوي.

## په يو محله او قبيله کې زخمي کېدونکی کس که تر بستر کېدلو وروسته مړ سي نو د قسامت او ديت حکم.

قَالَ: وَمَنْ جُرِحَ فِي قَبِيلَةٍ فرمايي: او څوک چې په يو قبيله کې زخمي کړی سي فَنُقِلَ إِلَى أَهْلِهِ بيا دئ خپل کورنۍ ته نقل کړی سي فَمَاتَ مِنْ تِلْكَ الْجِرَاحَةِ بيا دئ له هاغه زخم څخه مړ سي فَإِنْ كَانَ صَاحِبَ فِرَاشٍ حَتَّى مَاتَ نو که دئ [تر زخمي کېدلو وروسته] صاحب فراش [بستري] وي تر دې چې مړ سي فَالْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَى الْقَبِيلَةِ نو قسامت او ديت پر قبيلې والا [واجب] دي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: لَا قَسَامَةَ وَلَا دِيَةَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قسامت او ديت نسته لِأَنَّ الَّذِي حَصَلَ فِي الْقَبِيلَةِ وَالْمَحَلَّةِ مَا دُونَ النَّفْسِ ځکه په قبيله يا محله کې له نفس [قتل] څخه کم [يعني زخمي کول] حاصل سوي دي وَلَا قَسَامَةَ فِيهِ او په ما دون النفس کې قسامت نسته فَصَارَ كَمَا إِذَا لَمْ يَكُنْ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو دا داسې سو لکه هغه چې صاحب فراش نه سو وَلَهُ: أَنَّ الْجُرْحَ إِذَا اتَّصَلَ بِهِ الْمَوْتُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د زخمي کولو سره چې کله مرګ متصل سي صَارَ قَتْلًا نو هغه [زخمي کول] قتلول ګرځي وَلِهٰذَا وَجَبَ الْقِصَاصُ او په همدې وجه قصاص واجبيږي فَإِنْ كَانَ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو که هغه صاحب فراش سي أُضِيفَ إِلَيْهِ نو قتل د هغه زخمي کولو وطرف ته مضاف کيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ او که هغه صاحب فراش نه سي احْتَمَلَ أَنْ يَكُونَ الْمَوْتُ مِنْ غَيْرِ الْجُرْحِ نو دا احتمال سته چې مرګ به له زخمي کولو څخه بغير [په بله وجه] وي فَلَا يَلْزَمُ بِالشَّكِّ نو ځکه د شک په وجه به هغه [قسامت او ديت] نه لازميږي.

**اللغات:** ﴿صاحب فراش﴾ د بستر خاوند، بستري، هغه کس چې زخم يا مرض يې دومره سخت وي چې له ولاړې څخه يې ايستلی وي او هغه خپل بستر لازم نيولی وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په يو قبيله يا په يو محله او علاقه کې زخمي کړی سي. بيا هغه خپل کور ته يوووړل سي او هغه مسلسل صاحب فراش او بستري وي تر دې چې د هاغه

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الكتاب "القول الراجح" [ج:٢، ص:٣٦٩]

مخکیني زخم په وجه مړ سي، نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي په کومه قبیله او محله کي هغه زخمي کړی سوی وي، پر هغه قبیلې او محلې قسامت او دیت واجبیږي. لېکن دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه قبیلې او محلې نه قسامت واجبیږي او نه دیت.

دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د قسامت او دیت وجوب د قتل سره متعلق دی او په مذکوره مسئله کي هغه په قبیله او محله کي صرف زخمي کړی سوی دی، قتل کړی سوی نه دی. نو څرنګه چي د صاحبِ فراش نه کېدلو په صورت کي که هغه مړ سوي وای، نو بالاتفاق پر هغه قبیلې قسامت او دیت نه واجبېدی، نو همداسي به په مذکوره صورت کي هم پر هغه قبیلې قسامت او دیت نه واجبیږي.

ولـه أن الجرح إلـخ: دا دامام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دی، حاصل یې دا دی چي د قتل د وقوع لپاره د زخمي کېدلو سره فوراً (سمدستي) د انسان مړ کېدل ضروري نه دي، بلکي تر زخمي کېدلو وروسته که یو څوک د مرګ تر وخته پوري صاحب فراش پاته سي او بیا له هاغه زخم څخه مړ سي، نو هغه زخمي کول قتلول شمېرل کیږي، په همدې وجه خو د داسي زخمي کولو په وجه پر جارح قصاص واجبیږي، لهذا که څوک په قبیله کي زخمي کړی سي او بیا د مرګ تر وخته پوري هغه صاحب فراش پاته وي، نو پر هغه قبیلې به قسامت او دیت واجبیږي او د هغه مرګ به د مخکیني زخم وطرف ته منسوب کیږي. ها! که مجروح کس صاحبِ فراش پاته نه سي بلکي جوړ او روغ سي او بیا مړ سي، نو په دې صورت کي پر قبیلې قسامت او دیت نه واجبیږي؛ ځکه په دې مرګ کي احتمال پیدا سو چي کېدای سي هغه به له مخکیني زخم څخه بغیر په بله وجه مړ سوی وي او یا کېدای سي د هغه زخم په وجه به مړ سوی وي، لهذا د شک په وجه به قسامت او دیت نه واجبیږي.

## که تر زخمي کېدلو وروسته د ژوند رمق پکښي پاته وي او بیا یوه ورځ یا دوې ورځي وروسته مړ سي نو د قسامت او دیت حکم

وَلَوْأَنَّ رَجُلًا مَعَهُ جُرْحٌ بِهِ رَمَقٌ او که د یو سړي سره داسي زخم وي [یعني داسي زخمي سوی وي] چي په هغه کي څه ساه پاته وي حَمَلَهُ إِنْسَانٌ إِلَى أَهْلِهِ [او] یو انسان هغه خپلي کورنۍ ته وړی وي فَمَكَثَ يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ ثُمَّ مَاتَ بیا هغه یوه یا دوې ورځي [ژوندی] پاته سي بیا مړ سي لَمْ يَضْمَنِ الَّذِيْ حَمَلَهُ إِلَى أَهْلِهِ فِيْ قَوْلِ أَبِيْ يُوْسُفَ نو دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول مطابق هغه انسان [حامل] نه ضامن کیږي چي هغه [زخمي سړی] یې خپلې کورنۍ ته وړی دی وَفِيْ قِيَاسِ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ يَضْمَنُ او دامام

صاحب رَحِمَهُ الله د قول د قیاس مطابق هغه [حامل] ضامن کیږي لِأَنَّ يَدَهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَحَلَّةِ ځکه چې د هغه [حامل] قبضه د محلې په درجه کې ده فَوُجُودُهُ جَرِيحًا فِي يَدِهِ كَوُجُودِهِ فِيهَا نو مقتول د زخمي کېدلو په حالت کې د هغه په قبضه کې موجودېدل داسي دي لکه مقتول [د زخمي کېدلو په حالت کې] په محله کې موجودېدل وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَ الْقَوْلَيْنِ فِيمَا قَبْلَهُ مِنْ مَسْأَلَةِ الْقَبِيلَةِ او موږ مخکې د قبیلې والا په مسئله کې د دواړو قولونو وجهې [دلیلونه] ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿رمق﴾ پاتې ساه (آخرنی ساه)، وروستنی سلګی. ﴿جریح﴾ پر وزن د فعیل په معنیٰ د مفعول سره دی: زخمي کړی سوی، ټپي. ﴿ید﴾ لاس. قبضه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی په یو محَله او قبیله کې د زخمي کېدلو په حالت کې پروت ومیندل سي او په هغه کې څه ژوند پاته وي او یو څوک (مثلاً زید) پر هغه رحم وکړي او کور ته یې یووسي او هغه یوه ورځ یا دوې ورځې ژوندی وي بیا مړ سي. نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز راوړونکی کس (زید) نه ضامن کیږي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول د قیاس مطابق هغه ضامن کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د حامل (زید) قبضه د محلې قائم مقام ده او مجروح د حامل په لاس او قبضه کې موجودېدل داسي دي لکه هغه چې په محله کې وي او مخکې ذکر سوه چې که څوک په محله کې زخمي کړی سوی او کور ته یووړل سي او بیا هغه صاحب فراش سي تر دې چې مړ سي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز محلې والا ضامن کیږي. نو همداسي به دلته حامل هم ضامن کیږي.

او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل هم هلته ذکر سوی دی. لهذا راګرځولو ته یې ضرورت نسته.

## په خپل کور کې د مقتول میندل کېدلو په صورت کې د دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ رَجُلٌ قَتِيلًا فِي دَارِ نَفْسِهِ او که یو سړی په خپل کور کې مقتول ومیندل سي فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ لِوَرَثَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دیت یې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه پر عاقله وو د هغه د وارثانو لپاره [واجب] دی [یعني عاقله به دیت د هغه وارثانو ته ورکوي] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَزُفَرُ: لَا شَيْءَ فِيهِ امام ابو یوسف او امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چې په دې کې هیڅ شی نسته لِأَنَّ الدَّارَ فِي يَدِهِ حِينَ وُجِدَ الْجَرِيحُ ځکه کور په هغه وخت کې د ده په قبضه کې دی کله چې دئ

زخمي کړی سوی ومیندل سو فَيُجْعَلُ كَأَنَّهُ قَتَلَ نَفْسَهُ نو داسي به وګرځول کیږي ګواکي ده خپله خپل ځان قتل کړی دی فَيَكُونُ هَدَرًا نو ځکه [ده وینه] به هدر وي وَلَهُ: أَنَّ الْقَسَامَةَ إِنَّمَا تَجِبُ بِنَاءً عَلَى ظُهُورِ الْقَتْلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي قسامت د قتل ښکاره کېدلو پر بناء واجبیږي وَلِهَذَا لَا يَدْخُلُ فِي الدِّيَةِ مَنْ مَاتَ قَبْلَ ذَٰلِكَ په همدې وجه [د عاقله وو] هغه کس په دیت کي نه داخلیږي کوم چي له قتل ښکاره کېدلو څخه مخکي مړ سوی وي وَحَالَ ظُهُورِ الْقَتْلِ الدَّارُ لِلْوَرَثَةِ او د قتل ښکاره کېدلو په وخت کي کور د وارثانو دی فَتَجِبُ عَلَى عَاقِلَتِهِمْ نو ځکه دیت به د وارثانو پر عاقله وو واجبیږي بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ إِذَا وُجِدَ قَتِيلًا فِي دَارِ نَفْسِهِ په خلاف د مکاتب کله چي هغه په خپل کور کي مقتول ومیندل سي لِأَنَّ حَالَ ظُهُورِ قَتْلِهِ بَقِيَتِ الدَّارُ عَلَى حُكْمِ مِلْكِهِ ځکه د قتل ښکاره کېدلو په وخت کي کور د هغه د ملکیت پر حکم پاته دی فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ قَتَلَ نَفْسَهُ نو داسي به وګرځي ګواکي هغه خپله خپل ځان قتل کړی دی فَيُهْدَرُ دَمُهُ نو ځکه د هغه وینه [خون] به هدر وي.

**اللغات:** ﴿عاقلة﴾ متعلقین او نژدې قریبان او قومیان (خاندان والا). ﴿هَدَر﴾ او هَدْر د ضرب له بابه اسم مصدر دی: ضایع. باطل. بلا بدله.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی په خپل کور کي مقتول ومیندل سي نو د هغه دیت واجبیږي. که نه؟. په دې باره کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د هغه دیت د هغه پر عاقله وو باندي واجبیږي او دا دیت به د هغه وارثانو ته ورکول کیږي. لیکن د صاحبینو او د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د داسي مقتول دیت نه واجبیږي بلکي د هغه وینه (خون) هدر او ضایع کیږي. همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله مسلک دی (بنایه). د دې حضراتو دلیل دا دی چي په کوم وخت کي دا سړی زخمي کړی سوی دی په هغه وخت کي کور د ده په ملکیت کي وو. نو ګواکي زخمي کول د ده د ذات وطرف ته مضاف سوه او دا کس ځان وژونکی (خود کشه) سو. او د ځان وژونکي وینه (خون) ضایع کیږي. نو ځکه د دې سړي وینه به هم ضایع کیږي چي د هغه په بدله کي به هیڅ شی نه واجبیږي.

**وله أن القسامة إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک ذکر سو چي د داسي مقتول پر عاقله وو دیت واجبیږي، په دې هکله د هغه دلیل دا دی چي د قسامت او دیت وجوب د قتل پر ظهور او وجود باندي مبني کیږي او تر قتل مخکي چي کوم حالت وي د هغه حالت سره دا وجوب نه متعلق کیږي (یا په بله وینا دا چي قسامت او دیت د زخمي کېدلو په حالت کي نه واجبیږي. بلکي د قتل د ظهور او وقوع په وخت کي واجبیږي). همدا وجه ده که د قتل تر ظهور مخکي له عاقله وو څخه یو کس مړ سي نو هغه کس له دیت څخه بري کیږي (یعني پر هغه د مقتول دیت نه واجبیږي). له دې څخه هم معلومه سوه چي د قسامت او دیت وجوب د قتل پر وجود او ظهور مبني دی او په مذکوره مسئله کي د قتل د ظهور په وخت کي هغه کور د وارثانو گرځېدلی دی ځکه تر مرگ وروسته د انسان ملکیت ختمیږي او د هغه هر څه ملکیت د وارثانو وطرف ته منتقل کیږي، نو ځکه د دې مقتول دیت به د وارثانو پر عاقلې وو باندي واجبیږي او وارثانو ته به ورکول کیږي.

د دې په خلاف که یو مکاتب په خپل کور کي مقتول ومیندل سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه وینه (خون) هدر او ضایع کیږي او د هغه پر عاقله وو د هغه دیت نه واجبیږي؛ ځکه د قتل د ظهور په وخت کي هغه مکاتب د خپل کور مالک دی او د هغه په مرگ سره عقد کتابت نه باطلیږي نو گواکي قتل د هغه د ذات وطرف ته مضاف سو لهذا دا مکاتب د ځان وژونکي په درجه کي سو، او د ځان وژونکي وینه (خون) هدر کیږي، نو ځکه د هغه وینه به هم هدر وي.

## که په یو کور کي دوه خلک وي او بیا له هغوی څخه یو مقتول ومیندل سي نو د دیت حکم

**وَلَوْأَنَّ رَجُلَيْنِ كَانَا فِي بَيْتٍ وَلَيْسَ مَعَهُمَا ثَالِثٌ** او که دوه خلک په یو کور کي وي او د دوی سره دریم کس نه وي **فَوُجِدَ أَحَدُهُمَا مَذْبُوحًا** بیا له دوی څخه یو ذبح کړی سوی ومیندل سي **قَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَضْمَنُ الْآخَرُ الدِّيَةَ** نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چي هغه بل یو [دویم کس] د دیت ضامن کیږي **وَقَالَ مُحَمَّدٌ**❁ **: لَا يَضْمَنُهُ** او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د دیت نه ضامن کیږي **لِأَنَّهُ**

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، ويثبت من كلام العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله ترجيح قول محمد رَحِمَهُ الله حيث قال: وعندي أن قول محمد أقوى مدركاً، إذ قد يقتله غير الثاني وكثيراً ما وقع. قال المفتي غلام قادر النعماني: ويمكن التطبيق بين القولين بأن يحمل قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله فيما إذا كانا في الدار قبل القتل، فالظاهر بعد القتل أن القتل صادر من صاحبه. وأن يحمل قول محمد رَحِمَهُ الله فيما إذا لم يعلم أحد أنهما كانا في الدار قبل القتل وعلم الناس بعد خروج أحدهما، لأنه يمكن أن الخارج دخل بعد القتل ولم يقتل. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۷۰]

يَحْتَمِلُ أَنَّهُ قَتَلَ نَفْسَهُ ځکه دا احتمال سته چې هغه به خپل ځان خپله قتل کړی وي وَيَحْتَمِلُ أَنَّهُ قَتَلَهُ الْآخَرُ او دا احتمال هم سته چې بل يوه به قتل کړی وي فَلَا يَضْمَنُهُ بِالشَّكِّ نو ځکه د شک په وجه به د ديت نه ضامن کيږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يَقْتُلُ نَفْسَهُ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې ښکاره همدا ده چې انسان خپل ځان نه قتل کوي فَكَانَ التَّوَهُّمُ سَاقِطًا نو توهّم ساقط سو كَمَا إِذَا وُجِدَ قَتِيلٌ فِي مَحَلَّةٍ لکه کله چې په يو محله کې مقتول وميندل سي.

**اللغات**: ﴿مذبوح﴾ د فتح د باب مفعول دی: ذبح کړی سوی (حلال سوی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په يو کور کې دوه خلک استوګن وي او بل دریم هيڅوک ور سره نه وي، بیا له هغه دوو څخه يو کس مذبوح او مقتول وميندل سي. نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دوېم کس د ديت ضامن کيږي، لیکن دامام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دوېم کس د ديت نه ضامن کيږي: دامام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د ديت واجبېدلو لپاره د قاتل معلومېدل او متعيّن کېدل ضروري دي او دلته قاتل معلوم نه دی: ځکه دا احتمال سته چې دغه کس به ځان وژنه (خود کشي) کړي وي او دا احتمال هم سته چې دوېم کس به هغه قتل کړی وي، لهذا کله چې قاتل متعيّن نه دی، نو ښکاره ده چې د شک په وجه پر دوېم کس ضمان او ديت نه سي واجبول کېدای.

ولأبي يوسف إلخ: د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې ښکاره همدا ده چې يو انسان (خصوصاً مسلمان) خپل ځان نه قتل کوي او له حرام مرګ څخه په تېښته ځان ساتي. لهذا د هغه په حق کې د ځان وژني احتمال او وهم ساقط سو او دوېم کس قاتل متعيّن سو. نو ځکه پر هغه به ديت واجبيږي. مثال يې دا دی لکه په يو محله کې چې مقتول وميندل سي نو که څه هم په هغه کې هم د ځان وژني احتمال سته چې هغه به خپل ځان خپله وژلی وي. خو د انسان د ظاهرِ حال په اعتبار کولو سره دا احتمال ساقط دی او پر محلې والا وو د هغه ديت واجب دی (لکه مخکې چې ذکر سوه). نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم د ذبح کړی سوي کس پر ملګري (دوېم کس) باندې د هغه ديت واجبيږي.

## که د یوې ښځې په جاګیر کې مقتول ومیندل سي نو د قسامت او دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ قَتِيلٌ فِي قَرْيَةٍ لِامْرَأَةٍ او که چیرې د یوې ښځې په کلي کې مقتول ومیندل سي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ عَلَيْهَا الْقَسَامَةُ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز پر هغه ښځې قسامت [واجب] دی تُكَرَّرُ عَلَيْهَا الْأَيْمَانُ چې پر هغې به قسمونه مکررول کیږي وَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهَا أَقْرَبِ الْقَبَائِلِ إِلَيْهَا فِي النَّسَبِ او دیت د ښځې پر هغه عاقله وو [واجب] دی کوم چې د نسب په اعتبار سره هغې ته تر ټولو نژدې وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ۞ : عَلَى الْعَاقِلَةِ أَيْضًا او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قسامت هم پر عاقله وو [واجب] دی لِأَنَّ الْقَسَامَةَ إِنَّمَا تَجِبُ عَلَى مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النُّصْرَةِ ځکه قسامت پر هغه چا واجبيږي کوم چې د نصرت له اهل څخه وي وَالْمَرْأَةُ لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِهَا او ښځه د نصرت له اهل څخه نه ده فَأَشْبَهَتِ الصَّبِيَّ نو ښځه د بچې [کوچني] سره مشابه سوه وَلَهُمَا: أَنَّ الْقَسَامَةَ لِنَفْيِ التُّهْمَةِ د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې قسامت [مکرر قسمونه اخیستل] د تهمت لیرې کولو لپاره وي وَتُهْمَةُ الْقَتْلِ مِنَ الْمَرْأَةِ مُتَحَقِّقَةٌ او [دلته] د ښځې له طرفه د قتل تهمت موجود دی قَالَ الْمُتَأَخِّرُونَ متأخرینو ویلي دي إِنَّ الْمَرْأَةَ تَدْخُلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ فِي التَّحَمُّلِ فِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ چې په دې مسئله کې ښځه [هم] د دیت په زغملو [اداء کولو] کې د عاقله وو سره داخلیږي لِأَنَّا نَزَّلْنَاهَا قَاتِلَةً ځکه موږ هغه د قتل کونکې په درجه کړځولې ده ایا په دلیل وینا دا چې موږ هغه قاتله ګڼلې ده او وَالْقَاتِلُ يُشَارِكُ الْعَاقِلَةَ او قتل کونکی [په دیت اداء کولو کې] د عاقله وو سره شریک کیږي.

**اللغات:** ﴿قرية﴾ غټ کلی. قبضه. هغه سیمه او علاقه چې یو بل ته نژدې ډېرې ودانۍ (استوګنځی) او کورونه پکښې جوړ سوي وي. ﴿تُكرّر﴾ د تفعیل له بابه د مضارع مجهولي صیغه ده: مکررول. یو کار دوباره کول. څو ځله کول. ﴿التحمّل﴾ د تفعل د باب مصدر دی: پورته کول (تاوان پورته کول). زغمل (برداشت کول).

**تشریح:** مختصراً د عبارت حاصل دا دی چې مخکې ذکر سوه چې ښځه او بچی. مجنون او غلام د قسامت اهل نه دي لهذا د مقتول میندل کېدلو په صورت کې به له ښځې څخه قسم نه اخیستل کیږي: لېکن که یو ښځه د ټوله کلي مالکه او مشره وي او د کلي ټوله خلګ د هغې تر حکم لاندې وي او بیا په هغه کلي کې مقتول ومیندل سي. نو په دې صورت کې هم امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر خپل مخکینې أصول دی کوم چې مخکې ذکر سو چې ښځه له اهل قسامت څخه نه ده: ځکه ښځه له اهل نصرت څخه نه ده. نو ځکه پر ښځې قسامت واجب نه دی بلکې د ښځې پر عاقله وو قسامت او دیت واجب دی.

۞ القول الراجح. قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله. انظر لمنتهى الكتاب القول الراجح [ج:۲. ص:۲۷۱]

او طرفین رَحِمَهُمَااللہ له خپل مخکیني اُصول څخه اوښتي دي او ویلي يې دي چې قسامت صرف پر ښځي واجب دی خو دیت د ښځي پر عاقله وو واجب دی.

ولهما أن القسامة إلخ: دا د طرفینو رَحِمَهُمَااللہ دلیل دی. حاصل يې دا دی چې د قسامت مدار پر نصرت نه دی بلکي د قتل د تهمت لیري کولو لپاره دی او څرنګه چې دا ښځه د کلي مالکه ده. لهذا د قتل تهمت موجود دی. نو ځکه قسامت به هم واجب وي.

قال المتأخرون إلخ: دلته دا سوال واردیږي چې کله عاقله دیت اداء کوي. نو آیا دا ښځه به هم په دیت اداء کولو کي د هغو سره شریکه کیږي. که نه؟. نو متأخرینو فرمایلي دي چې ښځه هم د هغو سره په دې کي داخلیږي: ځکه ښځه د قتل کونکي په درجه کي ده او قاتل د دیت په اداء کولو کي د عاقله وو سره شریک کیږي. نو ځکه دا ښځه به هم د خپلو عاقله وو سره شریکه کیږي.

## د یو داسي سړي په ځمکه کي د مقتول میندل کېدلو د دیت حکم کوم چي له کلي والا څخه جلا وي

وَلَوْ وُجِدَ رَجُلٌ قَتِيْلًا فِيْ أَرْضِ رَجُلٍ إِلٰى جَانِبِ قَرْيَةٍ او که یو سړی مقتول ومیندل سي د سړي په داسي ځمکه کي کوم چي د کلي یو طرف ته وي لَيْسَ صَاحِبُ الْأَرْضِ مِنْ أَهْلِهَا [او] د ځمکي خاوند له هغه کلي والا وو څخه نه وي قَالَ: هُوَعَلٰى صَاحِبِ الْأَرْضِ نو فرمایي: چي دیت د ځمکي پر خاوند [واجب] دی لِأَنَّهٗ أَحَقُّ بِنُصْرَةِ أَرْضِهٖ مِنْ أَهْلِ الْقَرْيَةِ ځکه د ځمکي خاوند د خپلي ځمکي د نصرت زیات حقدار دی له کلیوالو څخه [یعني د کلیوالو په نسبت هغه د دې ځمکي د نصرت او حفاظت زیات حقدار دی].

**اللغات**: پر وزن د فعیل په معنیٰ مفعول سره دی: قتل کړی سوی، مقتول. ﴿نصرة﴾ مدد او کومک، امداد کول.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که د یو سړي (مثلاً د خالد) ځمکه د کلي په یو طرف کي وي لیکن د ځمکي مالک (خالد) له هغه کلي والا وو څخه جلا اوسیږي او په هغو کي داخل نه وي. او بیا په دې ځمکه کي یو مقتول ومیندل سي، نو د مقتول دیت د ځمکي پر مالک (خالد) واجبیږي. پر کلیوالو (اهل قریه) باندي نه واجبیږي: ځکه د کلي والا وو په نسبت د ځمکي مالک د خپلي ځمکي د حفاظت او نصرت زیات حقدار دی. نو ځکه د هغه په ځمکه کي د واقع کېدونکي جرم ضمان به هم پر هاغه لازم وي. فقط والله أعلم و علمه أتم



# كِتَابُ الْمَعَاقِلِ

(أَيْ هٰذَا كِتَابٌ فِيْ بَيَانِ أَهْلِ الْمَعَاقِلِ)

## دا کتاب د اهلِ معاقل په بیان کي دی

**تشریح**: مخکي تر دې دیات بیان کړل سول. اوس له دې ځایه من علیهم الدیات بیانول کیږي (یعني پر کومو کسانو چي دیت واجبیږي). له معاقلُ څخه اهل معاقل (عواقل) مراد دي. خو د عامو مصنفینو رَحِمَهُمُ الله عادت دا دی چي دا بحذف المضاف بیانوي. د معاقل نور وضاحت او تفصیل خپله صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله بیان کړی دی.

### د "معاقل" لغوي تحقیق

| |
|---|
| اَلْمَعَاقِلُ جَمْعُ مَعْقُلَةٍ معاقل جمع د معقلةٌ ده وَهِيَ الدِّيَةُ او معقلةٌ دیت دی وَتُسَمَّى الدِّيَةُ عَقْلًا او دیت ته [په دې وجه] عقل ویل کیږي لِأَنَّهَا تَعْقِلُ الدِّمَاءَ مِنْ أَنْ تُسْفَكَ أَيْ تُمْسِكُ ځکه چي دیت وینه منع کوي له دې څخه چي هغه [په ناحقه] وبهیږي |

**اللغات**: ﴿عقل﴾ د ضرب د باب مصدر دی. عَقَلَ يَعْقِلُ عَقْلًا: منع کول. نیول. او عقلِ انساني ته هم په دې وجه عقل ویل کیږي چي انسان له بدیو او بدو خبرو څخه راګرځوي. ﴿تمسك﴾ د افعال د باب مضارع ده: نیول. راګرځول.

**تشریح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "معاقل" وضاحت کوي فرمایي چي دا د "مَعْقَلَةٌ" جمع ده چي د هغه معنیٰ ده "دیت". او دیت ته عقل ځکه ویل کیږي چي د عقل معنیٰ ده "منع کول او نیول". او دیت وینه له بهېدلو او ضایع کېدلو څخه منع کوي او د هغه په وجه د مقتول وینه (خون) ضایع نه ځي. او له همدې عقل څخه دیت اداء کونکو متعلقینو ته "عاقله" ویل کیږي.

## دیت په کوم جنایت کي او پر چا او کله واجبيږي؟

قَالَ: وَالدِّيَةُ فِي شِبْهِ الْعَمَدِ وَالْخَطَإِ وَكُلُّ دِيَةٍ تَجِبُ بِنَفْسِ الْقَتْلِ عَلَى الْعَاقِلَةِ فرمايي: او دیت په شبه عمد او خطاء کي او هر هغه دیت کوم چي د نفسِ قتل په وجه واجب سي پر عاقله وو دی وَالْعَاقِلَةُ الَّذِيْنَ يَعْقِلُوْنَ يَعْنِي يُؤَدُّوْنَ الْعَقْلَ وَهُوَ الدِّيَةُ او عاقله هغه کسان دي کوم چي عقل یعني دیت اداء کوي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الدِّيَاتِ او دا موږ په کتاب الدیات کي ذکر کړي دي وَالْأَصْلُ فِيْ وُجُوبِهَا عَلَى الْعَاقِلَةِ او پرعاقله وو د دیت واجبدلو په هکله اصل قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيْ حَدِيْثِ حَمَلِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه لِلْأَوْلِيَاءِ د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی د حمل بن مالک رضي الله عنه په حدیث کي «قُومُوْا فَدُوْهُ» تاسي ولاړ سئ او د هغه دیت اداء کړئ! وَلِأَنَّ النَّفْسَ مُحْتَرَمَةٌ لَا وَجْهَ إِلَى الْإِهْدَارِ او ځکه چي نفس محترم دی چي د هغه د ضایع کولو هیڅ وجه [او صورت] نسته وَالْخَاطِئُ مَعْذُوْرٌ او خطاء کاره [خطاء جرم کونکی] معذوره دی وَكَذَا الَّذِيْ تَوَلَّى شِبْهَ الْعَمَدِ نَظَرًا إِلَى الْآلَةِ او همدارنګه آلې ته په کتلو سره هغه کس [هم معذوره دی] کوم چي د شبهِ عمد متولي [مرتکب] وي [ځکه هلته آله (لکړه وغیره) د تأديب لپاره وي او هغه نه وسله وي او نه د وسلې په درجه کي وي] فَلَا وَجْهَ إِلَى إِيْجَابِ الْعُقُوبَةِ عَلَيْهِ نو پر هغه د عقوبت واجبولو هیڅ وجه نسته وَفِيْ إِيْجَابِ مَالٍ عَظِيْمٍ إِجْحَافُهُ وَاسْتِئْصَالُهُ او د زيات مال په واجبولو کي د هغه سخت تاواني کول او د هغه هلاکول سته فَيَصِيْرُ عُقُوْبَةً نو دا [د مال واجبول] به سزا وګرځي فَضُمَّ إِلَيْهِ الْعَاقِلَةُ تَحْقِيْقًا لِلتَّخْفِيْفِ نو ځکه د تخفيف ثابتولو لپاره به د هغه سره عاقله هم ضمول کيږي [یوځای کول کيږي] وَإِنَّمَا خُصُّوْا بِالضَّمِّ او عاقله ځکه په ضم سره خاص کړل سوي دي لِأَنَّهُ إِنَّمَا قَصَّرَ لِقُوَّةٍ فِيْهِ وَتِلْكَ بِأَنْصَارِهِ ځکه چي قاتل د خپل قوت په وجه کوتاهي [او خطا] کړې ده او دا قوت هغه ته د خپل مددګارانو په وجه [حاصل] دی وَهُمُ الْعَاقِلَةُ او [دا نسان] مددګاران عاقله دي فَكَانُوْا هُمُ الْمُقَصِّرِيْنَ فِيْ تَرْكِهِمْ مُرَاقَبَتَهُ نو همدوی د هغه [قاتل] د نګرانی په پرېښوولو کي کوتاهي [او لاپروايي] کونکي سوه فَخُصُّوْا بِهِ نو ځکه همدوی په ضمّ سره خاص کړل سوي دي.

**اللغات**: ﴿محترم﴾ د افتعال د باب مفعول دی: د احترام او درناوي وړ. داسې څه چې د هغه خیال ساتل پر انسان لازم وي او پر هغه تیری کول نا روا وي. ﴿إجحاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوې دي: په تاوان ور رسولو کې سختې کول. ختمول او له بېخه کښل. په داسې شي سره مکلف کول کوم چې د انسان په وس کې نه وي. ﴿استئصال﴾ او استیصال: له بېخه کښل. وېجاړول. له منځه وړل. ﴿ضمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: یو شی د بل شي سره یو ځای کول. ضمول. ﴿قصّر﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: کوتاهي او لا پروایي کول. ﴿مراقبة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: نګراني او چوکیداري کول. کتل او څارل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې هر هغه دیت کوم چې ابتداءً د نفسِ قتل په وجه واجبېږي. هغه پر عاقله وو دی (یا په بله وینا دا چې د کوم قتل موجب چې صرف دیت وي. هغه پر خودي قاتل نه واجبېږي بلکې د هغه پر عاقله وو واجبېږي چې هغه قتلِ خطاء او قتلِ شبه عمد دی). او کوم دیت چې د نفسِ قتل په وجه نه، بلکې له قتلِ عمد څخه د صلح وغیره په وجه واجب سي یا کوم دیت چې پر قاتل پلار واجب سي (یعني قاتل د مقتول پلار وي). نو دا دیت خپله د قاتل په مال کې واجبېږي. لهذا د قتلِ خطاء او د شبهه عمد دیت د قاتل په عاقله وو باندې واجبېږي: د دې دلیل هغه حدیث دی چې یو جزء یې په کتاب کې ذکر سو. پوره واقعه داسې ده چې د حمل بن مالک بن نابغه رضي الله عنه دوې ښځې وې چې له هغوی څخه یوه حامله وه او بیا دا حامله ښځه د خپلې بنې (دویمې ښځې) له طرفه د خېمې په لرګي ووهل سوه چې په دې وجه د هغې حمل ساقط سو. نو په دې واقعه کې نبي کریم ﷺ د وهونکې ښځې ولیانو ته وفرمایل "قُوْمُوْا فَدُوْهُ" یعني ولاړ سئ! او د هغه دیت اداء کړئ!. له دې فرمان څخه دا ښکاره سوه چې د قتلِ خطاء او قتلِ شبه عمد دیت پر قاتل نه دی. بلکې د هغه پر عاقله وو دی.

ولأن النفس إلخ: په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې د انسان نفس محترم دی او د دې نفس قتل او دا وینه (خون) نه سي هدر او ضایع کول کېدلای. لېکن بل طرف ته په قتل خطاء او قتل شبهه کې قاتل هم معذوره دی ځکه د هغه قصد او نیت د قتل نه وي. او س ښکاره خبره ده چې که موږ په داسې قتلونو کې پر قاتل دیت واجب کړو. نو هغه به بالکل خالي لاسی او دېوالي سي لهذا د خاطي قاتل د بېچ کولو په خاطر موږ دا دیت د هغه پر عاقله وو واجب کړی دی چې په دې سره قاتل له هلاکت څخه وژغورل سي.

وإنما خُصّوا إلخ: او پاته سو دا سوال چې له عاقله وو څخه بغیر پر بل چا ولې دا دیت نه دی واجب کړی سوی او فقط عاقله (متعلقین او خاندان والا) د دې کار لپاره خاص کړل سوي دي؟ نو جواب یې دا دی چې قاتل چې کوم دا خطاء او لا پروایي کړې ده. هغه د طاقت او قدرت پر بنیاد صادره سوې ده. او

طاقت او قدرت انسان ته د خپلو متعلقينو او خاندان والا په وجه حاصل وي (يا په بله وينا دا چي مجرم يوازي د خپل ذات په باور د جرم ارتكاب نه كوي بلكي هغه خپل ترشا د خپلو متعلقينو يا خانداني قوت محسوسوي). نو ځكه همدوى به د دې خطاء ذمه واره وي او د دوى د يوه فرد جرم به د همدوى جرم شمېرل كيږي او د هغه تاوان او ديت به پر دوى واجبيږي.

## د عاقله وو تعريف او وضاحت

قَالَ: وَالْعَاقِلَةُ أَهْلُ الدِّيْوَانِ إِنْ كَانَ الْقَاتِلُ مِنْ أَهْلِ الدِّيْوَانِ فرمايي: او عاقله اهلِ ديوان [اهلِ دفتر] دي كه چيري قاتل له اهلِ ديوان څخه وي يُؤْخَذُ مِنْ عَطَايَاهُمْ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ د هغو له عطياتو څخه به په دريو كالو كي ديت اخيستل كيږي وَأَهْلُ الدِّيْوَانِ أَهْلُ الرَّايَاتِ وَهُمُ الْجَيْشُ الَّذِيْنَ كُتِبَتْ أَسَامِيْهِمْ فِي الدِّيْوَانِ او اهلِ ديوان بېرغونو والا دي چي د هغوى نومونه په دفتر [ريجسټر] كي ليکل سوي وي وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا [حكم چي ديت پر اهلِ ديوان دى] زموږ په نېز دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الدِّيَةُ عَلَى أَهْلِ الْعَشِيْرَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ديت پر خاندان والا [واجب] دى لِأَنَّهُ كَانَ كَذٰلِكَ عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ځكه د نبي كريم ﷺ په زمانه كي همداسي وه وَلَا نَسْخَ بَعْدَهُ او له نبي كريم ﷺ څخه وروسته نسخ نسته [چي دا حكم منسوخ كړى سي] وَلِأَنَّهُ صِلَةٌ او ځكه چي ديت خو يو صله ده وَالْأَوْلٰى بِهَا الْأَقَارِبُ او د صلې زيات لايق قريبان دي وَلَنَا قَضِيَّةُ عُمَرَ رضي الله عنه فَإِنَّهُ لَمَّا دَوَّنَ الدَّوَاوِيْنَ او زموږ دليل د حضرت عمر رضي الله عنه فيصله ده چي كله هغه دفترونه [ريجسټرونه] تدوين [مرتب] كړل جَعَلَ الْعَقْلَ عَلٰى أَهْلِ الدِّيْوَانِ نو ديت يې پر اهلِ ديوان باندي مقرر كړى وَكَانَ ذٰلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مِنْ غَيْرِ نَكِيْرٍ مِنْهُمْ او دا د صحابه وو په موجوديت كي د هغو له څه نكير څخه بغير سوي وه وَلَيْسَ ذٰلِكَ بِنَسْخٍ او دا نسخ نه ده بَلْ هُوَ تَقْرِيْرٌ بلكي دا د معنىٰ په اعتبار سره [د مخكيني حكم] اثبات دى لِأَنَّ الْعَقْلَ كَانَ عَلٰى أَهْلِ النُّصْرَةِ ځكه چي ديت [د مجرم] پر اهلِ نصرت [مدد گارانو] باندي دى وَقَدْ كَانَتْ بِأَنْوَاعٍ او نصرت [مدد] په څو قسمونو سره كيږي بِالْقَرَابَةِ (۱) د قرابت په وجه وَالْحِلْفِ (۲) او د حلف [يعني د نصرت د تړون] په وجه وَالْوَلَاءِ (۳) او [د آزادولو] د ولاء په وجه وَالْعَدِّ او د شمېرلو په وجه [چي انسان د يو قوم له افرادو څخه شمېرل كيږي]

وَفِي عَهْدِ عُمَرَ رضي الله عنه قَدْ صَارَتْ بِالدِّيْوَانِ او د حضرت عمر رضي الله عنه په دور کې نصرت د دېوان په وجه وو [چې اهلِ ديوان به يو د بل نصرت کاوه] فَجَعَلَهَا عَلَى أَهْلِهِ اتِّبَاعًا لِلْمَعْنَى نو حضرت عمر رضي الله عنه هغه پر اهلِ ديوان باندې مقرر کړې د معنىٰ په اتباع کولو سره.

**اللغات**: ﴿ديوان﴾ هغه دفتر (ربجسټر) چې په هغه کې د فوج او عسکرو نومونه، پته او کوائف ليکل سوي وي. د اهلِ ديوان وضاحت مصنف رَحِمَهُ الله کړې دی. نن وخت کې د اهلِ ديوان ترجمه دا هم کېدلای سي چې د يوې ادارې کارکونکي افراد، هَم پېشه خلک. ﴿صِلَةٌ﴾ د "وَصَلَ يَصِلُ" له باب څخه مصدر دی (په آخر کې يې هاء له واو محذوفه څخه عوض ده): عطيه (ورکړه)، احسان، انعام، صله رحمي، جمع: صِلَات، ﴿عشيرة﴾ خاندان، نژدې قريبان. ﴿نکير﴾ انکار. ﴿حِلْف﴾ (د حاء په کسره سره): د دې لفظ څو معناوي دي: تړون او وعده، دوستي، هغه دوست او ملګری چې د نصرت کولو او بې وفايي نه کولو قسم واخلي. جمع: أَحْلَاف. او د حَلِيْف معنىٰ ده: حلف او تړون کونکی. لازم ملګری. جمع: حُلَفَاء. ﴿عهد﴾ د دې لفظ ډېرې معناوي دي چې له هغوی څخه يې يوه معنىٰ "زمانه" ده. او نورې معناوي صاحب د مصباح دا نقل کړې دي: وفاء، امان، ذمه، دوستي، وصيت، ميثاق، قسم، شاهي فرمان.

**تشريح**: مخکې دا ذکر سوه چې په قتلِ خطاء او قتلِ شبهه کې د قاتل پر عاقله وو ديت واجبېږي. دلته صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې وضاحت کوي چې له عاقله وو څخه مراد کوم کسان دي؟ نو فرمايي چې زموږ په نېز له عاقله وو څخه مراد اهلِ ديوان (يا په بله وينا اهلِ تعلق او هم پېشه خلک) دي. اهلِ ديوان په اصل کې هغو کسانو ته وايي چې د فوج او عسکرو په دفتر (ربجسټر) کې يا مثلاً د يوې ادارې د کار کوونکو افرادو په دفتر او ليسټ کې د هغو نومونه درج سوي وي (کوم چې په يوه اداره کې کار کوي). نو په دفتر او ليسټ کې چې د کومو افرادو نومونه درج وي کوم چې يو د بل متعلقين وي. هغوی يو د بل عاقله دي. ځکه که له دوی څخه پر يوه فرد څه واقعه راسي. نو هغه له همدې خپلو افرادو او ملګرو څخه د مدد طلب کوي. لهذا که له دوی څخه يوّ داسې فعل صادر سي چې د هغه په وجه ديت واجبېږي. نو هغه به پر همدې اهلِ دېوان او اهلِ تعلق واجبېږي (او که د چا اهل ديوان نه وي

او هغه په هيڅ اداره او څانګه کي هيڅ وظيفه او متعلقين نه لري. يا اهلِ ديوان وي خو د هغو مرسته د ديت اداء کولو لپاره کافي نه وي نو بيا اهلِ خاندان "خاندان والا" د هغه عاقله کيږي).

د امام شافعي په نيز دا ديت د قاتل پر خاندان والا (يعني د هغه پر قريبانو او نژدې توميانو) باندي واجبيږي: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د نبي ﷺ په دور کي همدا طريقه رواج وه. لکه څرنګه چي حضرت شعبي دا حديث نقل کړی دی "جعل رسول الله ﷺ عَقْلَ قريشٍ على قريشٍ وعَقْلَ الأنصارِ على الأنصار" (يعني نبي کريم ﷺ د قريشو ديت پر قريشو او د انصارو ديت پر انصارو مقرر کړی). او نبي کريم ﷺ خاتم النبيين چي تر هغه وروسته د وحي سلسله منقطع ده، نو ځکه په دې حکم او طريقه کي د نسخ وغيره احتمال نسته او د نبوي دور په څېر اوس هم ديت د قاتل پر خاندان والا وو (قريبانو) باندي واجب دی.

ولأنه صلة إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي ديت د صله رحمی او خپلوی په توګه عاقله اداء کوي او د صله رحمی زيات لايق او حقداره د انسان خپل قريبان او قوم والا دي. نو ځکه په دې حواله سره هم پر همدوی ديت واجبيږي.

ولنا قضية عمر إلخ: زموږ مسلک ذکر سو چي عاقله "اهلِ ديوان" دي او ديت پر هغو واجبيږي. په دې هکله زموږ دليل د حضرت عمر ﷛ فيصله ده چي کله هغه دفترونه (ريجسټرونه) مرتب کړل نو ديت يې پر اهلِ ديوان باندي مقرر کړی او هيڅ يوه صحابي پر دې نکير نه وکړی، لنډه دا چي پر اهل ديوان د ديت واجبېدلو په هکله د صحابه وو اجماع ده، او اجماع له شرعي حجتونو څخه يو حجت دی.

وليس ذلك بنسخ إلخ: او دا پر اهلِ ديوان د ديت مقرر کول د نبوي حکم لپاره نسخ نه ده لکه څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي، بلکي دا معناً د دې حکم اثبات دی: ځکه د ديت واجبېدلو مدار پر نصرت دی يعني ديت پر اهل نصرت (د انسان پر مددګارانو) باندي واجبيږي او د نصرت (مدد) څو قسمونه دي ① د قرابت په وجه هم نصرت کيږي. ② د حلف په وجه هم نصرت کيږي. يعني کومو خلکو چي يو د بل د نصرت کولو عهد او تړون کړی وي چي دې ته "عقد موالاة" وايي. ③ او کله نصرت د آزادولو د ولاء پر بناء کيږي، يعني پر دې بناء چي سړي (مالک) ته د خپل آزاد کړی سوي غلام ولاء (ميراث) حاصليږي نو پر دې بناء له هغه (مالک) څخه د نصرت طلب کيږي. ④ او کله نصرت پر دې بناء کيږي چي انسان په يو قوم کي د اوسېدلو په وجه له هغو څخه شمېرل کيږي. لنډه دا چي د نصرت دغه بېلابېل انواع او قسمونه وه او د حضرت عمر ﷛ د خلافت په زمانه کي

نصرت د دېوان په وجه وو (څکه دیوانونه او دفترونه په هغه وخت کي مرتب سول. نو د ضرورت په وخت کي به همدا اهل دیوان یو د بل مرسته کوله) او دا نصرة بالدیوان له دې څخه مخکي ثابت نه وو. نو د معنیٰ په رعایت کولو سره حضرت عمر رضي الله عنه پر اهلِ دیوان دیت واجب کړې. لهذا د هغه داعمل د حکمِ اصلي (نبوي حکم) نسخ نه ده. بلکي د حکمِ اصلي د معنیٰ لحاظ دی یعني د معنیٰ په اعتبار سره د هغه اتباع ده.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلِهٰذَا قَالُوْا په همدې وجه فقهاؤ فرمایلي دي لَوْكَانَ الْيَوْمَ قَوْمٌ تَنَاصُرُهُمْ بِالْحِرَفِ چي که نن سبا یو قوم داسي وي چي د هغوی یو د بل مدد کول د پېشو [کسب ګرۍ] په وجه وي فَعَاقِلَتُهُمْ أَهْلُ الْحِرْفَةِ نو د هغو عاقله پېشې والا دي وَإِنْ كَانَ بِالْحِلْفِ او که [تناصر] د حلف [تړون] په وجه وي فَأَهْلُهُ نو عاقله حلف والا دي وَالدِّيَةُ صِلَةٌ كَمَا قَالَ او دیت صله ده لکه څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایلي دي لٰكِنَّ إِيجَابَهَا فِيمَا هُوَ صِلَةٌ وَهُوَ الْعَطَاءُ أَوْلٰى مِنْهُ فِي أُصُوْلِ أَمْوَالِهِمْ لیکن دیت په داسي مال کي واجبول کوم چي صله یعني عطاء ده اولیٰ دي د دوی په اصل مالونو کي له دیت واجبولو څخه [یعني دیت د عاقله وو د صلې (عطیې) په مال کي واجبول زیات غوره دي له دې څخه چي د هغو په اصل مال کي واجب کړی سي څکه دیت خپله یو صله (عطیه) ده] وَالتَّقْدِيْرُ بِثَلَاثِ سِنِيْنَ مَرْوِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د دریو کالو اندازه له نبي کریم ﷺ څخه روایت سوې ده وَمَحْكِيٌّ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه او له حضرت عمر رضي الله عنه څخه نقل سوې ده وَلِأَنَّ الْأَخْذَ مِنَ الْعَطَاءِ لِلتَّخْفِيْفِ او څکه چي له عطیې څخه اخیستل د تخفیف په وجه دي وَالْعَطَاءُ يَخْرُجُ فِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً وَاحِدَةً او عطیه په هر کال کي یو وار راوځي.

**اللغات:** ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل کومک او مدد کول. ﴿حِرَف﴾ جمع د حِرْفَةٌ ده: پېشه، کسب. ﴿حِلْف﴾ د دې وضاحت مخکي تېر سو. ﴿تقدیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: اندازه ټاکول. مقرر کول. ﴿تخفیف﴾ مخکنی صیغه ده: سپکتیا او آساني کول.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د احنافو د مسلک نور تائید کوي فرمایي چي له مخکیني څلورو صورتونو څخه بغیر د نصرت او تعاون نور صورتونه هم کېدلای سي. لهذا که نن سبا د

بعضي خلکو په مینځ کي یو د بل نصرت او مدد کول د کسب او پېشې پر بنیاد وي (مثلاً په یو مارکیټ کي رواج دا وي چي د هغه ټوله کسبګر یو د بل مدد کوي) نو دوی ټوله یو د بل عاقله کیږي. او که د نصرت او تعاون مدار پر حلف او موالات وي یعني بعضي خلکو په خپل مینځ کي یو د بل د نصرت او دوستي کولو تړون کړی وي. نو دوی یو د بل عاقله کیږي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره بالکل پر ځای ده چي دیت صله ده. لهذا دا صله (دیت) به په هغه مال کي واجبول اولی وي کوم چي د صلې قابل وي. نو ځکه موږ دیت دا اصل مالونو پر ځای په صلاتو (عطیاتو) کي واجب کړی دی او کوم عطیات چي د حکومت (سرکار) له طرفه ورکول کیږي د ځان او د اهل وعیال له خرچ څخه بغیر هغوی هم په صلاتو کي داخلیږي. لهذا په همدې عطیاتو کي دیت واجب کړی سو.

والتقدیر بثلاث إلخ: او پاته سو دا سوال چي دیت به په دریو کالو کي ولي اداء کول کیږي؟ نو جواب یې دا دی چي دا اندازه له نبي کریم ﷺ څخه روایت سوې ده او له حضرت عمر ﷺ څخه نقل سوې ده، او څرنګه چي له عطیاتو څخه د دیت اخیستل د تخفیف په غرض دي (یعني د تخفیف او آساني کولو په خاطر دیت د عاقله ولا په عطیاتو کي واجب کړی سوی دی. نه د هغو په اصل مال کي)، او تخفیف په هغه صورت کي بنه ثابتیږي چي کله دیت په دریو کالو کي (په حصه، خصه سره) څني واخیستل سي. نو په دې وجه دیت په دریو کالو کي واجب کړی سوی دی،

## د دریو کالو د مودې حیثیت او تفصیل

فَإِنْ خَرَجَتِ الْعَطَايَا فِي أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ أَوْ أَقَلَّ بیا که عطیات له دریو کالو څخه په زیاته موده کي راووځي یا [له هغه څخه] په کومه موده کي أُخِذَ مِنْهَا نو دیت به له هغه عطیاتو څخه اخیستل کیږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ د مقصود حاصلېدلو لپاره وَتَأْوِيْلُهُ إِذَا كَانَتِ الْعَطَايَا لِلسِّنِيْنَ الْمُسْتَقْبِلَةِ بَعْدَ الْقَضَاءِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله د قول تأویل دا دی چي کله عطیات د را روانو کلونو وي د قاضي تر فیصلې وروسته [یعني د قاضي تر فیصلې وروسته د آینده کلونو عطیات پېشګي ورکول سوي وي] حَتّٰى لَوِ اجْتَمَعَتْ فِي السِّنِيْنَ الْمَاضِيَةِ قَبْلَ الْقَضَاءِ ثُمَّ خَرَجَتْ بَعْدَ الْقَضَاءِ تر دې چي که د قاضي تر فیصلې مخکي د تېرو کلونو عطیات جمع سوي وي بیا د قاضي تر فیصلې وروسته را ووځي لَا يُؤْخَذُ مِنْهَا نو له هغه عطیاتو څخه به دیت نه اخیستل کیږي لِأَنَّ الْوُجُوْبَ بِالْقَضَاءِ ځکه [پر عاقله وو د دیت]

واجبلل د قاضي په فیصله سره وي عَلٰی مَا نُبَیِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰی د هغه تفصیل مطابق چي موږ به یې انشاء الله [وروسته] بیان کړو.

**اللغات:** ﴿عطایا﴾ جمع د عَطِیَّةٌ ده: ورکړه (بخشش)، هبه، او هغه مال او رزق کوم چي د فوج (سپاهیانو) لپاره په کال کي تاکل سوی وي او له بیت المال څخه د کاله ورکول کیږي.

**تشریح:** څرنګه چي عادت دا وو چي له میاشتنانه تنخا او روزینې څخه بغیر چي کوم کالنی عطیه او انعام به فوج او کارکونکو ته ورکول کېده، هغه به په کال کي یو وار ورکول کېده. نو له هغه عطیاتو څخه به په هر کال کي د دیت ثلث (دریمه حصه) اخیستل کېده چي په دریو کالو کي پوره دیت اداء سي.

لېکن که هغه د دریو کالو عطیات له دریو کالو څخه په زیاته موده مثلاً په شپږو کالو کي ورکول کیږي، نو بیا به په شپږو کالو کي دیت ځني اخیستل کیږي یعني د کاله یو سدس (شپږمه حصه) به ځني اخیستل کیږي، او که له دریو کالو څخه په کمه موده مثلاً صرف په یوه کال کي د دریو کالو عطیات ورکول سي. نو ټوله دیت به د همدې یوه کال له عطیاتو څخه اخیستل کیږي؛ ځکه مقصود او مطلوب دا دی چي دیت د دوی له عطیاتو څخه واخیستل سي (د تخفیف په توګه چي پر دوی بوج رانه سي). او دلته همداسي دي.

لېکن په دغه عطیاتو کي دوې خبرې یاد ساتل پکار دي: ① یوه دا چي په دې عطیاتو کي دیت هغه وخت واجبیږي کله چي قاضي پر اهل دیوان د دیت فیصله کړې وي نو د قاضي تر فیصلې وروسته دا عطیات هغو ته ورکول سوي وي. ② او دویمه خبره دا چي دا عطیات به د درا روانو کلونو لپاره پېشکي ورکول سوي وي؛ او د دې وجه دا ده چي د عاقله په تعین کي کلام دی. نو د هغو تعین به د قاضي په فیصله سره کیږي.

لهذا که د مخکیني څو کلونو عطیات بند وي او بیا د قاضي تر فیصلې وروسته ورکول سي. نو له هغه عطیاتو څخه به دیت نه اخیستل کیږي؛ ځکه دویم شرط نسته. (اشرف الهدایه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ خَرَجَ لِلْقَاتِلِ ثَلَاثُ عَطَايَا فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ او که د قاتل لپاره په یوه کال کي درې عطیات را ووځي مَعْنَاهُ فِي الْمُسْتَقْبَلِ د دې مطلب دا دی [د قاضي تر فیصلې وروسته] په مستقبل کي [یعني د را روانو دریو کلونو عطیات را ووځي] يُؤْخَذُ مِنْهَا كُلُّ الدِّيَةِ نو ټوله دیت به له هغه عطیاتو څخه اخیستل کیږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی [اشارة إلى قوله: لأن الوجوب بالقضاء] وَإِذَا كَانَ جَمِيعُ

الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ او کله چې توله دیت په دریو کالو کې وي فَكُلُّ ثُلُثٍ مِنْهَا فِي سَنَةٍ نو د دیت هر ثلث به په یوه کال کې [واجب] وي وَإِنْ كَانَ الْوَاجِبُ بِالْفِعْلِ ثُلُثَ دِيَةِ النَّفْسِ أَوْ أَقَلَّ او که د فعل [جرم] په وجه د نفس د دیت ثلث یا [تر ثلث] کم واجب وي كَانَ فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ نو هغه په یوه کال کې [واجب] دی وَمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ إِلَى تَمَامِ الثُّلُثَيْنِ او [د دیت] کوم مقدار چې له یوه ثلث څخه زیات وي د دوو ثلثونو تر بشپړتیا پورې فِي السَّنَةِ الثَّانِيَةِ [نو هغه له یوه ثلث څخه زیات مقدار] په دویم کال کې [واجب دی] وَمَا زَادَ عَلَى ذٰلِكَ إِلَى تَمَامِ الدِّيَةِ او کوم مقدار چې له دوو ثلثونو څخه زیات وي د دیت تر بشپړتیا پورې فِي السَّنَةِ الثَّالِثَةِ [نو هغه] په دریم کال کې [واجب دی].

**تشریح:** په دې عبارت کې له قاتل څخه یوازې قاتل مراد نه دی بلکې عاقله مع القاتل مراد دي. او د عبارت مطلب دا دی چې که د قاضي تر قضاء وروسته اهل دیوان ته پېشکې د دریو کال عطیات ورکول سي، نو بیا به درې کال تاخیر نه کول کیږي بلکې له هغه څخه به سملستي دیت اخیستل کیږي: دلیل یې مخکې تېر سو.

وروسته فرمایي چې په کوم صورت کې نفس خطاءً قتل کړی سوی وي، نو هلته پوره دیت واجبیږي او په هر کال کې به د دیت یو ثلث (درېیمه حصه) اخیستل کیږي، لېکن که دیت واجب نه وي بلکې ارش واجب وي کوم چې د ما دون النفس جنایت په عوض کې واجبیږي (مثلاً یو سړي خطاءً دیو چالاس پرېکړی وي چې د هغه په وجه ارش واجب وي)، په داسې صورت کې به په یوه کال کې څومره مقدار اخیستل کیږي؟، نو فرمایي چې که د ارش مقدر د دیت ثلث وي یا تر هغه کم وي. نو هغه توله ارش به په همدې اول کال کې اخیستل کیږي.

او که ارش له ثلث څخه زیات وي په دې شرط چې له ثلثان څخه اضافه نه وي، نو یو ثلث به اول کال او پاته ارش به دویم کال اخیستل کیږي.

او که د ارش مقدار له ثلثان (یعني د دیت له دو ثلثونو) څخه هم زیات وي. نو یو ثلث به یو کال او دویم ثلث به بل کال او پاته مقدار به درېیم کال اخیستل کیږي. (اشرف الهدایه)

**دیت برابره ده پر عاقله وو وي، که پر قاتل په هر صورت کي په دریو کالو کي واجب دی**

وَمَا وَجَبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ مِنَ الدِّيَةِ او کوم دیت چي په عاقله وو باندي واجب وي أَوْ عَلَى الْقَاتِلِ بِأَنْ قَتَلَ الْأَبُ ابْنَهُ عَمْدًا یا په قاتل باندي واجب وي په دې توګه چي پلار خپل زوی عمداً قتل کړي وي فَهُوَ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو دا دیت [زموږ په نېز] د قاتل په مال کي په دریو کالو کي [واجب] دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَا وَجَبَ عَلَى الْقَاتِلِ فِي مَالِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي کوم دیت د قاتل په مال کي واجب وي فَهُوَ حَالٌّ نو هغه في الحاله [واجب] دی لِأَنَّ التَّأْجِيلَ لِلتَّخْفِيفِ لِتَحَمُّلِ الْعَاقِلَةِ ځکه [د دریو کالو] مهلت ورکول [د عاقله وو په حق کي] د تخفیف په وجه دي. د عاقله وو د تحمل په وجه [چي دیت دوی په غاړه اخیستی دی او دوی یې اداء کوي] فَلَا يَلْحَقُ بِهِ الْعَمْدُ الْمَحْضُ نو ځکه خالص عمد به د هغه سره نه لاحقول کیږي وَلَنَا: أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ او زموږ دلیل دا دی: چي قیاس [د نفس په بدله کي] د مال واجبولو انکار کوي وَالشَّرْعُ وَرَدَ بِهِ مُؤَجَّلًا او شریعت د مؤجل مال واجبولو په باره کي وارد سوی دی [یعني په شریعت کي دیت د دریو کالو په أجل (نېټه) کي واجب کړی سوی دی] فَلَا يَتَعَدَّاهُ نو دا [د مال واجبول] به له هغه [مورد شرع (تأجیل)] څخه نه متعدي کیږي.

**اللغات:** ﴿حالٌ﴾ نقد (نغد)، حالي (في الحاله او فوراً اداء کېدونکی). ﴿تأجيل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مؤجل کول. وخت او نېټه ورکول، مهلت ورکول. ﴿تحمّل﴾ د تفعل د باب مصدر دی: زغمل (برداشت کول). په خپله ذمه اخیستل. ﴿مؤجّل﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: د کوم شي لپاره چي یو نېټه (موده) ټاکل سوې وي، نېټه داره، پر یو موده موقوف.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز دیت به په دریو کالو کي اداء کول کیږي برابره ده دیت د قاتل په عاقله وو باندي واجب وي او که خودي پر قاتل واجب وي. مثلاً پلار قصداً خپل زوی قتل کړی وي نو په پلار باندي په دریو کالو کي دیت واجب دی. لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قاتل په مال کي واجبېدونکی دیت في الحاله او سمدستي واجبیږي او په هغه کي به تاخير نه کیږي؛ ځکه د عاقله وو په حق کي چي کوم تأخير ثابت دی هغه د تخفیف پر بناء ثابت دی چي عاقله خپله مجرمان نه دي او د صله رحمی په توګه دیت اداء کوي. حال دا چي قاتل خپله

مجرم او جنایتکاره وي. لهذا عمد محض به د هغه سره نه لاحقول کیږي بلکي پر قاتل به في الحاله دیت واجبول کیږي او په هغه کي به د تأخیر اجازه نه ورکول کیږي.

ولنا أن القياس إلخ: په دې هکله زموږ دلیل دا دی چي د قتل نفس په بدله کې مال واجبول خلاف القیاس دي ځکه د نفس او مال تر مینځ هیڅ مناسبت نسته. لیکن له هدر او ضیاع څخه د نفسِ محترم د بچ کولو په خاطر د هغه په بدله کي مال واجب کړی سوی دی. او څرنګه چي دا مال (دیت) په قتلِ خطاء کي مؤجل (نیته داره) واجب سوی دی (چي د هغه لپاره درې کاله نېټه تاکل سوې ده). نو ځکه په قتلِ عمد کي به هم هغه مؤجل واجبیږي او معجل به نه وي: ځکه قاعده دا ده چي "ما ثبت علی خلاف القیاس لا یتعدیٰ إلیٰ غیره".

## که لس خلک خطاءً یو څوک قتل کړي نو هر کس به څومره دیت اداء کوي؟

وَلَوْ قَتَلَ عَشَرَةٌ رَجُلًا خَطَأً او که چیري لس کسان یو سړی خطاءً قتل کړي فَعَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ عُشْرُ الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ نو پر هر یوه د دیت لسمه حصه په دریو کالو کي [واجب] ده اِعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ پر کُل [ټوله دیت] باندي د جزء په قیاسولو سره إِذْ هُوَ بَدَلُ النَّفْسِ ځکه دا [عُشر (جزء) هم] د نفس بدل دی وَإِنَّمَا يُعْتَبَرُ مُدَّةُ ثَلَاثِ سِنِيْنَ مِنْ وَقْتِ الْقَضَاءِ بِالدِّيَةِ او د دریو کالو موده د دیت د فیصلې کولو له وخت څخه معتبر کیږي لِأَنَّ الْوَاجِبَ الْأَصْلِيَّ الْمِثْلُ ځکه چي اصلي واجب مثل [نفس] دی وَالتَّحَوُّلَ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْقَضَاءِ او د قیمت [دیت] وطرف ته منتقل کېدل د قضاء په ذریعه کیږي فَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاؤُهَا مِنْ وَقْتِهِ نو ځکه د هغه د مودې ابتداء به د قضاء له وخت څخه معتبره وي كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُوْرِ لکه څرنګه چي د مغرور [دوکه کړی سوي خاوند] په بچي کي کیږي.

**اللغات**: ﴿عُشر﴾ لسمه حصه. ﴿التحوّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اوښتل، نقل کېدل (منتقل کېدل). ﴿مغرور﴾ د نصر له باب څخه اسمِ مفعول دی: دوکه کړی سوی (چا ته چي دوکه ورکول سوې وي). وَلَدُ الْمَغْرُوْر" (د دوکه کړی سوي پلار بچی) ځکه د ده پلار ته د ده مور (مینځې) دوکه ورکړې وي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که لس کسان خطاءً یو کس قتل کړي. نو پر دوی هر یوه د دیت لسمه حصه په دریو کالو کي واجبیږي (یعني په دې صورت کي به هم په دریو کالو کي هر یو خپله لسمه حصه اداء کوي): ځکه د دیت لسمه حصه هم د ټوله دیت په څېر د نفس بدل ده او ټوله دیت په دریو

کالو کې اداء کول کیږي. لهذا پر کُل د جُزء په قیاسولو سره به عُشرِ دیت هم په دریو کالو کې اداء کول کیږي.

وانما یعتبر الخ: د دې حاصل دا دی چې د کُل دیت په څېر د عشرِ دیت ورکولو ابتداء به هم د قاضي د دیت له فیصلې څخه وروسته کیږي یعني کله چې قاضي پر ټولو مجرمانو د دیت فیصله وکړي. تر هغه وروسته به د دریو کالو په موده کې مذکوره دیت اداء کول کیږي: د دې وجه دا ده چې د نفس په عوض کې اصل واجب خو مثل یعني نفس دی (چې د هغه په بدله کې هم نفس کې قتل کړی سي). لېکن په قتلِ خطاء کې د خطاء د عذر په وجه د نفس په عوض کې مال (دیت) واجب کړی سوی دی او دا مال د قاضي په قضاوت سره واجبیږي. لهذا د دې وجوب موده به هم د قاضي تر قضاوت وروسته معتبره شمېرل کیږي.

کما فی ولد المغرور الخ: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د مذکوره مسئلې د وضاحت لپاره یو مثال پېش کړی دی. حاصل یې دا دی چې که ښځه د یو سړي سره نکاح وکړي او خپل د آزادۍ دعویٰ وکړي چې زه آزاده ښځه یم او بیا له دې سړي څخه د هغې بچی وسي. بیا یو بل څوک پر هغې د مینځې والي دعویٰ وکړي چې دا خو زما مینځه ده او مینځه له سړي څخه واپس واخلي. نو د دې سړي دا بچی آزادیږي او داسي بچي ته ولد المغرور وایي (ځکه پلار ته یې د ده مور دوکه ورکړې وه چې زه آزاده یم) او دې مغرور (پلار) ته به د بچي قیمت ورکول کیږي. او دا قیمت د قضاء د ورځي معتبر کیږي یعني د هغه ورځي قیمت به ورکول کیږي په کومه ورځ چې د دې سړي د مغرور کېدلو او د بچيَ د ولد المغرور کېدلو فیصله وسي. نو څرنګه چې د ولد المغرور په مسئله کې د قضاء د ورځي قیمت معتبر دی. نو همداسي به په مذکوره مسئله کې هم د قضاء ورځ معتبره وي او د دریو کال ابتداء به د قضاء له ورځي څخه کیږي.

## که د مجرم اهلِ دیوان او متعلقین نه وي نو د هغه عاقله څوک دي؟

قَالَ: وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الدِّيوَانِ فرمایي: او څوک چې له اهلِ دیوان څخه نه وي فَعَاقِلَتُهُ قَبِيلَتُهُ نو د هغه عاقله د هغه قبیله ده لِأَنَّ نُصْرَتَهُ بِهِمْ ځکه د هغه نصرت د همدوی په وجه وي وَهِيَ الْمُعْتَبَرَةُ فِي التَّعَاقُلِ او همدا نصرت په عاقله کېدلو کې معتبر دی.

اللغات: ﴿اهل الدیوان﴾ د دې وضاحت مخکې تېر سو. ﴿تعاقل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل دیت اداء کول. عاقله کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی له اهلِ ديوان څخه نه وي (يعني هغه د فوج او عسکرو په يو دسته يا په يو اداره او ځانګه کې هيڅ وظيفه نه لري چې د هغه دستې يا ادارې افراد او متعلقين يې عاقله سي). نو په دې صورت کې خپلې قبيلې او خاندان والا د هغه عاقله کيږي، ځکه د هغه د نصرت مدار دی پر قبيلې والا دې او د همدوی په وجه هغه ته نصرت او قوت حاصل دی. او په عاقله کېدلو همدا نصرت معتبر دی. نو ځکه د اهلِ ديوان د نشتوالي په صورت کې همدا قبيلې والا د هغه عاقله کيږي چې د هغه له طرفه به عقل (ديت) اداء کوي.

## د ديت طريقه او تفصيل

قَالَ: وَتُقْسَمُ عَلَيْهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ او ديت به پر قبيلې والا په دريو کالو کي تقسيمول کيږي لَا يُزَادُ الْوَاحِدُ عَلٰى أَرْبَعَةِ دَرَاهِمَ فِي كُلِّ سَنَةٍ په هر کال کي به له يوه کس څخه پر څلورو زيات دراهم نه اخيستل کيږي وَيَنْقُصُ مِنْهَا او له څلورو څخه کمول کېدای سي قَالَ ﷺ: كَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ فِي مُخْتَصَرِهِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کي همداسي بيان کړي دي وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلٰى أَنَّهُ يُزَادُ عَلٰى أَرْبَعَةٍ مِنْ جَمِيْعِ الدِّيَةِ او دا [قول د امام قدوري] اشاره ده ودې ته چي له ټوله ديت څخه پر څلورو درهمو اضافه کېدلای سي [يعني په دريو کالو کي تر څلور زيات دراهم ځني اخيستل کېدای سي] وَقَدْ نَصَّ مُحَمَّدٌ عَلٰى أَنَّهُ لَا يُزَادُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ جَمِيْعِ الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ عَلٰى ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ حال دا چي امام محمد رَحِمَهُ الله د دې خبري صراحت کړی دی [يعني دا يې صراحتاً بيان کړې ده] چي پر يوه کس به له ټوله ديت څخه په دريو کالو کي پر دريو يا څلورو درهمو اضافه نه کول کيږي فَلَا يُؤْخَذُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ فِي كُلِّ سَنَةٍ إِلَّا دِرْهَمٌ أَوْ دِرْهَمٌ وَثُلُثُ دِرْهَمٍ نو له هر يوه څخه به په هر کال کي صرف يو درهم يا يو درهم او د درهم دريمه حصه اخيستل کيږي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زياته صحيح ده.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي کله پر قبيلې او خاندان والا باندي ديت تقسيمول کيږي نو (د امام محمد رَحِمَهُ الله د تصريح مطابق) د دريو کالو په موده کي به هر کال له دوی هر يوه څخه يا صرف يو درهم اخيستل کيږي چي مجموعه درې درهمه سي يا له هر يوه څخه به يو درهم او د درهم يو ثلث (دريمه حصه) اخيستل کيږي چي مجموعه څلور درهمه سي: ځکه له يوه فرد څخه تر څلورو درهمو زيات اخيستل جائز نه دي. که څه هم له څلورو څخه د کمولو ګنجايش سته لېکن د زياتوب ګنجايش او اختيار نسته.

فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله له کلام څخه په ښکاره دا معلوميږي چي په دريو کالو کي له هر يوه څخه تر څلورو زيات دراهم اخيستل کېداى سي؛ ځکه هغه خو داسي فرمايلي دي چي له يو هر يوه څخه په يوه کال کي تر څلورو زيات دراهم نه سي اخيستل کېداى. نه په دريو کالو کي. او دا د امام محمد رَحِمَهُ الله د تصريح خلاف دي او زيات صحيح (و مختار عند الفقهاء) هغه دي کوم چي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي. (اشرف الهدايه)

## که د قاتل خاندان د ديت اداء کولو لپاره کافي نه وي نو څه به کيږي؟

قَالَ: وَإِنْ لَمْ يَكُنْ تَتَّسِعُ الْقَبِيْلَةُ لِذٰلِكَ فرمايي: او که چيري قبيله د هغه [ديت اداء کولو لپاره] ګنجايش نه لري ضُمَّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ نو د هغو سره به تر ټولو نژدې [بله] قبيله يوځاى کول کيږي مَعْنَاهُ نَسَبًا د دې [اقرب] مطلب دا دى چي د نسب په اعتبار سره [تر ټولو ورته نژدې] وي كُلُّ ذٰلِكَ لِمَعْنَى التَّخْفِيْفِ دا ټوله د تخفيف په وجه دي [چي په دې سره د قبيلې والا (عاقله وو) په حق کي تخفيف ثابت سي] وَيُضَمُّ الْأَقْرَبُ فَالْأَقْرَبُ عَلٰى تَرْتِيْبِ الْعَصَبَاتِ او تر ټولو نژدې بيا نژدې به د عصباتو د ترتيب مطابق ور سره يوځاى کول کيږي الْإِخْوَةُ ثُمَّ بَنُوْهُمْ ثُمَّ الْأَعْمَامُ ثُمَّ بَنُوْهُمْ [يعني اول] ورونه بيا د هغو زامن بيا اکاګان بيا د هغو زامن وَأَمَّا الْآبَاءُ وَالْأَبْنَاءُ فَقِيْلَ: يَدْخُلُوْنَ لِقُرْبِهِمْ او کوم چي [د قبيلې والا] پلرونه او زامن دي نو ويل سوي دي: چي د نژدېکت په وجه هغوى په عاقله کي داخليږي وَقِيْلَ: لَا يَدْخُلُوْنَ او ويل سوي دي: چي نه داخليږي لِأَنَّ الضَّمَّ لِنَفْيِ الْحَرَجِ حَتّٰى لَا يُصِيْبَ كُلَّ وَاحِدٍ أَكْثَرُ مِنْ ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ ځکه [د قبيلې والا سره نور کسان] يوځاى کول د تکليف ليري کولو لپاره دي [يعني] چي هر يوه ته له دريو يا څلورو درهمو څخه زيات نه ورسيږي [يعني چي د قبيلې پر هر فرد له دريو يا څلورو څخه زيات دراهم لازم نه سي] وَهٰذَا الْمَعْنٰى إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَ الْكَثْرَةِ او دغه معنى د زياتوب په وخت کي ثابتيږي [چي ضم کړل سوي کسان زيات وي] وَالْآبَاءُ وَالْأَبْنَاءُ لَا يَكْثُرُوْنَ او پلرونه او زامن زيات نه وي.

**اللغات**: ﴿تتسع﴾ د افتعال د باب مضارع ده: وسعت او ګنجایش لرل. پراخ کېدل. ﴿ضُمّ﴾ د نصر له باب ځنخه ماضي مجهوله ده: یو شی د بل شي سره یو ځای کول. ضمول. ﴿تخفیف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سپکتیا او آساني کول. آساني پیدا کول. ﴿حرج﴾ تکلیف. ستونزه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که د قاتل قبیله او خاندان کوچنی وي او د دیت اداء کولو لپاره کافي نه وي، نو د قبیلې والا سره به بل هغه خاندان شاملول کیږي کوم چي د نسب په اعتبار سره هغو ته ډېر نژدې وي چي په دې سره د قبیلې والا په حق کي تخفیف ثابت سي، او دا نژدې نسب والا خاندان به د هغه ترتیب مطابق ور سره شاملول کیږي کوم ترتیب چي په عصباتو کي ذکر سوی دی. یعني اول به د قبیلې والا سره د هغو وروڼه شاملول کیږي. بیا وراره ګان. بیا اکاګان او بیا د هغو زامن.

وأما الآباء إلخ: او پاته سوه د قبیلې والا پلرونه او زامن هغوی په دې عاقله کي شاملیږي. که نه؟ نو فرمایي چي په دې باره کي دوه قوله دي: ① یو قول دا دی چي هغوی هم په عاقله کي داخلیږي: ځکه د دیت مدار پر قربت او نصرت دي او دا کسان تر ټولو نژدې قریبان دي. ② دویم قول دا دی چي پلرونه او زامن په عاقله کي نه داخلیږي: ځکه د قبیلې والا سره نور کسان ځکه شامل کړل سوي دي چي د هغوی شمېر زیات سي او پر هر فرد له دریو یا څلورو ځنخه زیات دراهم نه پرېوځي. او دا مقصد همغه وخت حاصلیږي کله چي د عاقلې د افرادو شمېر زیات سي، او پلرونه او زامن خو زیات نه وي چي په هغو سره دا مقصد پوره حاصل سي. نو ځکه په عاقله وو کي به د هغو داخلول او شاملول بې ځایه وي. (أَقُولُ: فِيهِ كَلَامٌ، وَهُوَ أَنَّ عَدَمَ كَثْرَةِ الْآبَاءِ مُسَلَّمٌ، وَأَمَّا عَدَمُ كَثْرَةِ الْأَبْنَاءِ كَكَثْرَةِ الْإِخْوَةِ فَمَمْنُوعٌ، كَيْفَ وَإِخْوَتُهُ أَبْنَاءُ أَبِيهِ. فَإِذَا جَازَ أَنْ يَكْثُرَ أَبْنَاءُ أَبِيهِ فَلِمَ لَا يَجُوزُ أَنْ يَكْثُرَ أَبْنَاءُ نَفْسِهِ فَتَأَمَّلْ! افتح القدير)

## که اهل دیوان (اهل دفتر) د دیت اداء کولو لپاره کافي نه وي نو څه به کیږي؟

وَعَلَى هٰذَا حُكْمُ الرَّايَاتِ إِذَا لَمْ يَتَّسِعْ لِذٰلِكَ أَهْلُ رَايَةٍ او د بېرغونو والا [اهلِ دواوین] حکم پر همدغه طریقه دی کله چي د هغه [دیت اداء کولو] لپاره بېرغ والا [اهلِ دیوان] ګنجایش نه لري ضُمَّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الرَّايَاتِ نو د هغو سره به تر ټولو نژدې بېرغ والا یو ځای کول کیږي يَعْنِي أَقْرَبَهُمْ نُصْرَةً إِذَا حَزَبَهُمْ أَمْرٌ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ یعني چي دوی ته د نصرت په اعتبار سره تر ټولو نژدې وي، کله چي دوی ته یو معامله پېښه سي، د اقرب فالاقرب په اعتبار سره [به ور سره یو ځای کول کیږي] وَيُفَوَّضُ ذٰلِكَ إِلَى

الْإِمَامِ او دا کا به امام ته سپارل کیږي لِأَنَّهُ هُوَ الْعَالِمُ بِهِ ځکه همدا امام په دې خبر وي ثُمَّ هٰذَا كُلُّهُ عِنْدَنَا بیا دا ټوله تفصیل زمونږ په نېز دی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يَجِبُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ نِصْفُ دِينَارٍ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر هر یوه نیم دینار واجبیږي فَيُسَوّٰى بَيْنَ الْكُلِّ نو د ټولو تر مینځ به برابري کول کیږي لِأَنَّهُ صِلَةٌ ځکه چي دا صله ده فَيُعْتَبَرُ بِالزَّكَاةِ نو ځکه هغه به پر زکاة قیاسول کیږي وَأَدْنَاهَا ذٰلِكَ او د زکاة ادنیٰ مقدار نیم دینار دی إِذْ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ عِنْدَهُمْ نِصْفُ دِينَارٍ ځکه د صحابه وو په نېز پنځه درهمه نیم دینار دی وَلٰكِنَّا نَقُوْلُ: هِيَ أَحَطُّ رُتْبَةً مِنْهَا لیکن مونږ [په جواب کي] وایو: چي دیت له زکاة څخه کمي مرتبې والا دی أَلَا تَرٰى أَنَّهَا لَا تُؤْخَذُ مِنْ أَصْلِ الْمَالِ آیا ته نه ګورې! چي دیت له اصل مال څخه نه اخیستل کیږي فَيَنْتَقِصُ مِنْهَا تَحْقِيْقًا لِزِيَادَةِ التَّخْفِيْفِ نو د زیات تخفیف ثابتولو لپاره به دیت له زکاة څخه کم کیږي.

**اللغات:** ﴿رایات﴾ جمع د رَايَةٌ ده: د فوج بیرغ (جنډه)، د لیدني لپاره درول سوي نښه. ﴿حَزَبَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: رسېدل، پېښېدل، لاحق کېدل. ﴿أحطّ﴾ د نصر له بابه د اسم تفضیل صیغه ده: زیات کنم، زیات ټیټ، ډېر کمي رتبې والا. ﴿ینتقص﴾ د افتعال د باب مضارع ده: کمېدل (کم کېدل).

**تشریح:** فرمايي چي که مخکېنی صورت په اهلِ دیوان (اهلِ دفتر) کي پېښ سي یعني د فوج دیوې دستې افراد یا د یوې ادارې افراد چي د هغوی نومونه په یوه دفتر (ریجسټر) کي درج وي که چیرې هغوی د دیت اداء کولو لپاره کافي نه وي، نو د هغو سره به نور اهلِ دیوان یعني د فوج د بلي دستې افراد یا د بلي ادارې افراد یو ځای کول کیږي کوم چي د نصرت او مدد په اعتبار سره هغو ته زیات نژدې وي.

او د عصباتو په څېر په هغو کي به هم د أقرب فالأقرب ترتیب جاري کیږي.

**ویفوض إلخ:** فرمايي چي دا کار یعني نور اهلِ دیوان ور سره یو ځای کول او د أقرب فالأقرب د تقدیم او ضم کار به امام ته سپارل کیږي، ځکه په داسي أمورو او د دې افرادو په نسب او تعلق امام ښه واقف وي نو هغه به په دې باره کي ښه ترتیب او د دیت اداء کولو آسانه لار برابره کړي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي مذکوره تفصیلات زمونږ د مسلک مطابق دي.

وعند الشافعي إلخ: او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز چي پر عاقله وو د ديت کوم مقدار واجبيږي، هغه پر هر يوه نيم دينار يعني پنځه درهمه دي او د ديت په اداء کولو کي به د عاقله وو سره پلرونه او زامن تولـه شريکان کيږي؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي ديت يو صله ده، لهذا هغه به پر زکاة قياسول کيږي، او د زکاة اقل نصاب يعني په دوو سوو درهمو کي پنځه درهمه پر صاحب نصاب واجب دي. لهذا په ديت کي به د عاقلې پر هر فرد پنځه درهمه واجبول کيږي يا نصف دينار به پرې واجبول کيږي، او د صحابه وو رضون الله عليهم اجمعين په دور کي نيم دينار او پنځه درهمه سره برابر وه.

ولکنا نقول إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل او قياس جواب ورکوي فرمايي چي د ديت مقام او رُتبه له زکاة څخه ټيټه او کمتره ده؛ ځکه زکاة په اصل مال کي واجبيږي حال دا چي ديت په اضافي مال او صلاتو کي واجبيږي؛ نو ځکه د ديت د کم رُتبه والي او ناقصوالي د ښکاره کولو لپاره دا ضروري ده چي د هغه مقدار د زکاة له مقدار څخه کم وي، په همدې وجه موږ (احنافو) د ديت مقدار له پنځو درهمو څخه کم کړی دی او درې يا څلور درهمه مو ټاکلي دي چي له زکاة څخه د هغه کموالی او ټيټوالی هم ښکاره سي او په هغه کي پر اداء کونکو (عاقله وو) تخفيف هم ثابت سي.

## که قاتل د اهل عطاء پر ځای له اصحاب الارزاق څخه وي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ كَانَتْ عَاقِلَةُ الرَّجُلِ أَصْحَابَ الرِّزْقِ او که چيري د قاتل سري عاقله رزق والا وي [چي له بيت المال څخه رزق (جيره) ورکول کيږي] يُقْضٰى بِالدِّيَةِ فِيْ أَرْزَاقِهِمْ فِيْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ الثُّلُثُ نو د دوی په ارزاقو کي به په دريو کالو کي د ديت فيصله کول کيږي په هر کال کي د يوه ثلث [دريمي حصې] لِأَنَّ الرِّزْقَ فِيْ حَقِّهِمْ بِمَنْزِلَةِ الْعَطَاءِ قَائِمٌ مُقَامَهُ ځکه د دوی په حق کي رزق د عطيې په درجه کي دی [او] د عطيې قائم مقام دی إِذْ كُلٌّ مِنْهُمَا صِلَةٌ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ ځکه له دې دواړو څخه هر يو له بيت المال څخه صله ده ثُمَّ يُنْظَرُ إِنْ كَانَتْ أَرْزَاقُهُمْ تَخْرُجُ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ بيا به دې ته کتل کيږي چي که د دوی رزقونه په هر کال کي [يو وار] را وځي فَكُلَّمَا يَخْرُجُ رِزْقٌ نو څرنګه چي دا رزق راووځي يُؤْخَذُ مِنْهُ الثُّلُثُ نو له هغه څخه به [د ديت] ثلث اخيستل کيږي بِمَنْزِلَةِ الْعَطَاءِ د عطيې په درجه کي [چي له هغه څخه هم په کال کي ثلث اخيستل کيږي] وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ فِيْ كُلِّ سِتَّةِ أَشْهُرٍ وَخَرَجَ بَعْدَ الْقَضَاءِ او که رزق په هرو شپږو مياشتو کي را وځي او د قاضي تر فيصلې وروسته را وځي يُؤْخَذُ مِنْهُ سُدُسُ الدِّيَةِ

نو له هغه شخخه به د ديت سدس [شپږمه حصه] اخيستل كيږي وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ فِي كُلِّ شَهْرٍ او كه په هره مياشت كي را وځي يُؤْخَذُ مِنْ كُلِّ رِزْقٍ بِحِصَّتِهِ مِنَ الشَّهْرِ نو له هر رزق شخخه به د مياشتي د حصې په اندازه اخيستل كيږي حَتَّى يَكُونَ الْمُسْتَوْفَى فِي كُلِّ سَنَةٍ مِقْدَارَ الثُّلُثِ چي په هر كال [دوولس مياشتو] كي اخيستل سوى مقدار [د ديت] ثلث سي وَإِنْ خَرَجَ بَعْدَ الْقَضَاءِ بِيَوْمٍ أَوْ أَكْثَرَ او كه رزق د قاضي تر فيصلې وروسته يوه يا زياتي ورځي [مثلاً دوې. درې ورځي] وروسته را ووځي أُخِذَ مِنْ رِزْقِ ذَلِكَ الشَّهْرِ بِحِصَّةِ الشَّهْرِ نو د هغه مياشتي له رزق شخخه به د مياشتي د حصې په اندازه اخيستل كيږي.

**اللغات**: ﴿عاقلة﴾ د قاتل او مجرم قريبان. يا د هغه متعلقين (اهل ديوان وغيره)، ﴿رزق﴾ لفظي معنىٰ يې ده: روزي. او په اصطلاحي معنىٰ كي يې څو اقوال نقل سوي دي: ① هغه مال او وظيفه كوم چي فقراؤ (غريبانو) ته له بيت المال شخخه وركول كيږي. ② هغه تنخا او خرڅ كوم چي فوج والا (سپاهيانو) ته د مياشتنه ضرورياتو لپاره وركول كيږي. (يا په بله وينا هغه مال كوم چي د دولت لخوا خپلو عمالو ته وركول كيږي)، وفيه أقوالٌ. ﴿العطاء﴾ لفظي معنىٰ يې ده: وركړه (بخشش) او اصطلاحي معنىٰ يې ده: هغه مال او انعام كوم چي فوج والا (سپاهيانو) ته هغو د خدماتو په عوض كي د كاله وركول كيږي. ﴿صِلة﴾ د "وَصَلَ يَصِلُ" له باب شخخه مصدر دى (په آخر كي يې هاء له واو محذوفه شخخه عوض ده): عطيه (وركړه)، احسان، انعام، صله رحمي. جمع: صِلَاتٌ، ﴿مستوفى﴾ د استفعال د باب مفعول دى: ترلاسه كړى سوى. اخيستل سوى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه د قاتل عاقله اصحابُ العطايا نه وي بلكي اصحابُ الارزاق وي (يا په بله وينا دا چي د قاتل عاقله هغه خلک وي چي له بيتُ المال شخخه رزق او وظيفه وركول كيږي)، نو د هغو له ارزاقو شخخه به په دريو كالو كي د ديت فيصله كول كيږي او هر كال به د ديت ثلث (دريمه حصه) څني اخيستل كيږي؛ ځكه د هغو په حق كي رزق د عطاء (عطيې) قائم مقام دى او له عطاء شخخه په دريو كالو كي ديت اخيستل كيږي (لكه مخكي چي ذكر سوه)، لهذا له رزق شخخه به هم په دريو كالو كي ديت اخيستل كيږي.

ثم ينظر الخ: ددې حاصل دا دى چي كه دغه اصحاب الارزاق عاقله وو ته په كال كي رزق وركول كيږي. نو په كال كي به يو وار له هغو شخخه د ديت ثلث اخيستل كيږي. او كه هغو ته په شپږ

میاشتو کې رزق ورکول کیږي، نو په شپږو میاشتو کې به له هغو څخه د دیت سدس اخیستل کیږي. په دې شرط چې د قاضي تر قضاء وروسته رزق ورکول سوی وي، او که عاقله وو ته هره میاشت رزق ورکول کیږي. نو په هره میاشت کې چې د دیت کوم حساب جوړیږي د هغه مطابق به میاشتانه له رزق څخه دیت اخیستل کیږي یعني هره میاشت به دومره مقدار ځني اخیستل کیږي چې په کال (دوولسو میاشتو) کې اخیستل سوی مقدار د دیت یو ثلث جوړیږي.

## او که د قاتل عاقله وو ته له بیتُ المال څخه میاشتانه رزق او کالانه عطایا ورکول کیږي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَتْ لَهُمْ أَرْزَاقٌ فِي كُلِّ شَهْرٍ وَأَعْطِيَةٌ فِي كُلِّ سَنَةٍ او که د عاقله وو لپاره په هره میاشت کې ارزاق [مقرر] وي او په هر کال کې عطیات [مقرر] وي فُرِضَتِ الدِّيَةُ فِي الْأَعْطِيَةِ دُونَ الْأَرْزَاقِ نو دیت به په عطیاتو کې مقررول کیږي، نه په ارزاقو کې لِأَنَّهُ أَيْسَرُ ځکه دا زیاته آسانه ده إِمَّا لِأَنَّ الْأَعْطِيَةَ أَكْثَرُ یا خو په دې وجه چې عطیات زیات وي أَوْ لِأَنَّ الرِّزْقَ لِكِفَايَةِ الْوَقْتِ یا ځکه چې رزق [فقط] د وخت د کفایت [ګزارې] لپاره وي فَيَتَعَسَّرُ الْأَدَاءُ مِنْهُ. نو له هغه څخه [د دیت] اداء کول به مشکل وي وَالْعَطِيَاتُ لِيَكُونُوا فِي الدِّيوَانِ قَائِمِينَ بِالنُّصْرَةِ او عطیات د دې لپاره وي چې هغوی [اهلِ دیوان] په دیوان کې پر نصرت قائم پاته وي فَيَتَيَسَّرُ عَلَيْهِمْ نو [له عطیاتو څخه د دیت] اداء کول به پر هغو آسانه وي.

**اللغات:** ﴿أرزاق﴾ جمع د رِزْقٌ ده او أعطیة جمع د عَطَاء ده، د دواړو وضاحت مخکې وسو. ﴿أیسر﴾ د سمِع او کرُم له باب څخه اسم تفضیل دی: زیاته آسانه. ﴿یتعسّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مشکل او سخت کېدل، ستونزمن کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که د قاتل عاقله داسې خلک وي چې هغو ته هره میاشت رزق هم ورکول کیږي او هر کال عطیات هم ورکول کیږي، نو دیت به په عطیاتو کې مقررول کیږي: ځکه د عاقله وو په حق کې شریعت د تخفیف رعایت کړی دی، او د عطیاتو مقدار له رزق څخه زیات وي (ځکه هغه په کال کې یو ځل وي نو د میاشتانه رزق په نسبت زیات ورکول کیږي)، لهذا له عطایا وو څخه دیت اخیستل به د هغو په حق کې آسانه او د تخفیف باعث وي، حال دا چې د رزق مقدار کم وي او هغه صرف د وخت د ګزارې او د ورځني اړتیاوو لپاره ورکول کیږي. نو له هغه څخه دیت

اخیستل په د هغو په حق کي مشکل او د تکلیف باعث وي. نو ځکه پر عاقله وو د تخفیف کولو په خاطر موږ په عطیاتو کي دیت مقرر کړی دی.

والعطیات إلخ: فرمایي چي عطیات په دې وجه فوج او عسکرو ته ور کول کیږي چي هغوی پر نصرت قائم پاته وي او د ضرورت پر مهال د نورو نصرت او مدد وکړی سي. نو دا د عطیاتو مال د هغو له ورځني ضروریاتو څخه زائد او اضافي وي. لهذا د رزق په نسبت له هغه څخه دیت اداء کول آسانه دي او د تکلیف او ستونزي باعث نه دی.

## قاتل به هم په عاقله وو کي داخلول کیږي، که نه؟

قَالَ: وَأُدْخِلَ الْقَاتِلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ فرمایي: او قاتل به د عاقله وو سره داخلول کیږي فَيَكُونُ فِيمَا يُؤَدِّي كَأَحَدِهِمْ نو قاتل به په اداء کېدونکي دیت کي د عاقله وو د یو فرد په څېر وي لِأَنَّهُ هُوَ الْفَاعِلُ ځکه چي همدا قاتل [د قتل] کار کونکی دی فَلَا مَعْنَى لِإِخْرَاجِهِ وَمُؤَاخَذَةِ غَيْرِهِ نو [له دیت اداء کولو څخه] د هغه ایستلو او له هغه څخه بغیر نور [یعني عاقله] نیولو لره هیڅ معنیٰ [او وجه] نسته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجِبُ عَلَى الْقَاتِلِ شَيْءٌ مِنَ الدِّيَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي پر قاتل د دیت هیڅ حصه هم نه واجبیږي اِعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ فِي النَّفْيِ عَنْهُ پر کُل د جزء په قیاسولو سره له قاتل څخه [د کل] نفي کولو په باره کي وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ مَعْذُورًا او علت جامعه د قاتل معذوره کېدل دي [چي خاطي قاتل دُ خپل خطاء په وجه معذوره دی] قُلْنَا: إِيجَابُ الْكُلِّ إِجْحَافٌ بِهِ موږ [په جواب کي] وایو: چي [پر قاتل] ټوله دیت واجبول د هغه سخت تاواني کول [او هلاکول] دي وَلَا كَذٰلِكَ إِيجَابُ الْجُزْءِ او د دیت څه حصه واجبول داسي نه دي [چي هغه سخت تاواني او دېوالي کړي] وَلَوْ كَانَ الْخَاطِئُ مَعْذُورًا او که خطا کونکی معذوره دی فَالْبَرِيءُ مِنْهُ أَوْلَى نو له خطا څخه بري کس [عاقله] خو په درجه اولیٰ [معذوره] دي قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ [الأنعام: ۱۶۴] الله تعالیٰ فرمایلي دي: او نه به باروي [نه اخلي] هیڅ یو ګنهګاره نفس ګناه د بل نفس.

**اللغات**: ﴿مؤاخذة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: نیول، ملامتول، سزا ورکول. ﴿إجحاف﴾: د دې باب څو معناوي دي: په تاوان ور رسولو کي سختي کول (زښت تاوان ور رسول). په داسي شي سره مکلف کول کوم چي د انسان په وس کي نه وي. ﴿لا تزر﴾ د ضرب له بابه د نفي صیغه ده: باروول. پر

ځان اخيستل، درونـد بـار پـر شـا وړل. ﴿وَازِرَةٌ﴾ لـه مخكينـي بـاب څخـه د مؤنـث فاعـل صـيغه ده: باروونكى. بار اخيستونكى. ﴿وِزر﴾ بار (بوج). ګناه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چي زموږ په نېز په ديت اداء كولو كي قاتل د عاقله وو سره شريک كيږي او د عاقلې د افرادو په څېر به هغه هم د كاله درې يا څلور درهمه اداء كوي؛ ځكه اصل مجرم او مباشر خو همدا قاتل دى. لهذا دا څنګه كېدلاى سي! چي مجرم پرېښوول سي او له غيرِ مجرم يعني له عاقله وو څخه ديت واخيستل سي. نو ځكه زموږ په نېز قاتل د عاقله وو سره شريک كيږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي قاتل به په ديت اداء كولو كي د عاقله وو سره نه شريكول كيږي؛ ځكه كله چي شريعت هغه د خپل خطا په وجه معذوره شمېرلى دى او له هغه څخه يې ټوله ديت ساقط كړى دى، نو د ديت د څه حصې په اداء كولو كي به هم معذوره شمېرل كيږي او د ديت لږ حصه به هم نه اداء كوي.

قلنا إلخ: صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل او تأويل جواب وركوي فرمايي چي شريعت له قاتل څخه ټوله ديت ځكه معاف كړى دى چي د ټوله ديت په اداء كولو سره هغه ته زښت تاوان لاحق نه سي او هغه بالكل ډېوالي نه سي، او څرنګه چي د څه ديت په اداء كولو هغه ته تاوان او حرج نه رسيږي؛ نو ځكه د څه ديت په اداء كولو كي به هغه معذوره نه شمېرل كيږي او په ديت اداء كولو كي به د عاقله وو سره شركت كوي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي خاطي قاتل معذوره دى، نو د هغه جواب دا دى چي كه دا قاتل معذوره دى نو عاقله خو له هغه څخه زيات معذوره دي (چي په دې قتل كي د هغو هيڅ لاس نسته). حال دا چي الله تعالىٰ فرمايلي دي ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾، او دا خلاف دي چي جرم يو وكړي او پوره سزا بل ته وركول سي. نو ځكه قتل به د عاقله وو سره په ديت اداء كولو كي شريكول كيږي.

## له اهل ديوان (اهل دفتر) څخه بچي او ښځي له ديت څخه مستثنىٰ دي

وَلَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ مِمَّنْ كَانَ لَهُ حَظٌّ فِي الدِّيوَانِ عَقْلٌ او پر هغه ښځو او بچيانو چي د هغوى لپاره په ديوان كي حصه [مقرره] وي ديت نسته لِقَوْلِ عُمَرَ رضي الله عنه: لَا يَعْقِلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ صَبِيٌّ وَلَا امْرَأَةٌ د حضرت عمر رضي الله عنه [د دې] فرمان په وجه: چي د عاقله وو سره به بچى او ښځه ديت نه اداء كوي وَلِأَنَّ الْعَقْلَ إِنَّمَا يَجِبُ عَلَى أَهْلِ النُّصْرَةِ لِتَرْكِهِمْ مُرَاقَبَتَهُ او ځكه چي ديت پر اهل نصرت واجبيږي. د

قاتل د نګرانۍ پرېښوولو په وجه وَالنَّاسُ لَا يَتَنَاصَرُوْنَ بِالصِّبْيَانِ وَالنِّسَاءِ او خلک په بچيانو او ښځو سره يو د بل مدد نه کوي وَلِهٰذَا لَا يُوْضَعُ عَلَيْهِمْ مَا هُوَ خَلَفٌ عَنِ النُّصْرَةِ وَهُوَ الْجِزْيَةُ په همدې وجه پر بچيانو او ښځو د نصرت خليفه [بدل] يعني جزيه نه مقررول کېږي.

**اللغات:** ﴿ذرية﴾ نسل، بچيان. ﴿حظ﴾ حصه. ﴿عقل﴾ ديت. ﴿لا يعقل﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صيغه ده: ديت اداء کول، ديت ورکول. ﴿صبي﴾ بچى. هغه کوچنى کوم چې د هلکوالي تر وخته رسېدلى نه وي. ﴿لا يتناصرون﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: يو د بل مدد کول، مرسته کول. ﴿خلف﴾ خليفه، قائم مقام.

**تشريح: صورت د مسئلې** دا دى چې پر هغه ښځو او بچيانو هم ديت نشته چې په ديوان (رېجسټر) کې د هغو نومونه درج وي او په ديوان کې يې حصه متعين وي (يا ديو ادارې په افرادو کې هغوى درج وي):

ځکه حضرت عمر رضي الله عنه دا فرمان جاري کړى وو چې "لا يعقل مع العاقلة صبى ولا امرأة" يعني په ديت اداء کولو کې به د عاقله وو سره بچى او ښځه نه شاملېږي.

په دې هکله دويم دليل دا دى چې ديت پر اهلِ نصرت د قاتل د حفاظت پرېښوولو په وجه واجبېږي، حال دا چې ښځې او بچيان له اهلِ نصرت څخه نه دي؛ ځکه قاعده دا ده چې هيڅ يو قوم هم له ښځو او بچيانو څخه د نصرت او مرستې طلب نه کوي، او د ديت تعلق د نصرت سره دى، نو ځکه کله چې هغوى له اهلِ نصرت څخه نه دي نو پر هغو به ديت هم نه واجبېږي. په همدې وجه شريعت ښځې او بچيان د ديت له قائم مقام يعني له جزيې څخه هم بري کړي دي.

## که ښځه يا بچى قاتل وي نو څه حکم دى؟

وَعَلٰى هٰذَا لَوْ كَانَ الْقَاتِلُ صَبِيًّا أَوِ امْرَأَةً او پر همدې بناء که قاتل بچى يا ښځه وي لَا شَيْءَ عَلَيْهِمَا مِنَ الدِّيَةِ نو پر دوى دواړو هيڅ ديت نشته بِخِلَافِ الرَّجُلِ په خلاف د سړي لِأَنَّ وُجُوْبَ جُزْءٍ مِنَ الدِّيَةِ عَلَى الْقَاتِلِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ أَحَدُ الْعَوَاقِلِ ځکه پر قاتل د ديت څه حصه واجبېدل په دې اعتبار سره دي چې قاتل له عاقله وو څخه يو فرد دى لِأَنَّهُ يَنْصُرُ نَفْسَهُ ځکه چې هغه د خپل ځان مدد کوي وَهٰذَا لَا يُوْجَدُ فِيْهِمَا او دا معنىٰ په بچي او ښځه کې نشته وَالْفَرْضُ لَهُمَا مِنَ الْعَطَاءِ لِلْمَعُوْنَةِ لَا لِلنُّصْرَةِ او د بچي او ښځې لپاره له عطيې څخه حصه مقرر کېدل د امداد لپاره وي، نه د نصرت لپاره

كَفَرْضِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ وَالسَّلَامُ وَرَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ لکه د نبي ﷺ د بیبیانو رضی الله عنهن مقرره حصه.

**اللغات:** ﴿عواقـل﴾ جمع د عَاقِلَـةٌ ده؛ قریبان، نږدې متعلقین (وضاحت یې مخکې تېر سو).

﴿المعونة﴾ د دې لفظ دوې معناوې نقل سوي دي: ① مدد او کومک. ② هغه څه چې په هغه سره د محتاج او غریب مدد کیږي، لکه په څه مال سره د فقیر مدد کول. ﴿فَرْض﴾ د دې لفظ له معناو څخه یوه معنیٰ دَه: حصه او برخه (مقرره او ټاکل سوې حصه) جمع: فرائض. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح:** دعبارت حاصل دا دی چې مخکې ښځه او بچی چې له دیت اداء کولو څخه مستثنیٰ سوي دي، دا استثناء عام ده یعني ښځه یا بچی برابره ده قاتل وي او که نه وي، په هر صورت کې دوی په دیت اداء کولو کې نه شاملیږي او دیت صرف د دوی په عاقله وو باندې واجبیږي، د دې په خلاف که یو سړی (بالغ کس) قاتل وي نو هغه دعاقله وو سره په دیت اداء کولو کې شاملیږي او د عاقله وو د یو فرد په څېر پر هغه هم د دیت څه حصه واجبیږي؛ ځکه هغه له اهلِ نصرت څخه دی او د عاقله وو سره د شاملېدلو په وجه به هغه د خپل ځان نصرت کونکی وي او دعاقله وو په حق کې به د تخفیف باعث وي، او په بچي او ښځه کې د نصرت دا ماده او منفعت مفقود دی، نو ځکه فقهاؤ دعاقلې له فهرس څخه دوی خارج کړي دي.

**والفرض لهما إلخ:** فرمايي د بچي او ښځي لپاره چې له بیت المال څخه کومه عطیه ورکول کیږي، هغه د اهلِ نصرت کېدلو پر بنیاد نه وي چې دوی نو له اهلِ نصرت څخه دي، بلکې هغه د دوی د معونت او امداد په وجه وي یعني امام (او سرکار) د دوی مدد کول غواړي؛ ځکه دوی په بعضې اُمورو کې په کار راتللای سي، لکه څرنګه چې د نبي کریم ﷺ بیبیانو ته کومه حصه ورکول کېده، هغه د نصرت پر بنیاد نه وه، بلکې بناء بر معونت وه.

**سوال:** مخکې دا مسئله ذکر سوه چې "قال المتأخرون أن المرأة تدخل مع العاقلة في التحمل في هذه المسئلة إلخ" او دلته ذکر سوي دي چې ښځه دعاقله وو سره په دیت اداء کولو کې نه داخلیږي. نو دا تعارض څنګه راغلی؟.

**جواب:** هغه مخکینی قول اصل روایت نه دی بلکې د بعضې متأخرینو قول دی او دا مذکوره قول اصل روایت او اصل مذهب دی.

## یو ښار والا د بل ښار والا دیت نه سي اداء کولای

وَلَا يَعْقِلُ أَهْلُ مِصْرٍ عَنْ مِصْرٍ آخَرَ او یو ښار والا به د بل ښار له طرفه دیت نه اداء کوي يُرِيْدُ بِهِ أَنَّهُ إِذَا كَانَ لِأَهْلِ كُلِّ مِصْرٍ دِيْوَانٌ عَلَى حِدَةٍ مراد په دې سره د مصنف رَحِمَهُ الله دا دی چي کله د هر ښار والا لپاره جلا دیوان وي لِأَنَّ التَّنَاصُرَ بِالدِّيْوَانِ عِنْدَ وُجُوْدِهِ ځکه د دیوان د موجود والي په وخت کي تناصر [یو د بل نصرت کول] د دیوان په ذریعه کیږي وَلَوْكَانَ بِاعْتِبَارِ الْقُرْبِ فِي السُّكْنٰى او که تناصر په استوګنه کي د نژدېکت په اعتبار سره وي فَأَهْلُ مِصْرِهِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِ مِصْرٍ آخَرَ نو د قاتل خپل ښار والا هغه ته له بل ښار والا څخه زيات نژدې دي.

**اللغات:** ﴿لا يعقل﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: دیت اداء کول (دیت ورکول). ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل مدد کول. ﴿سکنٰی﴾ استوګنه (اوسېدنه).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کوم دوه ښارونه یو بل ته نژدې وي، په هغوی کي د هر ښار اهل دیوان جلا وي (یا په بلمورینا دا چي په هر ښار کي د فوج او عسکرو دسته یا یو متعینه اداره د بل ښار له دستې او ادارې څخه جلا وي چي د هر یوه د افرادو نومونه او کوائف په علیحده دفتر [ریجسټر] کي درج وي)، نو بیا به یو ښار والا د بل ښار والا دیت نه اداء کوي، بلکي هر ښار والا به خپله دا کار سر ته رسوي؛ ځکه د دیوان (او ادارې) په موجودیت کي د تناصر او تعاون مدار پر همدې دیوان (او اداره) باندي وي، لهذا د دیوان په موجویت کي به د بل ښار والا د قاتل دیت نه اداء کوي.

او که چیري د تناصر مدار د استوګنیز نژدېکت پر بنیاد وي، نو د قاتل خپل ښار والا د بل ښار په مقابله کي هغه ته زيات نژدې دي او د بل ښار والا په مقابله کي د هغه د دیت اداء کولو زيات حقداره دي.

## که د کلي او د اطرافي علاقې خلک د دیت اداء کولو لپاره کافي نه وي نو څه حکم دی؟

وَيَعْقِلُ أَهْلُ كُلِّ مِصْرٍ مِنْ أَهْلِ سَوَادِهِمْ او هر ښار والا به د خپل اطرافو والا دیت اداء کوي لِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ لِأَهْلِ الْمِصْرِ ځکه چي هغوی [اطرافو والا] د ښار والا تابع دي فَإِنَّهُمْ إِذَا حَزَبَهُمْ أَمْرٌ اِسْتَنْصَرُوْا بِهِمْ ځکه کله چي هغو ته څه خبره پېښه سي نو له ښار والا وو څخه د مدد طلب کوي فَيَعْقِلُهُمْ أَهْلُ الْمِصْرِ بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الْقُرْبِ فِي النُّصْرَةِ نو ځکه همدا ښار والا به د هغو دیت اداء کوي. د نژدېکت او مدد د معنیٰ په اعتبار کولو سره.

**اللغات**: ﴿سَواد﴾ د ښار اطراف. د صحرا کلي (د صحرا سيمه او علاقه. صحرايي مېنه). ﴿حزبه﴾ د نصر د باب ماضي ده: رسېدل. پېښېدل. لاحق کېدل. ﴿استنصروا﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صيغه ده: د مدد او مرستې طلب کول. مدد غوښتل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په يو کلي او اطرافي سيمه (صحرايي علاقه) کې يو څوک خطاءً قتل سوی وي، خو هغه کلي او سيمې والا د ديت اداء کولو لپاره نا کافي وي، نو دا کلی او سيمه چې د کوم ښار تابع او ور سره مربوط وي، هغه ښار والا به ور سره يو ځای کول کيږي او ديت به اداء کوي؛ ځکه اطرافي کلي او سيمي والا د خپل ښار والا تابع وي او د ضرورت په وخت کې دوی يو له بل څخه د مدد او کومک طلب کوي، لهذا د قُرب او نصرت معنیٰ موجوده ده. نو ځکه همدا ښار والا به د هغو ديت اداء کوي.

## که د يو سړي استوګنځی په يوه ښار کې وي او اهل ديوان يې په بل ښار کې استوګن وي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ كَانَ مَنْزِلُهُ بِالْبَصْرَةِ وَدِيْوَانُهُ بِالْكُوْفَةِ او د کوم چا کور چې په بصره کې وي او ديوان يې په کوفه کې وي عَقَلَ عَنْهُ أَهْلُ الْكُوْفَةِ نو د هغه له طرفه به کوفې والا ديت اداء کوي لِأَنَّهُ يَسْتَنْصِرُ بِأَهْلِ دِيْوَانِهِ لَا بِجِيْرَانِهِ ځکه چې هغه له خپل اهلِ ديوان څخه د مدد طلب کوي، نه له خپلو همسايه ګانو څخه وَالْحَاصِلُ أَنَّ الْاِسْتِنْصَارَ بِالدِّيْوَانِ أَظْهَرُ خلاصه دا ده چې له ديوان [اهلِ ديوان] څخه د مدد طلب کول زيات ښکاره دي فَلَا يَظْهَرُ مَعَهُ حُكْمُ النُّصْرَةِ بِالْقَرَابَةِ وَالنَّسَبِ وَالْوَلَاءِ وَقُرْبِ السُّكْنٰى وَغَيْرِهِ نو ځکه د هغه [نصرة بالديوان] سره به د قرابتې او نسبي او د ولاء او استوګنيز قربت د نصرت حکم نه ښکاره کيږي وَبَعْدَ الدِّيْوَانِ النُّصْرَةُ بِالنَّسَبِ او له ديوان څخه وروسته د نسب نصرت دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ [مخکې] بيان کړی وَعَلٰى هٰذَا يَخْرُجُ كَثِيْرٌ مِنْ صُوَرِ مَسَائِلِ الْمَعَاقِلِ او پر همدې أصول د معاقلو د مسئلو ډېر صورتونه راوځي.

**اللغات**: ﴿منزل﴾ کور او تيکانه. ﴿ديوان﴾ هغه دفتر (ريجسټر) چې په هغه کې د فوج او عسکرو نومونه، پته او کوائف ليکل سوي وي. د اهلِ ديوان وضاحت مخکې وسو. په نن وخت کې د يوې اداري کارکونکو افرادو او هم پېشه خلکو ته هم اهلِ ديوان ويل کېدای سي.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي کـه یو څوک لـه اهـلِ دیـوان څخـه وي او هغـه مـثلاً د کنـدهار اوسېدونکی وي خو د هغه اهلِ دیوان (یا اهلِ اداره) په هلمند کي وي، نو د هغه له طرفه به دیت هلمند والا اداء کوي: ځکه کوم څوک چي له اهلِ دیوان (یا اهلِ اداره) څخه وي، نو هغه اول خپل اهلِ دیوان (او خپلي اداري والا) رانغکوي او تر ټولو مخکي له هغوی څخه مدد غواړي. نه له خپلو همسایه ګانو څخه.

ځکه دا چي د نصرت له مختلفو قسمونو څخه تر ټولو قوي نصرة بالديوان دی، نو د دغه نصرت په موجودیت کي بل نصرت لره اعتبار نشته او هغه ساقط دی، او تر نصرة بالديوان وروسته بيا د نصرة بالنسب نمبر دی. او دا داسي قاعدهٔ کُلیه ده چي ډېر مسائل پرې متفرع کیږي.

**که ښاري کس یو جنایت وکړي او نسبي قریبان يې په صحرا کي وي نو څه حکم دی؟**

وَمَنْ جَنٰى جِنَايَةً مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ او له ښار والا [ښاريانو] څخه چي څوک یو جرم وکړي وَلَيْسَ لَهُ فِي الدِّيْوَانِ عَطَاءٌ او په دیوان کي د هغه لپاره عطیه [مقرره] نه وي وَأَهْلُ الْبَادِيَةِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ او صحرا والا [د نسب په اعتبار سره] هغه ته زیات نژدې وي وَمَسْكَنُهُ الْمِصْرُ او د هغه استوګنځی ښار وي عَقَلَ عَنْهُ أَهْلُ الدِّيْوَانِ مِنْ ذٰلِكَ الْمِصْرِ نو د ده دیت به د هغه ښار اهلِ دیوان اداء کوي وَلَمْ يَشْتَرِطْ أَنْ يَكُوْنَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَهْلِ الدِّيْوَانِ قَرَابَةٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله دا شرط نه دی لګولی چي د ده او اهلِ دیوان تر مینځ به قرابت وي قِيْلَ: هُوَ صَحِيْحٌ ویل سوي دي: چي همدا صحیح ده لِأَنَّ الَّذِيْنَ يَذُبُّوْنَ عَنْ أَهْلِ الْمِصْرِ وَيَقُوْمُوْنَ بِنُصْرَتِهِمْ وَيَدْفَعُوْنَ عَنْهُمْ ځکه کوم خلک چي له ښار والا څخه [خلل وغیره] منع کوي او د هغوی نصرت کوي او له هغو څخه دفاع کوي أَهْلُ الدِّيْوَانِ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ هغه خلک د ښار اهلِ دیوان وي وَلَا يَخُصُّوْنَ بِهِ أَهْلَ الْعَطَاءِ او په دې [دفاع] سره یوازي اهلِ عطاء خاص نه دي [له اهلِ عطاء څخه مراد اهلِ دیوان وغیرهم دي چي د دولت له طرفه عطیه ورکول کیږي) د دې آخري جملې مطلب دا دی چي اهلِ دیوان یوازي د خپلو ځانو او نورو دولتي عُمالو دفاع او نصرت نه کوي بلکي د ښار د ټوله اوسېدونکو دفاع او نصرت کوي].

**اللغات**: ﴿جنٰی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جرم کول. ﴿جناية﴾ جرم. ﴿بادية﴾ صحرا، خالي ډګر چي اوبه وغیره پکښې وي او ودانۍ پکښې نه وي. ﴿يذبّون﴾ د نصر له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده: منع کول، دفع کول او لیري کول. ﴿اهل العطاء﴾ هغه فوج (عسکر) او هغه دولتي

عمال چي د دولت (سرکار) له طرفه په کال کي د هغو لپاره عطیه مقرره وي یعني د حکومت له طرفه هر کال اضافي مال ورکول کیږي.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که یو جرم کونکی (جنایتکاره) په ښار کي اوسیږي او د هغه نسبي قریبان په صحرا (د ښار په اطرافو) کي استوګن وي، نو په کوم ښار کي چي دئ اوسیږي، د هغه ښار اهل دیوان به د ده دیت اداء کوي. برابره ده د مجرم او د اهل دیوان تر مینځ څه قرابت وي او که نه وي. بعضي حضراتو همدا قول صحیح ګرځولی دی: ځکه د ښاریانو نصرت او حمایت کول او له هغو څخه یو مصیبت او ستونزه دفع کول د اهل دیوان کار دی. یعني اهل دیوان یوازي د خپلو ځانو او اهل عطاء د نصرت ذمه واره نه دي بلکي د ټوله ښار د اوسېدونکو خلکو د حفاظت او نصرت ذمه واره دي. نو ځکه همدا اهل دیوان به د دې مجرم اهل نصرت او عاقله وي او همدوی به یې دیت اداء کوي.

د مذکوره مسئلې په هکله بل قول به په را روان عبارت کي ذکر سي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| وَقِيلَ: تَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ قَرِيبًا لَهُمْ او ويل سوي دي: د دې تأويل دا دی چي کله مجرم د هغو [اهل دیوان] قریب وي وَفِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ او په قدوري [متن] کي همدې طرف ته اشاره ده حَيْثُ قَالَ: وَأَهْلُ الْبَادِيَةِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِ مِصْرٍ په دې حیثیت سره چي هغه فرمایلي دي: او صحرا والا [د نسب په اعتبار سره] هغه مجرم ته له ښار والا څخه زیات نژدې وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَيْهِمْ بِحُكْمِ الْقَرَابَةِ او دا ځکه چي پر هغو [د دیت] وجوب د قرابت په حکم سره دی وَأَهْلُ الْمِصْرِ أَقْرَبُ مِنْهُمْ مَكَانًا او د ځای په اعتبار سره ښار والا [هغه مجرم ته] له صحرا والا څخه زیات نژدې دي فَكَانَتِ الْقُدْرَةُ عَلَى النُّصْرَةِ لَهُمْ نو [د مجرم] پر نصرت به قدرت همدې ښار والا لره وي وَصَارَ نَظِيرَ مَسْأَلَةِ الْغَيْبَةِ الْمُنْقَطِعَةِ او دا د غیبت منقطعه د مسئلې نظیر سو. |

**اللغات** : ﴿غيبة﴾ غائب والی (غائب کېدل). غيبة منقطعة: په داسي توګه غائبېدل (ورکېدل) چي د مرګ او ژوند خبر یې چا ته نه وي. ﴿نظير﴾ مثل. مثال. مشابه.

**تشريح** : مخکي چي کوم دا مسئله تېره سوه چي د مذکوره مجرم (جنایتکاره) له طرفه به د ښار اهل دیوان دیت اداء کوي که څه هم هغوی د مجرم قریبان نه وي. د هغه په هکله بل قول او تأويل دا دی چي د ښار اهل دیوان به هغه وخت د مذکوره مجرم دیت اداء کوي کله چي هغوی د مجرم قریبان او خپلوان وي که څه هم لیري قریبان یې وي او د صحرا والا د هغه نژدې قریبان وي. ځکه پر ښار والا د دیت

وجوب د قرابت په وجه وي او دلته مجرم که څه هم د قرابت نسبي په اعتبار سره صحرا والا قريبانو ته زيات نژدې دي، لېکن د قرابت مکاني او قرابت مصالحي په اعتبار سره بيا ښار والا قريبانو ته زيات نژدې دی او د هغه ښار والا قريبان د صحرا والا په نسبت د هغه پر نصرت او حمايت زيات قادر دي. نو ځکه همدا ښار والا به د هغه ديت اداء کوي.

وصار نظیرالخ: صاحب د هدايې فرمايي چې مذکوره مسئله د غيبت منقطعه والا د مسئلې مثال ده يعني که ديوې کوچنۍ انجلۍ دوه وليان وي، يو اقرب وي او بل ابعد (يعني يو ولي د هغې نژدې ولي او قريب وي او بل د هغې لېرې ولي وي)، خو اقرب ولي د غيبت منقطعه په توګه غائب وي يعني داسې غائب وي چې هيڅ پته او د ژوند او مرګ هيڅ درک يې نه وي، نو په دې صورت کې د قربت مقام او د قربت مصلحت پر بنياد همدې ابعد ولي ته د هغې د نکاح کولو او داسې نورو ولايت او اختيار حاصلېږي، نو همداسې په مذکوره مسئله کې به همدا ښار والا اهل ديوان د قرابت مکاني پر بنياد د مجرم ديت اداء کوي.

**که د صحرا (اطرافو) اوسېدونکی په ښار کې يو جنايت وکړي نو د ديت څه حکم دی؟**

وَلَوْ كَانَ الْبَدَوِيُّ نَازِلًا فِي الْمِصْرِ لَا مَسْكَنَ لَهُ فِيهِ او که صحرا والا [اطرافي] ښار ته راغلی وي [او] په ښار کې د هغه استوګنځی نه وي لَا يَعْقِلُهُ أَهْلُ الْمِصْرِ نو ښار والا به د هغه ديت نه اداء کوي لِأَنَّ أَهْلَ الْعَطَاءِ لَا يَنْصُرُونَ مَنْ لَا مَسْكَنَ لَهُ فِيهِ ځکه اهل عطاء [اهل ديوان] د هغه چا مدد نه کوي چې په ښار کې يې استوګنځی نه وي كَمَا أَنَّ أَهْلَ الْبَادِيَةِ لَا تَعْقِلُ عَنْ أَهْلِ الْمِصْرِ النَّازِلِ فِيهِمْ لکه څرنګه چې صحرا والا د هغه ښار والا ديت نه اداء کوي کوم چې هغو ته راغلی وي لِأَنَّهُ لَا يَسْتَنْصِرُ بِهِمْ ځکه هغه ښار والا له صحرا والا څخه د مدد طلب نه کوي.

**اللغات:** ﴿بدوی﴾ د صحرا اوسېدونکی، سارايي، اطرافي. ﴿نازل﴾ د ضرب د باب فاعل دی: راشوه کېدونکی، راتلونکی. ﴿يستنصر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: د مدد او کومک طلب کول. مرسته غوښتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که د صحرا او د اطرافو اوسېدونکی کس ښار ته راسې او هلته يو جنايت وکړي، حال دا چې په ښار کې د هغه کور او استوګنځی نه وي، نو ښار والا به د هغه ديت نه اداء کوي؛ ځکه اهل عطاء د هغه خلکو نصرت او مرسته کوي کوم چې په ښار کې استوګنه اختيار کړې وي او د عامو مسافرانو مرسته نه کوي. نو ځکه ښار والا به د مذکوره کس ديت نه اداء

کوي. لکه کله چې یو د ښار اوسېدونکی کس صحرا (د ښار اطرافو) ته ولاړ سي او هلته یو جنایت وکړي. نو صحرا والا د هغه دیت نه اداء کوي؛ ځکه هغه کس د صحرا اوسېدونکی نه دی او نه له صحرا والا شخصه د مرستي طلبګار دی. همدغسي ښار ته تلونکی کس او مسافر هم د ښار اوسېدونکی نه وي. نو ځکه ښار والا به د هغه دیت نه اداء کوي.

## د ذمیانو د دیت مسئله

وَإِنْ كَانَ لِأَهْلِ الذِّمَّةِ عَوَاقِلُ مَعْرُوفَةٌ يَتَعَاقَلُونَ بِهَا او که د ذمیانو لپاره پېژندل سوي [معلوم] عواقل وي کوم چې دیت پر ځان اخلي [یو د بل دیت اداء کوي] فَقَتَلَ أَحَدُهُمْ قَتِيلًا بیا له دوی شخه یو ذمي یو څوک قتل کړي فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْلِمِ نو د مسلمان په څېر د هغه دیت [هم] د هغه پر عاقله وو دی لِأَنَّهُمُ الْتَزَمُوا أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ فِي الْمُعَامَلَاتِ ځکه ذمیانو په معاملاتو کي اسلامي احکام پر ځان لازم کړي دي لَا سِيَّمَا فِي الْمَعَانِي الْعَاصِمَةِ عَنِ الْإِضْرَارِ په ځانګړې توګه په هغه مطالبو کي کوم چې له ضرر رسولو شخه بچ کونکي وي وَمَعْنَى التَّنَاصُرِ مَوْجُودٌ فِي حَقِّهِمْ او معنیٰ د تناصر د دوی [ذمیانو] په حق کي موجوده ده.

**اللغات:** ﴿عواقل﴾ جمع د عَاقِلَةٌ ده: قریبان، او نژدې متعلقین (اهل دیوان وغیره). ﴿یتعاقلون﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر غائب صیغه ده: دیت پر ځان اخیستل، د دیت په اداء کولو کي شرکت کول. ﴿التزاموا﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: پر ځان لازمول. ﴿عاصمة﴾ د ضرب له بابه د مؤنث فاعل صیغه ده: بچ کونکی، ساتونکی، حفاظت کونکی. ﴿إضرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضرر (نقصان) رسول. ﴿تناصُر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل مدد (کومک) کول.

**تشریح:** مخکي ذکر سوه چې د ذمیانو په خپل مینځ کي یو د بل د دیت اداء کولو (تحمل) رواج نسته. لېکن که په دوی کي دا رواج او عادت وي او د ذمي لپاره معلومه عاقله موجوده وي کوم چې د دیت بار پر ځانو اخلي، نو په دې صورت کي که له ذمیانو شخه یو کس بل څوک خطاءً قتل کړي، نو د هغه ذمي پر عاقله وو دیت واجبیږي، لکه مسلمان کس که قتل وکړي، نو د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي: ځکه ذمیانو زموږ سره په معاملاتو کي د اسلامي احکامو التزام کړی دی او خصوصاً هغه معاملات کوم چې له ضرر شخه د بچ کولو لپاره وي لکه حدِ سرقه، حدِ قذف، قصاص او دیت وغیره.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُمْ عَاقِلَةٌ مَعْرُوفَةٌ او که د ذمیانو لپاره پېژندل سوې [معلومه] عاقله نه وي فَالدِّيَةُ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ مِنْ يَوْمِ يُقْضَى بِهَا عَلَيْهِ نو دیت د ذمي په خپل مال کي [واجب] دی په دریو کالو کي له هغه ورځي شخه چي پر ذمي د دیت فیصله سوې وي كَمَا فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ لکه څرنګه چي د مسلمان په حق کي دي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْوُجُوبَ عَلَى الْقَاتِلِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی چي [د دیت] وجوب پر قاتل دی وَإِنَّمَا يَتَحَوَّلُ عَنْهُ إِلَى الْعَاقِلَةِ أَنْ لَوْ وُجِدَتْ او له قاتل څخه بیا دا وجوب د عاقله وو طرف ته منتقل کېږي که چیري عاقله موجوده وي فَإِذَا لَمْ تُوجَدْ لیکن کله چي عاقله موجوده نه وي بَقِيَتْ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ نو دیت پر قاتل باقي پاتیږي د هغه په خپل مال کي بِمَنْزِلَةِ تَاجِرَيْنِ مُسْلِمَيْنِ فِي دَارِ الْحَرْبِ قَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ لکه دوه مسلمان تاجران کوم چي په دار الحرب کي له دوی څخه یو خپل ملګری [مسلمان تاجر] قتل کړي يُقْضَى بِالدِّيَةِ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ نو د دیت فیصله پر قاتل د هغه په خپل مال کي کول کیږي لِأَنَّ أَهْلَ دَارِ الْإِسْلَامِ لَا يَعْقِلُونَ عَنْهُ څکه دارُ الاسلام والا د هغه له طرفه دیت نه اداء کوي وَتَمَكُّنُهُ مِنْ هٰذَا الْقَتْلِ لَيْسَ بِنُصْرَتِهِمْ او د قاتل پر دې قتل قادر کېدل د هغو [دار الاسلام والا] د نصرت په وجه نه دی.

**اللغات:** ﴿يتحوّل﴾ د تفعل د باب مضارع ده: له یوه حال څخه بل حال ته نقل کېدل (منتقل کېدل). اوښتل. ﴿تمكّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قادر کېدل. قدرت لرل.

**تشریح:** په تېر عبارت کي ذکر سوه چي که د ذمي لپاره عاقله وي نو د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي. خو که هغه هیڅ عاقله نه لري. نو بیا خپله د قاتل ذمي په مال کي دیت واجبیږي چي هغه به په دریو کي کالو کي په حصه. حصه سره څني اخیستل کیږي. او دري کاله له هغه وخت څخه شمېرل کیږي کله چي قاضي د دیت واجبېدلو فیصله وکړي: څکه اصل وجوب پر قاتل وي (یعني اصلا دیت اول پر خودي قاتل واجبیږي) بیا که عاقله موجود وي نو دیت هغوی ته منتقل کیږي او که عاقله موجود نه وي نو دا وجوب پر قاتل باقي پاتیږي. لکه دوه مسلمانان چي د تجارت په غرض دار الحرب ته ، لاړ سي. بیا یو مسلمان هغه بل مسلمان قتل کړي. نو د قاتل مسلمان په مال کي دیت واجبیږي. نه د هغه پر عاقله وو. نو همداسي دلته به هم د قاتل ذمي په مال کي دیت واجبیږي.

## کافر او مسلمان یو د بل له طرفه دیت نه سي اداء کولای او کفار یې په خپل مینځ کي اداء کولای سي

وَلَا يَعْقِلُ كَافِرٌ عَنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمٌ عَنْ كَافِرٍ او دیت به نه اداء کوي یو کافر د مسلمان له طرفه او نه یو مسلمان د کافر له طرفه لِعَدَمِ التَّنَاصُرِ د تناصر د نشتوالي په وجه [چي دوی یو د بل مدد نه کوي] وَالْكُفَّارُ يَتَعَاقَلُوْنَ فِيْمَا بَيْنَهُمْ او کفار په خپل مینځ کي یو د بل دیت اداء کوي وَإِنِ اخْتَلَفَتْ مِلَلُهُمْ که څه هم د دوی ملتونه سره مختلف وي لِأَنَّ الْكُفْرَ كُلَّهُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ ځکه ټول کفر یو ملت دی قَالُوْا: هٰذَا إِذَا لَمْ تَكُنِ الْمُعَادَاةُ فِيْمَا بَيْنَهُمْ ظَاهِرَةً مشایخ رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چي دا حکم هغه وخت دی کله چي د کفارو په مینځ کي دښمني ښکاره نه وي أَمَّا إِذَا كَانَتْ ظَاهِرَةً لیکن [د کفارو په مینځ کي] دښمني ښکاره وي كَالْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى لکه یهود او نصاریٰ يَنْبَغِيْ أَنْ لَا يَتَعَاقَلُوْنَ بَعْضُهُمْ عَنْ بَعْضٍ نو پکار دا ده چي له دوی څخه بعضي د بعضو دیت اداء نه کړي وَهٰكَذَا عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ او همداسي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوي دي لِانْقِطَاعِ التَّنَاصُرِ د تناصر د منقطع کېدلو په وجه [چي ښکاره دښمني لرونکي کفار یو د بل مدد نه کوي].

**اللغات**: ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: په خپل مینځ کي یو د بل مدد کول. ﴿یتعاقلون﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر غائب صیغه ده: دیت پر ځان اخیستل، د دیت په اداء کولو کي شرکت کول. ﴿مِلَل﴾ جمع د مِلَّةٌ ده: ملت، دین، مذهب. ﴿معاداة﴾ د مفاعلې له بابه اسمِ مصدر دی: دښمني، د یوه دښمن سره د بل دښمن جنګ. ﴿ینبغي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: پکار ده. مناسب ده.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د بل چا له طرفه د دیت اداء کولو (یعني د عاقله کېدلو) مدار پر تناصر دی او څرنګه چي د مسلمان او کافر تر مینځ تناصر جاري نه دی، نو ځکه نه به کافر د مسلمان دیت ورکوي او نه به مسلمان د یو لعین کافر دیت ورکوي. او پاته سوه د کفارو مسئله نو هغوی به په خپل مینځ کي یو د بل دیت اداء کوي په دې شرط چي د دوی په مینځ کي ښکاره دښمني او جنګونه نه وي. که څه هم د دوی دین او ملت یو له بل څخه جلا وي؛ ځکه کفر د ملتونو د اختلاف باوجود په خپل مینځ کي ملت واحده دی. نو ځکه یو کافر به د بل قاتل کافر دیت اداء کوي.

او که د هغه کفارو په مینځ کي ښکاره دښمني وي لکه یهود او نصاریٰ چي د هغوی په مینځ کي به هر وخت دښمني او جګړه جاري وه؛ نو ښکاره ده چي په دې صورت کي د کفارو تر مینځ تناصر منقطع

کېږي کوم چې د عاقله کېدلو مدار دی. نو ځکه په دې صورت کې به دوی يو د بل دیت نهٔ اداء کوي.

همدا حکم له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی او مشايخ حضرت هم د دې قائل دي.

## د دیت له فيصلې څخه مخکې که د چا اهلِ ديوان بل ښار ته منتقل سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْكَانَ الْقَاتِلُ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ او که چيرې قاتل له کوفې والا څخه وي وَلَهُ بِهَا عَطَاءٌ او په کوفه کې د هغه لپاره عطيه [مقرره] وي فَحُوِّلَ دِيْوَانُهُ إِلَى الْبَصْرَةِ بيا د هغه ديوان بصرې ته منتقل کړی سي ثُمَّ رُفِعَ إِلَى الْقَاضِي بيا [تر دې وروسته] د قتل مسئله قاضي ته پېش کړل سي فَإِنَّهُ يَقْضِي بِالدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ نو قاضي به د ديت فيصله د هغه د بصرې والا پر عاقله وو کوي وَقَالَ زُفَرُ: يَقْضِي عَلَى عَاقِلَتِهِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د ديت فيصله به د هغه د کوفې والا پر عاقله وو کوي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی لِأَنَّ الْمُوْجِبَ هُوَ الْجِنَايَةُ ځکه [د ديت] واجبونکی شی هغه جرم دی وَقَدْ تَحَقَّقَ وَعَاقِلَتُهُ أَهْلُ الْكُوفَةِ او جرم [دلته] په داسې حال کې متحقق سوی دی چې د مجرم عاقله کوفې والا دي وَصَارَ كَمَا إِذَا حُوِّلَ بَعْدَ الْقَضَاءِ او دا داسې سوه لکه د قاضي تر فيصلې وروسته چې ديوان منتقل سوی وي.

**اللغات:** ﴿حُوِّلَ﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده، حَوَّلَ يُحَوِّلُ تَحْوِيْلًا: اړول، نقلول (منتقل کول)، بدلول. ﴿رُفِعَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده، د دې باب څو معناوې دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدلېږي: پورته کول، د قاضي په محکمه کې يو مسئله او قضيه پېش کول، رسول. ﴿مُوجِب﴾ د افعال د باب فاعل دی: واجبونکی، سبب. ﴿تحقق﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: موجودېدل، ثابتېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيرې قاتل په کوفه کې استوګن وي او د کوفې له اهلِ ديوان څخه وي چې د هغه لپاره د دولت له طرفه عطيه مقرره وي (يا مثلاً هغه په کوفه کې استوګن او د کوفې په يو اداره کې کارکونکی وي). بيا تر اوسه قاضي ته د هغه مسئله پېش کړل سوې نه وي يا په بله وينا قاضي تر اوسه پر هغه د ديت واجبېدلو فيصله کړې نه وي چې د هغه ديوان (يا اداره) له کوفې څخه بصرې ته منتقل کړی سي، تر دې وروسته قاضي ته د هغه مسئله پېش کړل سي، نو په دې صورت کې به

قاضي د هغه پر اهلِ ديوان د ديت فيصله کوي خو سوال دا دی چي دا فيصله به د کوفې پر اهلِ ديوان کوي او که د بصرې پر اهلِ ديوان، نو زموږ مسلک دا دی چي قاضي به د هغه د بصرې پر اهلِ ديوان د ديت فيصله کوي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله او په يوه روايت کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي قاضي به د کوفې پر اهلِ ديوان د ديت فيصله کوي.

د دې حضراتو دليل دا دی چي ديت د جرم او جنايت په وجه واجبيږي او دلته چي کله له قاتل څخه دا جنايت صادر سوی دی. په هغه وخت کي د ده نوم د کوفې په ديوان کي وو، لهذا د همدې کوفې پر اهلِ ديوان به ديت واجبيږي: ځکه که چيري مخکي قاضي د کوفې پر اهلِ ديوان د ديت فيصله کړې وای او بيا د قاضي تر فيصلې وروسته دېوان بصرې منتقل کړی سوي وای. نو په دې صورت کي بالاتفاق د کوفې پر اهلِ ديوان ديت واجبېدی، لهذا په مذکوره صورت کي هم داسي کېدل پکار دي.

## زموږ دليل

وَلَنَا: أَنَّ الْمَالَ إِنَّمَا يَجِبُ عِنْدَ الْقَضَاءِ او زموږ دليل دا دی: چي مال د قاضي د فيصلې په وخت کي واجبيږي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْمِثْلُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی چي واجب [اصلي] مثل دی وَبِالْقَضَاءِ يَنْتَقِلُ إِلَى الْمَالِ او د قاضي په فيصله سره هغه د مال وطرف ته منتقل کيږي وَكَذَا الْوُجُوبُ عَلَى الْقَاتِلِ او همدارنګه وجوب [اصل] پر قاتل دی وَتَتَحَمَّلُ عَنْهُ عَاقِلَتُهُ او [بيا] د قاتل له طرفه د ده عاقله هغه [وجوبِ ديت] پر ځان اخلي وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او کله چي خبره داسي ده يَتَحَمَّلُ عَنْهُ مَنْ يَكُوْنُ عَاقِلَتَهُ عِنْدَ الْقَضَاءِ نو د قاتل له طرفه به همغه کسان ديت پر ځان اخلي کوم چي د قاضي د فيصلې په وخت کي د هغه عاقله وي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَضَاءِ په خلاف د قاضي تر فيصلې وروسته لِأَنَّ الْوَاجِبَ قَدْ تَقَرَّرَ بِالْقَضَاءِ ځکه واجب [ديت] د قاضي په فيصله سره ثابت سوی دی فَلَا يَنْتَقِلُ بَعْدَ ذٰلِكَ لهذا تر دې وروسته به هغه [واجب] نه منتقل کيږي لٰكِنَّ حِصَّةَ الْقَاتِلِ تُؤْخَذُ مِنْ عَطَائِهِ بِالْبَصْرَةِ لېکن د قاتل حصه به د هغه د بصرې والا له عطيې څخه اخيستل کيږي لِأَنَّهَا تُؤْخَذُ مِنَ الْعَطَاءِ ځکه چي ديت له عطيې څخه اخيستل کيږي وَعَطَاؤُهُ بِالْبَصْرَةِ او [اوس] د هغه عطيه په بصره کي [مقرره] ده.

**اللغات:** ﴿تتحمّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: پورته کول. پر ځان اخیستل. زغمل. ﴿تقرّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ثابتېدل. مضبوطېدل.

**تشریح:** زموږ مسلک مخکي ذکر سو چي په مذکوره مسئله کي د بصرې پر عاقله وو (اهلِ دیوان) باندي دیت واجبیږي او قاضي به پر هغو د دیت فیصله کوي. زموږ د دلیل حاصل دا دی چي په قتلِ خطاء کي چي پر قاتل کوم مال (دیت) واجبیږي. هغه د قاضي د فیصلې په وخت کي واجبیږي. یعني تر څو چي قاضي د قاتل پر عاقله وو د دیت فیصله صادره کړې نه وي. تر هغه وخته پوري دا مال (دیت) نه واجبیږي او بیا دا مال اصل پر قاتل واجبیږي او د قاضي تر فیصلې وروسته د هغه اداء کول پر عاقله وو لازمیږي. لهذا په دیت کي اصل رول او کردار د قاضي فیصلې لره وي نو د قاضي د فیصلې په وخت کي که د قاتل عاقله (اهلِ دیوان) د کوفې وي نو پر هغو به دیت واجبیږي او که د بصرې وي نو پر بصرې والا به دیت واجبیږي او څرنګه چي په مذکوره مسئله کي د قاضي تر فیصلې مخکي د قاتل نوم له کوفې څخه منتقل سوی او د بصرې په دیوان (ریجسټر) کي درج سوی دی او اوس د بصرې والا د هغه عاقله ګرځېدلي دي. نو ځکه اوس به همدا د بصرې والا اهلِ دیوان د هغه دیت اداء کوي.

بخلاف ما بعد القضاء إلخ: او پر کومه مسئله چي امام زفر رَحِمَهُ الله وغیره قیاس کړی دی یعني که مخکي قاضي د کوفې پر اهلِ دیوان د دیت فیصله وکړي بیا د هغه تر فیصلې وروسته د قاتل دیوان له کوفې څخه بصرې ته منتقل کړی سي. نو ښکاره ده چي په دې صورت کي مال (دیت) د قاضي په فیصله سره پر کوفې والا واجب سوی دی. لهذا دا وجوب به اوس له دوی څخه نه لیري کول کیږي: ځکه دې فعل ته نقل وایي او نقل ناجائز دی ځکه چي په نقل سره د قاضي اوله فیصله ماتیږي. نو ځکه اوس به حتماً همدا کوفې والا اهلِ دیوان د هغه دیت اداء کوي.

لکن حصة القاتل إلخ: خو په مذکوره مسئله کي چي له قاتل څخه په دیت کي کومه حصه اخیستل کیږي. دا به له هغه عطیې څخه اخیستل کیږي کوم چي په بصره کي ورکول کیږي. ځکه دیت له را روانو عطیاتو څخه اخیستل کیږي. او اوس هغه ته په بصره کي عطیه ورکول کیږي. نو ځکه د بصرې له عطیې څخه به د هغه حصه اخیستل کیږي.

## د قاضي تر فيصلې وروسته که عاقله دومره کم وي چې د ديت اداء کولو لپاره نا کافي وي نو څه حکم دی؟

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَلَّتِ الْعَاقِلَةُ بَعْدَ الْقَضَاءِ عَلَيْهِمْ په خلاف د هغه صورت کله چې پر عاقله وو [د ديت] تر فيصلې وروسته عاقله کم سي حَيْثُ يُضَمُّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ فِي النَّسَبِ نو د هغه عاقله وو سره به ضمول کيږي [يوځای کيږي] تر ټولو نژدې قبيله په نسب کې لِأَنَّ فِي النَّقْلِ إِبْطَالَ حُكْمِ الْأَوَّلِ ځکه په نقل کې د اول حکم [فيصلې] باطلول سته فَلَا يَجُوزُ بِحَالٍ نو ځکه هغه په هيڅ حال کې جائز نه دی وَفِي الضَّمِّ تَكْثِيرُ الْمُتَحَمِّلِينَ لِمَا قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِمْ او په ضمولو کې د بار اخيستونکو[ديت اداء کونکو] ډېرول سته د هغه شي په هکله چې پر دوی د هغه فيصله سوې ده [يعني ديت] فَكَانَ فِيهِ تَقْرِيرُ الْحُكْمِ الْأَوَّلِ لَا إِبْطَالُهُ نو په دې [ضم] کې د اول حکم ثابتول سته. نه د هغه باطلول وَعَلَى هٰذَا لَوْ كَانَ الْقَاتِلُ مَسْكَنُهُ بِالْكُوفَةِ وَلَيْسَ لَهُ عَطَاءٌ او پر همدغه اصل [دا مسئله متفرع ده چې] که د قاتل استوګنځی په کوفه کې وي او د هغه لپاره عطيه [مقرره] نه وي فَلَمْ يُقْضَ عَلَيْهِ حَتَّى اسْتَوْطَنَ الْبَصْرَةَ بيا پر هغه [تر اوسه] د ديت فيصله نه وي سوې چې هغه بصره خپل وطن وګرځوي قُضِيَ بِالدِّيَةِ عَلَى أَهْلِ الْبَصْرَةِ نو د ديت فيصله به پر بصرې والا کول کيږي وَلَوْ كَانَ قُضِيَ بِهَا عَلَى أَهْلِ الْكُوفَةِ او که د ديت فيصله پر کوفې والا سوې وي لَمْ يَنْتَقِلْ عَنْهُمْ نو [د ديت وجوب] له هغو څخه [بصرې والا] نه منتقل کيږي.

**اللغات:** ﴿يُضَم﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: يو څه د بل څه سره يو ځای کول، ضمول.

﴿متحمّلين﴾ د تفعّل له بابه د جمع فاعل صيغۀ ده: پورته کونکي، پر ځان اخيستونکي.

﴿استوطن﴾ د استفعال د باب ماضي ده: (يوځای) خپل وطن ګرځول، وطن جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله قاضي پر عاقله وو د ديت فيصله وکړي، تر دې وروسته د عاقله وو شمېر کم سي. نو په دې صورت کې به د هغو سره د قاتل نژدې قريبان يوځای کول کيږي کوم چې په نسب کې تر ټولو ورته نژدې وي، او اوس دا فعل نقل نه دی (لکه په مخکيني صورت کې چې د قاضي تر فيصلې وروسته له کوفې والا څخه د ديت وجوب ليري کول نقل دی). بلکې دا فعل ضم دی او نقل که ناجائز دی لېکن ضم جائز دی، ځکه په نقل سره اول حکم او فيصله باطليږي نو ځکه بالکل جائز نه

دی. حال دا چي په ضمّ سره اول حکم نور ثابتیږي، ځکه په ضم سره د دیت اداء کونکو شمېر نور زیاتیږي، نو ځکه ضمّ جائز او صحیح دی.

وعلىٰ هٰذا إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله مذکوره خبره د یو مثال په ذریعه واضحه کوي فرمایي چي مثلاً که یو څوک خطاءً قتل کونکی وي او هغه د کوفې اوسېدونکی وي لېکن په کوفه کي د هغه لپاره عطیه مقرره نه وي (یعني له اهلِ دیوان څخه نه وي) او قاضي تر اوسه د هغه د قتل په هکله پر هغه هیڅ فیصله نه وي کړي چي هغه بصرې ته منتقل سي او بصره خپل وطن وګرځوي، نو اوس به د هغه دیت بصرې والا اداء کوي؛ ځکه اوس هم‌دا بصرې والا د هغه عاقله دي. ها! که چیري مخکي قاضي پر کوفې والا د دیت فیصلې کړې وي او تر دې وروسته هغه بصره خپل وطن وګرځوي، نو بیا به کوفې والا د هغه دیت اداء کوي، نه بصرې والا؛ ځکه اوس که بصرې والا د هغه عاقله وګرځول سي او په دیت اداء کولو مکلف کړل سي نو نقل لازمیږي (یا په بله وینا دا چي اول حکم او فیصله باطلیږي) او نقل جائز نه دی.

## که د صحرا اوسېدونکی (اطرافي) قاتل د قاضي تر فیصلې مخکي په اهل دیوان کي درج سي نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَكَذَا الْبَدْوِيُّ إِذَا أُلْحِقَ بِالدِّيْوَانِ بَعْدَ الْقَتْلِ قَبْلَ الْقَضَاءِ او همدارنګه صحرا والا [اطرافي کس] کله چي هغه تر قتل وروسته د قاضي تر فیصلې مخکي د دیوان سره ملحق کړی سي يُقْضٰى بِالدِّيَةِ عَلٰى أَهْلِ الدِّيْوَانِ نو د دیت فیصله به پر دیوان والا کیږي وَبَعْدَ الْقَضَاءِ عَلٰى عَاقِلَتِهِ بِالْبَادِيَةِ لَا يَتَحَوَّلُ عَنْهُمْ او د هغه د صحرا پر عاقله وو تر فیصلې کولو وروسته [د دیت وجوب] له هغو [صحرا والا] څخه منتقل کیږي. |

**اللغات:** ﴿بدوي﴾ د صحرا اوسېدونکی، سارایي، اطرافي. ﴿أُلحِقَ﴾ د افعال له بابه ماضي مجهول ده: لاحقول، ور سره یو ځای کول، شاملول.

**تشریح:** دا مسئله هم د مخکنی مسئلو په څېر ده. حاصل یې دا دی چي که یو بدوي کس (کوم چي په صحرا یعني د ښار په اطرافو کي استوګن وي) خطاءً یو څوک قتل کړي او بیا د قاضي له طرفه پر هغه د دیت له فیصلې څخه مخکي هغه له اهلِ دیوان څخه وګرځول سي یا په بله وینا د هغه نوم د ښار د عسکرو او دولتي عُمّالو (یا دیو اداری) په دیوان (ریجسټر) کي درج کړی سي، نو په دې صورت کي همدا اهلِ دیوان د هغه عاقله کیږي او پر همدوی به د دیت فیصله کول کیږي. لېکن که د قاضي تر

فيصلې وروسته د هغه نوم په ديوان (يا اداره) كي درج كړى سي. نو بيا اهلِ باديه (صحرا والا) د هغه عاقله كيږي، نه اهلِ ديوان؛ ځكه د قاضي د فيصلې (قضاء) په وخت كي قاتل بدوي دى چي د هغه عاقله اهلِ باديه دي. لهذا اوس كه اهلِ ديوان د هغه عاقله وګرځول سي نو نقل لازميږي او نقل جائز نه دى (لكه مخكي چي هم ذكر سوه).

## كه عاقله د قاضي تر فيصلې وروسته اهلِ عطاء وګرځي (حكم او تفصيل)

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا او دا د هغه صورت په خلاف دى إِذَا كَانَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ قُضِيَ بِالدِّيَةِ عَلَيْهِمْ فِي أَمْوَالِهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ كله چي يو قوم له صحرا والا [اطرافو] څخه وي چي د هغوى په مالونو كي په دريو كالو كي د ديت فيصله سوې وي ثُمَّ جَعَلَهُمُ الْإِمَامُ فِي الْعَطَاءِ بيا امام هغوى په عطيه [اهلِ عطيه] كي شامل كړي حَيْثُ تَصِيْرُ الدِّيَةُ فِي عَطِيَّاتِهِمْ نو ديت د هغو په عطياتو كي [واجب] ګرځي وَإِنْ كَانَ قُضِيَ بِهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ فِي أَمْوَالِهِمْ كه څه هم اول وار د دوى په مالونو كي د ديت فيصله سوې وي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيْهِ نَقْضُ الْقَضَاءِ الْأَوَّلِ ځكه په دې كي د اولي فيصلې ماتول نسته لِأَنَّهُ قُضِيَ بِهَا فِي أَمْوَالِهِمْ ځكه د ديت فيصله د دوى په مالونو كي سوې وه وَعَطِيَّاتُهُمْ أَمْوَالُهُمْ او د دوى عطيات خو هم د دوى مالونه دي غَيْرَ أَنَّ الدِّيَةَ تُقْضٰى مِنْ أَيْسَرِ الْأَمْوَالِ أَدَاءً خو ديت له هغه مالونو څخه اداء كول كيږي چي له هغوى څخه [ديت] اداء كول ډېر آسانه وي وَالْأَدَاءُ مِنَ الْعَطَاءِ أَيْسَرُ إِذَا صَارُوْا مِنْ أَهْلِ الْعَطَاءِ او له عطاء [عطيې] څخه اداء كول ډېر آسانه دي كله چي دوى اهلِ عطاء ګرځېدلي دي إِلَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ مَالُ الْعَطَاءِ مِنْ جِنْسِ مَا قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِ مګر كله چي د عطاء مال د هغه څه له جنس څخه نه وي چي پر اهلِ عطاء د هغه فيصله سوې وي بِأَنْ كَانَ الْقَضَاءُ بِالْإِبِلِ وَالْعَطَاءُ دَرَاهِمَ په دې توګه چي [د ديت] فيصله په اوښانو سره سوې وي او عطاء دراهم وي فَحِيْنَئِذٍ لَا تَتَحَوَّلُ إِلَى الدَّرَاهِمِ أَبَدًا نو په دې وخت كي ديت هيڅكله هم د درهمو وطرف ته نه منتقل كيږي لِمَا فِيْهِ مِنْ إِبْطَالِ الْقَضَاءِ

الْأَوَّلِ ځکه په دې کې د اولې فیصلې باطلول سته لٰكِنْ يُقْضٰى ذٰلِكَ مِنْ مَالِ الْعَطَاءِ لېکن هغه [اوښان] به د عطاء له مال څخه اداء کول کیږي [په دې توګه چې اوښان به د عطاء په مال سره رانیول کیږي] لِأَنَّهٗ أَيْسَرُ ځکه چې دا [د عطاءله مال څخه اداء کول] ډېر آسانه دي.

**اللغات:** ﴿بادية﴾ صحرا، بېديا. ﴿قُضِيَ﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده: فیصله کول، قضاوت کول. ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول، ختمول. ﴿لا تتحوّل﴾ د تفعّل له بابه د نفي صیغه ده: اوښتل، منتقل کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په صحرا (اطرافي علاقه) کې یو خاندان استوګن وو او له هغو څخه یو کس خطاءً قتل وکړی نو قاضي د هغه پر عاقله وو یعني پر خاندان والا د هغو په مالونو کې دیت واجب کړی کوم چې په دریو کلونو کې اداء کیږي یعني هر کال به د دیت یو ثلث اداء کوي. خو تر دغه فیصلې وروسته داسې پېښ سول چې امام او د ښار واکمن دغه خاندان ټوله په اهل عطاء کې داخل کړی یعني د هغو لپاره یې د کاله عطیات مقرر کړل. نو قاضي چې مخکې د دیت واجبېدلو کومه فیصله د دوی په مالونو کې کړې وه، اوس دا دیت د دوی په عطیاتو کې واجبیږي، نه په مالونو کې. او اوس به دوی له همدې عطیاتو څخه په دریو کالو کې دیت اداء کوي. او دلته که څه هم په ښکاره داسې معلومیږي چې دا د اول حکم او فیصلې ماتول او باطلول دي، خو داسې نه ده؛ ځکه چې قاضي د دیت فیصله د دوی په مالونو کې کړې وه او عطیات خو هم د دوی مالونه دي. او مخکې دا اُصول تېر سو چې دیت په هغه مال کې واجبول کیږي چې د عاقله وو لپاره له هغه څخه دیت اداء کول ډېر آسانه وي او ښکاره ده چې له عطیاتو څخه دیت اداء کول له اصل مال څخه د دیت اداء کولو په نسبت ډېر آسانه دي (لکه مخکې چې ذکر سوه). او څرنګه چې اوس دا خاندان له اهلِ عطاء څخه ګرځېدلي دی. نو ځکه د مذکوره اُصول خیال به ساتل کیږي.

ها! که چیرې قاضي د دیت فیصله د دوی په اوښانو سره کړې وي چې تاسې به سل اوښان اداء کوئ! او اوس دوی ته په عطیاتو کې دراهم ورکول کیږي. نو اوس دا نه سي کېدلای چې قاضي خپله فیصله بدله کړي او د سلو اوښانو پر ځای د لسو زرو درهمو فیصله وکړي؛ ځکه په دې کې د اولې فیصلې ابطال لازمیږي یعني د قاضي مخکنۍ فیصله باطلیږي او دا نا جائز دي. نو ځکه اوس به پر هغو په همدې اوښانو سره دیت لازم وي چې دلته د هغه غوره او آسانه صورت دا دی چې هغوی دې په مال عطاء یعني په دراهمو سره اوښان رانیسي او دیت دې اداء کړي.

## د آزاد کړی سوي غلام عاقله د هغه د مالک قبیله ده

قَالَ: وَعَاقِلَةُ الْمُعْتَقِ قَبِيلَةُ مَوْلَاهُ فرمايي: او د آزاد کړی سوي غلام عاقله د هغه د مالک قبيله ده لِأَنَّ النُّصْرَةَ بِهِمْ ځکه [د هغه] نصرت په همدوی سره دی يُؤَيِّدُ ذٰلِكَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ» او د دې تائيد کوي د نبي ﷺ دا فرمان: چې د قوم آزاد کړی سوي غلام له هغه قوم څخه دی.

**اللغات**: ﴿معتَق﴾ دا افعال د باب مفعول دی: آزاد کړی سوی غلام. ﴿نصرة﴾ مدد (کومک). تقویه.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک يو غلام آزاد کړی وي، نو د همدې مالک قبيلې والا د هغه غلام عاقله کيږي؛ ځکه مالک او د هغه غلام دواړو ته د همدې مالک له قبيلې څخه نصرت او تقويه حاصليږي، او د نبي کريم ﷺ دا فرمان مبارک هم د دې تائيد کوي چې "مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ" يعني د قوم آزاد کړی سوي غلام له هغه قوم څخه شمېرل کيږي. دا حديث د دې خبرې څرګند دليل دی چې د آزاد کړی سوي غلام عاقله د مالک خاندان والا دي.

## د مولي الموالاة قبيله د هغه د مولیٰ قبيله ده

قَالَ: وَمَوْلَى الْمُوَالَاةِ يَعْقِلُ عَنْهُ مَوْلَاهُ وَقَبِيلَتُهُ فرمايي: او د مولی المولاة له طرفه به د هغه مولیٰ او د مولیٰ قبيله ديت اداء کوي لِأَنَّهُ وَلَاءٌ يُتَنَاصَرُ بِهِ ځکه دا داسي ولاء [او خپلوي] ده چې د هغه په وجه يو د بل مدد کيږي فَأَشْبَهَ وَلَاءَ الْعَتَاقَةِ نو دا د ولاء عتاقه سره مشابه سوه وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ الْوَلَاءِ او هغه په کتاب الولاء کي تېر سوی دی.

**اللغات**: ﴿موالاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، وَالىٰ يُوَالِيْ مُوَالَاةً: دوستي او ملګري کول، نصرت او مدد کول. د ولاء تعلق قائمول، يعني چې يو سړی د بل چا سره دا تړون وکړي چې ما او تا يو د بل دوستان او قريبان وي که زه مړ سوم نو زما ميراث ستا دی او که زه يو جنايت وکړم نو د هغه ديت به ته اداء کوې!. دې ته "عقد موالاة" وايي او د دې عقد کونکي ته "مولی الموالاة" وايي. ﴿مولیٰ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي. دلته مراد: موالاة کونکی کس دی. ﴿وَلاء﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی

څخه څيني دا دي: دوستي او نژدېکت، د دوو کسانو ترمينځ د نسبي قرابت په څېر خپلوي، حکمي قرابت. ﴿العتاقة﴾ آزادول، آزاد والي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که د دوو خلکو ترمينځ د موالات تړون سوی وي (يعني يو کس بل کس ته ويلي وي چې ما او تا يو د بل دوستان او وليان وي که زه مړ سوم نو زما ميراث ستا دی او که زه يو جنايت وکړم نو د هغه ديت به ته اداء کوې!. بيا ته عقدِ موالاة وايې او دا زموږ په نېز جائز دی)، نو اوس که له دوی وارو څخه يو کس خطاءً يو څوک قتل کړي، نو دا بل کس او د ده خاندن والا به د هغه ديت اداء کوي؛ ځکه څرنګه چې ولاء عتاقه (دآزادولو ولاء او دوستي) د تناصر ذريعه ده چې د هغه په خاطر آزادونکی مالک او آزاد کړی سوي غلام يو د بل نصرت کوي، همداسي ولاء موالاة هم د تناصر ذريعه ده او عربو به په عقد موالاة کي همداسي معامله کوله، نو ځکه عقد موالاة کونکی کس به د خپل جنايتکاره ملګري له طرفه ديت اداء کوي.

او په دې مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی؛ ځکه د هغه په نېز عقدِ موالاة باطل دی او د دې تفصيل د هدايې په دريیم جلد "کتاب الولاء" کي تېر سوی دی.

## د خومره ديت د لازمېدلو په صورت کي عاقله ذمه وار ګرځي

قَالَ: وَلَا تَعْقِلُ الْعَاقِلَةُ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ عُشْرِ الدِّيَةِ فرمايي: او عاقله به د ديت د لسمي حصې د نصف [شلمي حصې] څخه د کم مقدار ديت نه اداء کوي وَتَتَحَمَّلُ نِصْفَ الْعُشْرِ فَصَاعِدًا او د لسمي حصې د نصف مقدار يا [تر هغه] د زيات مقدار ديت تحمل به کوي [اداء کوي] وَالْأَصْلُ فِيهِ حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مَوْقُوفًا عَلَيْهِ وَمَرْفُوعًا إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ او اصل په دې باره کي د ابن عباس (رض) دا حديث دی کوم چې پر هغه موقوف دی او تر نبي کريم ﷺ پوري مرفوع دی «لَا تَعْقِلُ الْعَوَاقِلُ عَمْدًا وَلَا عَبْدًا چې عاقلې به ديت نه اداء کوي د عمد او نه د غلام وَلَا صُلْحًا وَلَا اعْتِرَافًا او نه به [ديت اداء کوي] د صلح او نه د اعتراف [اقرارِ جنايت] وَلَا مَا دُونَ أَرْشِ الْمُوضِحَةِ» او نه به [ديت اداء کوي] د موضحه زخم له ارش څخه د کم مقدار وَأَرْشُ الْمُوضِحَةِ نِصْفُ عُشْرِ بَدَلِ النَّفْسِ او د موضحه زخم ارش [جرمانه] د نفس د بدل نصف عشر [شلمه حصه] ده وَلِأَنَّ التَّحَمُّلَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْإِجْحَافِ او ځکه چې د عاقلې تحمل [ديت اداء کول] له سخت تاواني کولو څخه [د قاتل] د بچ کېدلو لپاره دي اچې قاتل له سخت تاوان او تکليف ما لا يُطاق څخه بچ سي] وَلَا إِجْحَافَ فِي الْقَلِيلِ او په لږ مقدار کي سخت

تاواني کول [او تکلیف مالا یطاق] نسته وَإِنَّمَا هُوَ فِي الْكَثِيرِ او هغه خو په زیات مقدار کې دی وَالتَّقْدِيرُ الْفَاصِلُ عُرِفَ بِالسَّمْعِ او [د قلیل او کثیر تر مینځ] د حدّ فاصل اندازه په سماع [نص] سره معلومه سوې ده.

**اللغات:** ﴿فصاعدًا﴾ او تر دې زیات. ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه، د ما دون النفس جنایت په بدله کې واجبېدونکې دیت. ﴿موضحة﴾ ژور زخم کوم چې هډوکې ښکاره کړي. ﴿إجحاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: په تاوان ور رسولو کې سختي کول، په داسې څه سره مکلف کول کوم چې د انسان په وس کې نه وي. ﴿تقدير﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: اندازه کول، مقدار ټاکل. ﴿سَمْع﴾ مراد: نصّ، نقلي دلیل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې عاقله به هغه جرمانه او هغه دیت نه اداء کوي کوم چې د نفس د دیت له شلمې حصې (نصف عُشر) څخه کم وي بلکې داسې جرمانه او دیت به مجرم او قاتل خپله اداء کوي، ها! که جرمانه او دیت د نفس د دیت شلمه حصه وي یا تر هغه زیات وي نو هغه به عاقله اداء کوي: ځکه دومره مقدار کثیر شمېرل کېږي؛ په دې هکله نقلي دلیل هغه حدیث دی کوم چې په کتاب کې مذکور دی او په هغه کې پنځه احکام ذکر سوي دي (او له هغوی څخه آخري حکم زمونږ دلیل دی): ① یو حکم دا چې عاقله د قتلِ عمد ذمه واره نه دي، بلکې صرف د قتلِ خطاء دیت به اداء کوي (لکه مخکې چې تېر سوه). ② عاقله د قاتل غلام د دیت ذمه واره نه دي، یعنې که د یو چا غلام یو څوک خطاءً قتل کړي نو د هغه دیت د مالک پر خاندان والا نه واجبېږي، بلکې خپله دا قاتل غلام به د مقتول ولي ته ور کول کېږي. ③ عاقله د صلح عن العمد ذمه واره نه دي، یعنې که قاتل یو څوک عمداً قتل کړی وي او بیا قاتل د مقتول د ولي سره پر مال صلح وکړي، نو هغه مال پر عاقله وو نه واجبېږي، بلکې خپله د قاتل په مال کې واجبېږي. ④ عاقله د قاتل د اقرار ذمه واره نه دي، یعنې که قاتل خپله د قتل اقرار کړی وي او عاقله د هغه تکذیب وکړي، نو پر عاقله وو د هغه دیت نه واجبېږي. ⑤ عاقله د دومره مقدار دیت او جرمانې ذمه واره نه دي کوم چې د موضحه زخم له جرمانې څخه کمه وي، بلکې هغه د قاتل په مال کې واجبېږي، او د موضحه زخم جرمانه د نفس د دیت نصف عشر (د لسمې نیمايي) یعنې د دیت شلمه حصه کېږي، نو له دې څخه معلومه سوه چې تر دې کم مقدار عاقله نه اداء کوي.

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې عاقله د قاتل دیت ځکه اداء کوي چې قاتل له سخت تاواني کېدلو څخه بچ سي او قاتل هغه وخت سخت تاواني کېږي کله چې د دیت مقدار زیات وي او که د

دیت مقدار قلیل وي نو دا ستونزه نه پېښېږي، نو ځکه هغه به قاتل اداء کوي. او د قلیل او کثیر مقدار نص دا ښوولی دی چې کوم مقدار د موضحه زخم له جرمانې (نصف عشر) څخه کم وي نو هغه قلیل دی او که تر دې زیات وي نو کثیر دی.

**له نصفِ عشر څخه کم مقدار والا دیت او جرمانه به ولې د مجرم په مال کې واجبیږي؟**

قَالَ: وَمَا نَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ فرمايي: او کوم مقدار چې له هغه [نصف عشر الدية] څخه کم وي يَكُوْنُ فِيْ مَالِ الْجَانِيْ نو هغه به د مجرم په مال کې [واجب] وي وَالْقِيَاسُ فِيْهِ التَّسْوِيَةُ بَيْنَ الْقَلِيْلِ وَالْكَثِيْرِ او قیاس په دې کې د لږ او زیات مقدار تر مینځ برابري ده فَيَجِبُ الْكُلُّ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو ځکه ټوله دیت به پر عاقله وو واجب وي كَمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ لکه څرنګه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله همدې طرف ته تللی دی أَوِ التَّسْوِيَةُ فِيْ أَنْ لَا يَجِبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ شَيْءٌ یا برابري په دې کې چې پر عاقله وو هیڅ شی واجب نه سي إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِمَا رَوَيْنَا خو موږ هغه [قیاس] پرېښوی د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ [مخکې] روایت کړی. وَبِمَا رُوِيَ أَنَّهُ الطَّيْكِيْلا أَوْجَبَ أَرْشَ الْجَنِيْنِ عَلَى الْعَاقِلَةِ او د دې حدیث په وجه کوم چې روایت سوی دی چې نبي کریم ﷺ پر عاقله وو د جنین ارش [جرمانه] واجب کړه وَهُوَ نِصْفُ عُشْرِ بَدَلِ الرَّجُلِ او هغه [د جنین ارش] د سړي د دیت نصف عشر [شلمه حصه] ده عَلَى مَا مَرَّ فِي الدِّيَاتِ لکه څرنګه چې دا په کتابُ الدیات کې تېر سوه فَمَا دُوْنَهُ لهذا کوم مقدار چې له [نصف عشر الدية] څخه کم وي يُسْلَكُ بِهِ مَسْلَكُ الْأَمْوَالِ هغه به د اموالو په درجه کې داخلول کیږي [یا په بله وینا د مال په څېر سلوک به ورسره کیږي] لِأَنَّهُ يَجِبُ بِالتَّحْكِيْمِ ځکه چې هغه [تر نصف عشر کم] د حَکَم [دریمګړي] په فیصله سره واجبیږي كَمَا يَجِبُ ضَمَانُ الْمَالِ بِالتَّقْوِيْمِ لکه څرنګه چې د مال ضمان [د هغه] په قیمت ټاکلو [قیمت معلومولو] سره واجبیږي فَلِهٰذَا كَانَ فِيْ مَالِ الْجَانِيْ أَخْذًا بِالْقِيَاسِ نو ځکه په قیاس باندې په عمل کولو سره به هغه [تر نصف عشر کم] د مجرم په مال کې [واجب] وي.

**اللغات:** ﴿جاني﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جنایتکاره، مجرم، ګنهکاره. ﴿نقص﴾ د نصر د باب ماضي ده: کمېدل. ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه. ﴿جنين﴾ د مور په نس کې موجود بچی. ﴿يسلك﴾ د

نصر له باب څخه مضارع مجهوله ده. د دې باب څو معناوي دي: داخلېدل. داخلول (لازمي او متعدي).
تګ کول (د لاري په اتباع کولو سره تلل). ﴿مسلك﴾ تګ لاره. لاره. جمع: مسالك. ﴿تحکیم﴾ د
تفعیل د باب مصدر دی: حَكَّمَ يُحَكِّمُ تَحْكِيْمًا: حَکَم جوړول. یعني د فیصله کولو لپاره یو عادل
کس (دریمګړی) ټاکل. په لانجمنه مسئله کې څوک خپل حَکَم (فیصله کونکی) جوړول.
﴿تقویم﴾ دا هم د تفعیل د باب مصدر دی: قیمت ټاکل. ربټ لګول. د یو شي اندازه بیانول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې له نصف عشر څخه کم مقدار والا دیت او جرمانه د مجرم په
مال کې واجبیږي او هغه به عاقله نه اداء کوي: ځکه دلته دوه قیاسه دي او هغه دواړه یو د بل متعارض
دي: ① یو قیاس دا دی چې د مجرم ټوله دیت د هغه پر عاقله وو واجب سي، برابره ده هغه کثیر وي
او که قلیل وي. لکه څرنګه چې همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی. ② دویم قیاس دا دی چې
بر عاقله وو بالکل دیت واجب نه سي بلکې پر مجرم واجب سي؛ ځکه عاقله خپله مجرمان نه دي.
څرنګه چې دا دواړه قیاسونه یو د بل متعارض دی. نو ځکه موږ هغوی پرېښوول او په نصوصو مو
عمل وکړی چې له هغوی څخه اول نصّ هغه حدیث دی کوم چې په مخکنی مسئله کې بیان سو
چې د هغه په آخر کې ذکر سوي دي "وَلَا مَا دُوْنَ أَرْشِ الْمُوْضِحَةِ" او دویم نصّ دا دی چې نبي
کریم ﷺ د جنین ارش په عاقله وو باندې واجب کړی چې هغه د سړي د دیت نصف عشر (شلمه
حصه) کیږي، لهذا له دې څخه هم دا خبره ښکاره سوه چې نصف عشر یا تر هغه زائد مقدار د مجرم او
قاتل په عاقله وو باندې واجبیږي. او کوم مقدار چې له نصف عشر څخه کم وي هغه د قاتل په مال
کې واجبیږي. نو له نصف عشر څخه کم مقدار ته به د اموالو درجه ورکول کیږي ځکه څرنګه چې د
مال (مالیت لرونکي شي) ضمان په تقویم سره واجبیږي. همداسې له نصف عشر څخه کم مقدار په
تحکیم سره واجبیږي. نو ځکه هغه به د مجرم په مال کې واجبول کیږي.

## عاقله به په کومو صورتونو کې دیت نه اداء کوي؟

قَالَ: وَلَا تَعْقِلُ الْعَاقِلَةُ جِنَايَةَ الْعَبْدِ فرمايي: او عاقله به د غلام د جنایت دیت نه اداء کوي وَلَا مَا لَزِمَ
بِالصُّلْحِ أَوْ بِاعْتِرَافِ الْجَانِي او نه به د هغه مال [دیت اداء کوي] کوم چې په صلح یا د مجرم په اعتراف
سره لازم سي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَلِأَنَّهُ لَا تَنَاصُرَ بِالْعَبْدِ او
ځکه چې د غلام په ذریعه تناصر نه کیږي وَالْإِقْرَارُ وَالصُّلْحُ لَا يَلْزَمَانِ الْعَاقِلَةَ او [د مجرم] اقرار او
صلح پر عاقله وو نه لازمیږي لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ عَنْهُمْ له دوی څخه د ولایت د قاصر کېدلو په وجه

[یعني پر بل چا د دوی ولایت ناقص دی] قَالَ: إِلَّا أَنْ يُصَدِّقُوْهُ فرمایي: مګر دا چې عاقله د هغه [مجرم] تصدیق وکړي لِأَنَّهُ ثَبَتَ بِتَصَادُقِهِمْ ځکه [په دې صورت کې د مال] وجوب د دوی په خپل تصدیق سره ثابت سوی دی وَالِامْتِنَاعُ كَانَ لِحَقِّهِمْ او د وجوب ممتنع کېدل د دوی د په حق په وجه وه وَلَهُمْ وِلَايَةٌ عَلَى أَنْفُسِهِمْ او دوی ته پر خپلو ځانو [پوره] ولایت سته.

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم، ګناه. ﴿تناصر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل مدد کول. ﴿تصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل تصدیق کول، پر یو خبره د دوو یا ډېرو کسانو اتفاق کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل واضح او آسانه دی چې عاقله به نه د مالک د غلام دیت اداء کوي، نه د صلح عن القتل او نه د جرم او قتل د اقرار (چې صورتونه یې مخکې ذکر سول)؛ ځکه په تېر متن کې چې کوم حدیث ذکر سوی دی په هغه کې په واضحه توګه دا ذکر سوي دي چې عاقله به له دې دریو اُمورو څخه د هیڅ یو امر دیت نه اداء کوي.

عقلي دلیل دا دی چې د دیت مدار پر تناصر دی، او غلام خو خپله محتاج او بې واکه وي نو هغه به څنګه د بل چا نصرت او مدد وکړي، او د اقرار او صلح تعلق د انسان د خپل ذات سره وي او دا دواړه پر عاقله وو هیڅ شی نه سي واجبولای؛ ځکه پر بل چا دوی ولایت ناقص دی او نا قص ولایت د اِلزام مانع دی. ها! که چیري عاقله خپله د دې اقرار او صلح تصدیق وکړي، نو په دې صورت کې د اقرار او صلح مال اداء کول پر دوی واجبیږي؛ ځکه د دوی په حق کې د اقرار صلح نه واجبېدل د دوی د حق په وجه وه، خو دوی په خپل تصدیق کولو سره دا ممانعت ختم کړی او دوی ته پر خپل ځانو پوره ولایت حاصل دی، نو ځکه اوس به دا مال پر دوی لازم وي.

**د قتل خطاء دیت په کوم صورت کې په عاقله وو باندي وي او په کوم صورت کې په قاتل باندي وي؟**

وَمَنْ أَقَرَّ بِقَتْلٍ خَطَأً او څوک چې د قتل خطاء اقرار وکړي وَلَمْ يَرْفَعُوْا إِلَى الْقَاضِيْ إِلَّا بَعْدَ سِنِيْنَ او خلک دا د قتل مسئله قاضي ته پېش نه کړي مګر څو کاله وروسته قُضِيَ عَلَيْهِ بِالدِّيَةِ فِيْ مَالِهِ فِيْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ مِنْ يَوْمِ يُقْضٰى نو پر قاتل به په خپل مال کې [د دیت اداء کولو] فیصله کول کیږي په دریو کالو کې له هغه ورځې څخه په کومه ورځ چې فیصله وسي لِأَنَّ التَّأْجِيْلَ مِنْ وَقْتِ الْقَضَاءِ فِي الثَّابِتِ بِالْبَيِّنَةِ ځکه [د دریو کالو] نېټه ورکول د فیصلې له وخت څخه وي په هغه قتل کې کوم چې په بینه سره ثابت وي فَفِي الثَّابِتِ بِالْإِقْرَارِ أَوْلَىٰ نو کوم قتل چې په اقرار سره ثابت وي په هغه

کي به په درجه اولیٰ [د دریو کالو تأجیل] وي [لأن الثابت بالبینة أقویٰ من الثابت بالإقرار، لأن الثابت بها کالثابت معاینةً].

**اللغات:** ﴿لم یرفعوا﴾ د فتح له باب څخه د جمع مذکر غائب جحد صیغه ده: د دې باب څو معناوې دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي: پورته کول، د قاضي په محکمه کې یو مسئله او قضیه پېشول، رسول. ﴿تأجیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مؤجّل کول (نیټه باره کول)، وخت او نېټه ورکول، مهلت ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک د قتلِ خطاء اقرار وکړي او بیا د هغه قضیه څو کاله وروسته د قاضي دربار ته پېش کړل سي، نو دیت د هغه په مال کي له هغه ورځي څخه واجبیږي په کومه ورځ چي قاضي پر هغه د دیت فیصله وکړي، او دا دیت به په دریو کالو کي اداء کول کیږي: ځکه کله چي په بیّنه سره د ثابت سوي قتل دیت په دریو کالو کي اداء کول کیږي نو په اقرار سره د ثابت سوي قتل دیت به په درجه اولیٰ په دریو کالو کي اداء کول کیږي.

**د قاتل اقرار پر عاقله وو حجت نه دی، همدارنګه**
**د قاتل او د جنایت د ولي اتفاق هم حجت نه دی**

وَلَوْ تَصَادَقَ الْقَاتِلُ وَوَلِيُّ الْجِنَايَةِ او که قاتل او د جنایت ولي اتفاق وکړي عَلَى أَنَّ قَاضِيَ بَلَدِ كَذَا قَضَى بِالدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ بِالْكُوفَةِ بِالْبَيِّنَةِ پر دې خبره چي د فلانکي ښار قاضي د قاتل د کوفې والا پر عاقله وو د بیّنې په ذریعه د دیت فیصله کړې ده وَكَذَّبَهُمَا الْعَاقِلَةُ او عاقله د دوی دواړو تکذیب وکړي فَلَا شَيْءَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو پر عاقله وو هیڅ شی نسته لِأَنَّ تَصَادُقَهُمَا لَيْسَ بِحُجَّةٍ عَلَيْهِمْ ځکه د دوی دواړو [یعني د قاتل او وليُ الجنایة] اتفاق پر عاقله وو حجت نه دی وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي مَالِهِ او پر قاتل په خپل مال کي هیڅ شی نسته لِأَنَّ الدِّيَةَ بِتَصَادُقِهِمَا تَقَرَّرَتْ عَلَى الْعَاقِلَةِ بِالْقَضَاءِ ځکه دیت د دوی دواړو په اتفاق سره د قضاء [د قاضي د فیصلې] په ذریعه پر عاقله وو ثابت سوی دی وَتَصَادُقُهُمَا حُجَّةٌ فِي حَقِّهِمَا او د دوی دواړو اتفاق د دوی په خپل حق کي حجت دی بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت [یعني د اقرار صورت چي الاقرار والصلح لا یلزمان العاقلة] إِلَّا أَنْ يَكُونَ لَهُ عَطَاءٌ مَعَهُمْ مګر دا چي که د قاتل لپاره د عاقله وو سره عطیه [مقرره] وي فَحِينَئِذٍ يَلْزَمُهُ بِقَدْرِ حِصَّتِهِ نو په دې

وخت کي پر قاتل د خپلي حصې په اندازه لازمیږي لِأَنَّهُ فِي حَقِّ حِصَّتِهِ مُقِرٌّ عَلَى نَفْسِهِ ځکه د خپلي حصې په حق کي هغه د خپل ځان په خلاف اقرار کونکی دی وَفِي حَقِّ الْعَاقِلَةِ مُقِرٌّ عَلَيْهِمْ او د عاقله وو په حق کي د هغو په خلاف اقرار کونکی دی.

**اللغات:** ﴿تصادق﴾ د تفاعل د باب ماضي ده: یو د بل تصدیق کول. پر یو خبره د دوو کسانو اتفاق کول. د یو شي په باره کي د دوو خلکو اقرار کول او پر هغه اتفاق کول. ﴿بیّنة﴾ گواهي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که قاتل او وليُ الجنایة (دمقتول ولي) دواړه د دې خبرې اقرار او تصدیق وکړي چي مثلاً د بصرې د ښار قاضي د بیّنې (گواهی) پر بناء د قاتل پر هغه عاقله وو (اهل دیوان یا قریبانو) باندي د دیت واجبېدلو فیصله وکړه کوم چي په کوفه کي استوګن دي. خو عاقله وو د قاتل او د وليُ الجنایة دواړو تکذیب وکړی، نو پر مذکوره عاقله وو هیڅ شی نه واجبیږي: ځکه دا صرف د دوی دواړو اقرار او اتفاق دی او د دوی اقرار د عاقله وو په حق کي حجت نه دی. لیکن په دې اقرار او اتفاق سره د قاتل فایده کیږي او پر هغه د دیت هیڅ حصّه نه واجبیږي: ځکه د دوی په اقرار سره دا خبره څرګنده سوه چي د دیت وجوب پر عاقله وو دی (که څه هم د عاقله وو د تکذیب په وجه د دې خبري حتمي ثبوت نه دی سوی). او د قاتل او وليُ الجنایة اقرار د دوی د خپل ذات په حق کي معتبر او مقبول دی، نو ځکه قاتل به له دیت څخه بري کیږي.

بخلاف الأوّل إلخ: د دې په خلاف په مخکنی مسئله کي چي څرنګه قاتل پر خپل ځان د قتل خطاء او دیت واجبېدلو اقرار کړی دی. نو ځکه هلته د هغه په حق کي د قتل اقرار معتبر دی او د هغه په مال کي دیت واجب دی؛ ځکه عاقله د مجرم په اقرار سره د ثابتېدونکي قتل دیت نه اداء کوي. (یا په بله وینا دا چي په مخکیني صورت کي هغه پر عاقله وو د قاضي د فیصلې او پر هغو د دیت واجبېدلو اقرار نه دی کړی بلکي پر خپل ځان یې د قتل اقرار کړی دی. نو هغه به په خپل اقرار کي مأخوذ کیږي. او په مذکوره مسئله کي د جنایت ولي [د مقتول ولي] پر قاتل او د هغه پر عاقله وو د دیت واجبېدلو مدعي او مُقر دی او قاتل هم د دې اقرار او تصدیق کوي. خو پر عاقله وو د دوی په اقرار او تصدیق سره دا دیت واجب نه سو. نو څرنګه چي قاتل هم له عاقله وو څخه یو فرد دی. نو ځکه پر هغه به هم دیت نه واجبیږي. او یوازي د هغه له طرفه اقرار سته نه).

إلّا أن یکون إلخ: یعني په مذکوره مسئله کي خو پر قاتل هیڅ شی نه واجبیږي. لیکن که قاتل له اهل عطاء (اهل دیوان وغیره) څخه وي او د عاقله وو سره د هغه لپاره هم د دولت له طرفه عطیه مقرره وي. نو په دې صورت کي پر قاتل د خپلي حصې په اندازه دیت واجبیږي: ځکه د مذکوره اقرار او تصادق

په صورت کي قاتل د خپل ځان په خلاف هم اقرار کونکی دی او پر عاقله وو هم اقرار کونکی دی، لیکن څرنګه چي د هغه اقرار د خپل ځان په حق کي معتبر دی، نو ځکه پر هغه صرف د خپلي حصې په اندازه مال واجب دی او د عاقله وو په حق کي د هغه اقرار معتبر نه دی، نو ځکه پر عاقله وو هیڅ هم واجب نه دي.

## د مقتول غلام په بدله کي څه واجبیږي او پر چا واجبیږي؟

قَالَ: وَإِذَا جَنَى الْحُرُّ عَلَى الْعَبْدِ فَقَتَلَهُ خَطَأً فرمايي: او کله چي آزاد پر غلام جنایت وکړي نو هغه خطاءً قتل کړي كَانَ عَلَىٰ عَاقِلَتِهِ قِيمَتُهُ نو د قاتل پر عاقله وو د غلام قیمت [واجب] دی لِأَنَّهُ بَدَلُ النَّفْسِ ځکه چي قیمت د نفس بدل دی عَلَىٰ مَا عُرِفَ مِنْ أَصْلِنَا لکه څرنګه چي دا زموږ له اصل څخه پېژندل سوې ده [یعني دا زموږ معلوم اصل دی] وَفِي أَحَدِ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ تَجِبُ فِي مَالِهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه په یوه قول کي دا قیمت د قاتل په مال کي واجبیږي لِأَنَّهُ بَدَلُ الْمَالِ عِنْدَهُ ځکه د هغه په نېز دا قیمت د مال بدل دی وَلِهٰذَا يُوجِبُ قِيمَتَهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ په همدې وجه امام شافعي رَحِمَهُ الله د هغه قیمت که هر څو ته رسیږي هغه واجبوي [یعني که څه هم تر دیت زیات وي].

**اللغات:** ﴿جنى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جرم کول. ﴿بالغة ما بلغت﴾ تر کومه چي ورسیږي، یعني څومره چي هم وي (که څه هم تر دیت زیات وي).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چي که آزاد کس خطاءً یو غلام قتل کړي، نو د قاتل پر عاقله وو د غلام قیمت واجبیږي؛ ځکه دا قیمت د غلام د نفس بدل دی او زموږ په نېز قاعده دا ده چي د نفس بدل پر عاقله وو واجبیږي؛ نو ځکه دا قیمت به عاقله اداء کوي.

له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په یوه قول کي نقل سوي دي چي دا قیمت خپله د قاتل په مال کي واجبیږي، پر عاقله وو نه واجبیږي؛ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا د مال بدل دی (ځکه غلام مال دی) او د مال بدل پر مجرم واجبیږي، نه پر عاقله وو، په همدې وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په مذکوره مسئله کي د مقتول قیمت که هر څو ته رسیږي هغه واجبیږي. یعني که څه هم دا قیمت له دیت څخه زیات وي، بیا هم قیمت واجبیږي.

## په غلام کې د ما دون النفس د جنایت جرمانه به څوک اداء کوي، جاني او که د هغه عاقله؟

وَمَا دُوْنَ النَّفْسِ مِنَ الْعَبْدِ لَا تَتَحَمَّلُهُ الْعَاقِلَةُ او د غلام ما دون النفس به عاقله پر ځان نه اخلي [یعنې د ما دون النفس د جنایت جرمانه به نه اداء کوي] لِأَنَّهُ يُسْلَكُ بِهِ مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ عِنْدَنَا ځکه زموږ په نیز ما دون النفس د اموالو په درجه کې داخلول کیږي [یا په بله وینا دا چې د ما دون النفس سره د مال په څیر سلوک او لاره اختیارول کیږي] عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې دا [مخکې] پیژندل سوې ده وَفِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ الْعَاقِلَةُ تَتَحَمَّلُهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د یوه قول مطابق عاقله به هغه پر ځان اخلي [اداء کوي] كَمَا فِي الْحُرِّ لکه په آزاد کې [چې عاقله هغه اداء کوي] وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا مخکې تېره سوې ده.

**اللغات:** ﴿لا تتحمل﴾ د تفعل له بابه نفي صیغه ده: پورته کول، پر ځان اخیستل. زغمل.

﴿یسلك﴾: داخلېدل. داخلول (لازمي او متعدي)، تګ کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که آزاد کس د غلام پر ما دون النفس جنایت وکړي مثلاً د هغه د بدن یو غړی او اندام تلف کړي. نو زموږ په نیز د دې تلف سوي اندام ضمان (تاوان) خپله د مجرم (تلفونکي) په مال کې واجبیږي او عاقل به هغه نه آداء کوي. ځکه په ما دون النفس کې زموږ په نیز د اموالو معامله جاري کیږي او د اموالو ضمان خپله د قاتل په مال کې واجبیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله یو قول دا دی چې د ما دون النفس ضمان د عاقله وو په مال کې واجبیږي او قاتل به هغه نه اداء کوي: لکه د آزاد کس ما دون النفس مثلاً د هغه یو اندام که تلف کړی سي. نو د هغه ضمان به عاقله اداء کوي. نو همداسې د غلام د ما دون النفس ضمان به هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې قول کې عاقله اداء کوي.

## د عاقله نه لرونکي دیت په بیت المال کې واجبیږي

قَالَ أَصْحَابُنَا: إِنَّ الْقَاتِلَ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ عَاقِلَةٌ زموږ حضراتو ملګرو فرمایلي دي: چې کله د قاتل لپاره هیڅ عاقله نه وي فَالدِّيَةُ فِي بَيْتِ الْمَالِ نو دیت په بیت المال کې [واجب] دی لِأَنَّ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ هُمْ أَهْلُ نُصْرَتِهِ ځکه د هغه اهل نصرت [مددګاران] همدا د مسلمانانو جماعت دی وَلَيْسَ بَعْضُهُمْ أَخَصَّ مِنْ بَعْضٍ بِذَلِكَ او د نصرت په هکله دوی بعضې له بعضو څخه خاص نه دي وَلِهَذَا لَوْ مَاتَ په همدې وجه که هغه [د چا عاقله چې نه وي] مړ سي كَانَ مِيرَاثُهُ لِبَيْتِ الْمَالِ نو د هغه میراث

د بيت المال کيږي فَكَذَا مَا يَلْزَمُهُ مِنَ الْغَرَامَةِ يَلْزَمُ بَيْتَ الْمَالِ نو همداسي پر هغه چي کوم تاوان لازم سي هغه به [هم] پر بيت المال لازم وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رِوَايَةٌ شَاذَّةٌ أَنَّ الدِّيَةَ فِي مَالِهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه يو شاذ روايت دا دی چي ديت د هغه په مال کي [واجب] دی وَوَجْهُهُ أَنَّ الْأَصْلَ أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ عَلَى الْقَاتِلِ او د دې وجه دا ده چي اصل دا دی چي ديت پر قاتل واجب سي لِأَنَّهُ بَدَلُ مُتْلَفٍ ځکه چي ديت د تلف کړی سوی نفس بدل دی وَالْإِتْلَافُ مِنْهُ او تلفول د قاتل له طرفه [واقع سوي] دي إِلَّا أَنَّ الْعَاقِلَةَ تَتَحَمَّلُهَا تَحْقِيقًا لِلتَّخْفِيفِ خو د تخفيف ثابتولو په خاطر عاقله به ديت پر ځان اخلي عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه فَإِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ عَاقِلَةٌ لهذا کله چي د قاتل لپاره عاقله نه وي عَادَ الْحُكْمُ إِلَى الْأَصْلِ نو حکم به د اصل وطرف ته راګرځي.

**اللغات:** ﴿بيت المال﴾ د اسلامي دولت خزانه (سرکاري خزانه). هغه دولتي ځای چي د عوامو مالونه پکښي جمع کيږي. ﴿غرامة﴾ تاوان. جرمانه. ﴿مُتْلَف﴾ د افعال د باب مفعول دی: تلف کړی سوی (ضايع کړی سوی). هلاک کړی سوی.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي د هغه آسانه مطلب دا دی چي که يو چا خطاءً يو څوک قتل کړی او قاتل لره هيڅ عاقله نه وه. نو د داسي قاتل ديت به بيت المال اداء کوي: ځکه د عاقلې د نا موجوديت په صورت کي د هغه معاون او مددګاره ټوله مسلمانان دي او څرنګه چي په دې امر کي ټوله برابر شريک او دي او يو له بل څخه فائق او بالا نه دي. نو ځکه د ټوله قوم چي کوم بيت المال دی، له هاغه څخه به د داسي قاتل ديت اداء کول کيږي. همدا وجه ده که داسي کس ميراث پرې ايښي وي، نو د هغه ميراث بيت المال ته حاصليږي او په بيت المال کي به ايښوول کيږي.

وعن أبي حنيفة إلخ: له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه يو شاذ روايت دا دی چي په دې صورت کي د قاتل په مال کي ديت واجبيږي: ځکه د ديت اصل وجوب پر قاتل وي خو له سخت تاوان او تکليف ما لا يطاق څخه د قاتل د بچ کولو په خاطر بيا د هغه اداء کول پر عاقله وو لازميږي. اوس که د يو چا عاقله نه وي نو مجبوراً حکم د اصل وطرف ته راګرځي او ديت خپله د قاتل په مال کي واجبيږي.

## د ملاعنه ښځې بچې كه څوک قتل كړي نو ديت به څوک او څنګه اداء كوي؟

وَابْنُ الْمُلَاعَنَةِ تَعْقِلُهُ عَاقِلَةُ أُمِّهِ او د ملاعنه ښځې د ځوی ديت به د هغه د مور عاقله اداء كوي لِأَنَّ نَسَبَهُ ثَابِتٌ مِنْهَا دُونَ الْأَبِ ځكه د هغه نسب د مور سره ثابت دی، نه د پلار سره فَإِنْ عَقَلُوا عَنْهُ نو كه دوی [د مور عاقله وو] د هغه له طرفه ديت اداء كړی ثُمَّ ادَّعَاهُ الْأَبُ بيا پلار د هغه [ځوی د نسب] دعوىٰ وكړه [او د خپل ځان تكذيب يې وكړی] رَجَعَتْ عَاقِلَةُ الْأُمِّ بِمَا أَدَّتْ عَلَى عَاقِلَةِ الْأَبِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو د مور عاقله به د هغه ديت په باره كې كوم چې يې اداء كړی دی د پلار پر عاقله وو په دريو كالو كې رجوع كوي [يعني په ديت كې اداء كړی سوی مال به د پلار له عاقله وو څخه په دريو كالو كې ويسر اخلي] مِنْ يَوْمِ يَقْضِي الْقَاضِي لِعَاقِلَةِ الْأُمِّ عَلَى عَاقِلَةِ الْأَبِ له هغه ورځې څخه چې قاضي د مور د عاقله وو لپاره د پلار پر عاقلې فيصله وكړي لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّ الدِّيَةَ وَاجِبَةٌ عَلَيْهِمْ ځكه دا خبره څرګنده سوه چې ديت د پلار پر عاقلې واجب وو لِأَنَّ عِنْدَ الْإِكْذَابِ ظَهَرَ أَنَّ النَّسَبَ لَمْ يَزَلْ كَانَ ثَابِتًا مِنَ الْأَبِ ځكه د كذب څرګندولو په وخت كې [يعني چې پلار د ځان تكذيب وكړی] دا خبره ښكاره سوه چې [د بچې] نسب له شروع څخه د پلار سره ثابت وو حَيْثُ بَطَلَ اللِّعَانُ بِالْإِكْذَابِ ځكه د كذب څرګندولو په وجه لعان باطل سو وَمَتَى ظَهَرَ مِنَ الْأَصْلِ او كله چې نسب له اصل څخه ښكاره [ثابت] سو فَقَوْمُ الْأُمِّ تَحَمَّلُوا مَا كَانَ وَاجِبًا عَلَى قَوْمِ الْأَبِ نو د مور قوم [عاقله وو] هغه ديت پر ځان اخيستی [اداء كړی] دی كوم چې د پلار پر قوم واجب وو فَيَرْجِعُونَ عَلَيْهِمْ نو ځكه دوی به د پلار پر قوم رجوع كوي لِأَنَّهُمْ مُضْطَرُّونَ فِي ذَٰلِكَ ځكه چې دوی [د مور عاقله] په دې [اداء كولو] كې مجبوره وه.

**اللغات:** ﴿ملاعنة﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: لعان كونكې ښځه. د دې باب لغوي معنىٰ ده: پر يو بل لعنت كول. د لعان تفصيل دا دی چې كله خاوند پر خپلې پاک لمنې ښځې د زنا تهمت ولګوي يا له هغې څخه د پيدا كونكي بچي د نسب انكار وكړي چې دا زما بچی نه دی نو شرعي حكم دا دی چې خاوند به لعان كوي او كله چې هغه لعان وكړي نو بيا به ښځه هم لعان كوي، او لعان دا دی چې اول به خاوند څلور دا قسمونه واخلي چې په الله قسم! (زه الله ګواه كوم) چې زه په دې دعوىٰ

کي ربښتونی یم چي فلانکۍ ښځي زنا کړې ده او پنځم وار به دا وايي چي که زه په خپله دعوىٰ کي دروغجن یم نو پر ما د دي د الله لعنت وي؛ تر دې وروسته به ښځه دا څلور قسمونه اخلي چي په الله قسم! فلانکی کس پر ما د زنا په تهمت لګولو کي دروغجن دی او پنځم وار به دا وايي چي که هغه په خپل تهمت لګولو کي ربښتونی نو پر ما دي د الله غضب وي. د لعان دا طریقه خپله په قرآن کریم کي ذکر سوې ده. (سورة النور ۱۰ – ۶)

**شریح : صورت د مسئلې** : دا دی که ښځي او خاوند په خپل مینځ کي لعان وکړی او خاوند د ښځي د بچي نفي وکړې نو قاضي د بچي نسب له پلار څخه نفي کړی او د مور سره يې ثابت کړی، نو اوس د دې بچي نسب د مور سره ثابتیږي، نه د پلار سره، لهذا که دغه بچي یو جنایت وکړی یعني یو څوک يې خطاءً قتل کړی نو د هغه دیت د مور په عاقله وو باندي واجبیږي.

اوس تر دې وروسته که ملاعن خاوند د خپل ځان او لعان تکذیب وکړی او د بچي د نسب دعوىٰ يې وکړه، نو لعان باطلیږي او د بچي نسب د پلار سره ثابتیږي، که څه هم د دې نسب ظهور او ثبوت اوس سوی دی خو په حقیقت کي له شروع څخه د هغه نسب د پلار سره ثابت دی.

لهذا د مور عاقله وو چي کوم دیت اداء کړی وي، هغه به دوی د پلار له عاقلې څخه واپس واخلي، او هغه به د قاضي د فیصلې له وخت څخه په دریو کالو کي دننه ځني اخلي؛ او د دې وجه "چي د مور عاقله به دا دیت د پلار له عاقلې څخه واپس اخلي" دا ده چي کله چي پلار د خپل لعان تکذیب وکړی نو دا خبره ښکاره سوه چي د مجرم بچي اصل نسب د پلار سره ثابت وو نو د هغه اصل دیت د پلار په عاقله وو باندي واجب وو او د مور عاقلې د مجبورۍ په وجه هغه اداء کړی وو، لېکن اوس دا مجبوره ختم سوه، نو ځکه اوس او به د مور عاقله په دیت کي ورکول سوی مال د پلار له عاقلې څخه واپس اخلي. (اشرف الهدایه، احسن الهدایه)

## د پورتنۍ مسئلې یو نظیر

وَكَذٰلِكَ إِنْ مَاتَ الْمُكَاتَبُ عَنْ وَفَاءٍ او همدارنګه که چیري مکاتب له پوره کافي مال څخه مړ سو [یعني تر شا يې دومره مال پرېښوی کوم چي د بدل کتابت اداء کولو لپاره کافي وو] وَلَهُ وَلَدٌ حُرٌّ او د هغه یو آزاد بچی وو فَلَمْ يُؤَدَّ كِتَابَتُهُ حَتّٰى جَنٰى اِبْنُهُ بیا تر اوسه د هغه کتابت [بدل کتابت] اداء کړی سوی نه وو چي د هغه ځوی جنایت وکړی وَعَقَلَ عَنْهُ قَوْمُ أُمِّهِ او د هغه له طرفه د هغه د مور قوم [عاقله وو] دیت اداء کړی ثُمَّ أُدِّيَتِ الْكِتَابَةُ بیا کتابت اداء کړی سو لِأَنَّهُ عِنْدَ الْأَدَاءِ يَتَحَوَّلُ وَلَاؤُهُ إِلٰى قَوْمِ أَبِيْهِ مِنْ وَقْتِ حُرِّيَّةِ الْأَبِ ځکه د کتابت اداء کولو په وخت کي د مکاتب د بچي ولاء د هغه د پلار د قوم

[عاقلې] وطرف ته منتقل کیږي د پلار دآزادۍ له وخت څخه وَهُوَ آخِرُ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ او هغه وخت د پلار د ژوند له اجزاؤ څخه آخري جزء دی فَتَبَيَّنَ أَنَّ قَوْمَ الْأُمِّ عَقَلُوا عَنْهُمْ نو دا څرګنده سوه چي د مور قوم د پلار د قوم له طرفه دیت اداء کړی دی فَيَرْجِعُونَ عَلَيْهِمْ نو ځکه د مور قوم به پر هغوی رجوع کوي.

**اللغات**: ﴿وفاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی. خپله معنی یې ده: پوره اداء کول. پوره کول. مراد ځني دومره مال دی کوم چي د بدل کتابت د اداء کولو لپاره کافي وي. ﴿يتحوّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: بدلېدل. اوښتل. له یوه حالت څخه بل حالت ته منتقل کېدل. ﴿ولاء﴾ دآزاد کړی سوي غلام میراث. یعني هغه میراث کوم چي له آزادېدونکي غلام څخه چاته حاصلیږي. یا هغه میراث چي په عقد موالاتسره حاصلیږي.

**تشریح**: دا مسئله د مخکنی مسئلې پر دلیل متفرع ده. خاصل یې دا دی که یو مکاتب کس د مکاتبي ښځي سره نکاح وکړه او له دوی څخه یو بچی پیدا سو. بیا د بچي مور (مکاتبه) آزاده کړل سوه او پلار (مکاتب) د خپل مرګ په وخت کي دومره مال پري ایښی وو چي په هغه سره د ده بدل کتابت اداء کېدلای سو. لېکن د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي د هغه مذکوره بچي یو جنایت وکړی یعني یو څوک یې خطاءً قتل کړی او د بچي د مور قوم (عاقله) د هغه له طرفه دیت اداء کړی. تر دې وروسته د هغه پلار بدل کتابت اداء کړی سو. نو په دې صورت کي هم د مور قوم (عاقله) به د پلار له عاقله وو څخه د دیت په اندازه مال واپس اخلي: ځکه کله چي پلار د بدل کتابت په اندازه مال پرې ایښی وو او د هغه تر اداء مخکي دئ مړ سو او تر مرګ وروسته هغه اداء کړی سو. نو داسي سوه لکه پلار چي دآزادۍ په حالت کي مړ سوی وو او د هغه د قاتل بچي دیت د همدې پلار په عاقله وو باندي واجب وو: ځکه د ځوی د ولاء اصل مستحقین همدوی وه. خو څرنګه چي دا ښکاره سوې نه وه نو ځکه د مور قوم د هغه له طرفه دیت ورکړی وو. اوس چي کله دا خبره ښکاره سوه نو کوم چي اصل مستحقین وه. د هغو وطرف ته د دیت د وجوب حکم راوګرځېدی. نو ځکه د مور عاقله به په دیت کي ورکول سوی مال د پلار له عاقلې څخه اخلي.

**که یو سړی بچي ته د یوچا د قتل کولو حکم وکړي او بچي هغه قتل کړي نو دیت پر چا دی؟**

وَكَذٰلِكَ رَجُلٌ أَمَرَ صَبِيًّا بِقَتْلِ رَجُلٍ او همدارنګه [که] یو سړي بچي ته د یو سړي د قتل کولو حکم وکړي فَقَتَلَهُ نو بچي هغه قتل کړي فَضَمِنَتْ عَاقِلَةُ الصَّبِيِّ الدِّيَةَ بیا د بچي عاقله وو د دیت ضمان اداء کړي رَجَعَتْ بِهَا عَلٰى عَاقِلَةِ الْآمِرِ نو د بچي عاقله به په هغه دیت سره د آمر [حکم کونکي] پر عاقلې رجوع کوي إِنْ كَانَ الْأَمْرُ ثَبَتَ بِالْبَيِّنَةِ که چیري امر [یعني د آمر حکم کول] په ګواهۍ سره ثابت سوی وی وَفِي مَالِ الْآمِرِ إِنْ كَانَ ثَبَتَ بِإِقْرَارِهِ او د آمر په مال کي به رجوع کوي که چیري امر د هغه په خپل اقرار سره ثابت سوی وي فِي ثَلَاثِ سِنِينَ مِنْ يَوْمِ يَقْضِي بِهَا الْقَاضِي عَلَى الْآمِرِ أَوْ عَلٰى عَاقِلَتِهِ [او دا رجوع به کوي] په درېو کالو کي له هغه ورځي څخه چي قاضي پر آمر یا د هغه پر عاقله وو د دیت فیصله وکړي لِأَنَّ الدِّيَاتِ تَجِبُ مُؤَجَّلَةً بِطَرِيقِ التَّيْسِيرِ ځکه د آساني کولو پر طریقه دیتونه نېټه داره [د درېو کالو په نېټه سره] واجبیږي.

**اللغات:** ﴿ضمنت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: ضامن کېدل (ذمه وار کېدل). ضمان (تاوان) پرې لازمېدل. ضمان ورکول. ﴿بيّنة﴾ ګواهي. ﴿مؤجّلة﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: مؤخر. د کوم شي لپاره چي یو نېټه (موده) ټاکل سوې وي، نېټه داره.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید یو بچي (کوچني) ته حکم وکړي چي بچیه! ته فلانکی سړی قتل کړه! او بچي د ده حکم پرځا کړي او هغه سړی قتل کړي، بیا د بچي عاقله د بچي له طرفه دیت اداء کړي، نو دا عاقله به په دیت کي اداء کړی سوی مال له آمر (زید) یا د هغه له عاقله وو څخه واپس اخلي، چي د هغه تفصیل دا دی چي که د آمر امر (حکم کول) په بینه سره ثابت سوی وي (یعني ګواهانو پر دې ګواهي پېش کړه چي قاتل بچي ته زید حکم کړی وو)، نو دا مال به د آمر له عاقله وو څخه اخیستل کیږي. او که د آمر امر د هغه په خپل اقرار سره ثابت سوی وی، نو هغه به د آمر له مال څخه اخیستل کیږي او د قاضي د فیصلې له ورځي څخه به په درېو کالو کي دننه هغه اداء کول کیږي: ځکه دیت چي پر هرچا واجب سي، هغه په هر حال په درېو کلونو کي واجبیږي د دې لپاره چي د من وجب علیه په حق کي آساني او تخفیف ثابت سي چي په آسانه توګه یې هغه اداء کړي.

## د پورتنی مسئلو په هکله یو أصول او پر هغه متفرّع کېدونکي څو مسائل

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : هٰهُنَا عِدَّةُ مَسَائِلَ ذَكَرَهَا مُحَمَّدٌ مُتَفَرِّقَةً صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: دلته څو مسئلې دي کوم چي امام محمد رَحِمَهُ الله په متفرّقه توګه ذکر کړي دي وَالْأَصْلُ الَّذِي يُخَرَّجُ عَلَيْهِ أَنْ يُقَالَ او هغه اصل چي مسائل پرې متفرع کيږي دا دی چي وويل سي حَالُ الْقَاتِلِ إِذَا تَبَدَّلَ حُكْمًا [۱] کله چي د قاتل [مجرم] حالت د حکم په اعتبار سره بدل سي فَانْتَقَلَ وَلَاؤُهُ إِلَى وَلَاءٍ بِسَبَبِ أَمْرٍ حَادِثٍ بیا د پیښېدونکي امر [پلار آزادېدلو] په وجه د هغه ولاء د بلي ولاء وطرف ته منتقل سي لَمْ تَنْتَقِلْ جِنَايَتُهُ عَنِ الْأَوَّلِ نو د هغه جنايت له اولي عاقلې څخه نه منتقل کيږي قُضِيَ بِهَا أَوْ لَمْ يُقْضَ برابره ده [د قاضي له طرفه] د هغه فيصله سوې وي او که نه وي سوې وَإِنْ ظَهَرَتْ حَالَةٌ خَفِيَّةٌ مِثْلُ دَعْوَةِ وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ [۲] او که چيري [د مجرم] پټ حالت ښکاره سي لکه د ملاعنه ښځي د بچي دعوىٰ کول [چي ملاعن پلار د هغه د نسب دعوىٰ وکړي] حُوِّلَتِ الْجِنَايَةُ إِلَى الْأُخْرَىٰ نو جنايت د بلي عاقلې وطرف ته منتقل کيږي وَقَعَ الْقَضَاءُ بِهَا أَوْ لَمْ يَقَعْ برابره پر هغه د قاضي فيصله واقع سوې وي او که نه وي واقع سوې وَلَوْ لَمْ يَخْتَلِفْ حَالُ الْجَانِي [۳] او که د مجرم حالت مختلف سوی [بدل سوی] نه وي وَلٰكِنَّ الْعَاقِلَةَ تَبَدَّلَتْ لېکن عاقله بدله سي كَانَ الِاعْتِبَارُ فِي ذٰلِكَ لِوَقْتِ الْقَضَاءِ نو په دې کي د قاضي د فيصلې وخت لره اعتبار دی فَإِنْ كَانَ قُضِيَ بِهَا عَلَى الْأُولَىٰ بيا که پر اوله عاقله د ديت فيصله سوې وي لَمْ تَنْتَقِلْ إِلَى الثَّانِيَةِ نو ديت د دويمي عاقلې وطرف ته نه منتقل کيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ قُضِيَ بِهَا عَلَى الْأُولَىٰ او که پر اوله عاقله د ديت فيصله نه وي سوې فَإِنَّهُ يُقْضَىٰ بِهَا عَلَى الثَّانِيَةِ نو بيا به د ديت فيصله پر دويمي عاقلې کيږي وَإِنْ كَانَتِ الْعَاقِلَةُ وَاحِدَةً [۴] او که چيري عاقله يوه وي فَلَحِقَهَا زِيَادَةٌ أَوْ نُقْصَانٌ بيا د عاقله وو سره اضافه يا کمي يوځای سي اِشْتَرَكُوا فِي حُكْمِ الْجِنَايَةِ نو عاقلې والا ټوله د جنايت په حکم کي شريکان کيږي قَبْلَ الْقَضَاءِ وَبَعْدَهُ د قاضي له فيصلې څخه مخکي هم او تر هغه وروسته هم إِلَّا فِيمَا سَبَقَ أَدَاؤُهُ مګر په هغه مقدار کي چي د هغه ادا نه مخکي سوې وي [يعني د ديت کوم مقدار چي مخکي اداء سوی وي نو په هغه کي دوی ټوله نه شريکان کيږي]

فَمَنْ أَحْكَمَ هٰذَا الْأَصْلَ مُتَأَمِّلًا نو څوک چي دغه اصل مضبوط کړي په تأمّل کولو سره يُمْكِنُهُ التَّخْرِيجُ فِيمَا وَرَدَ عَلَيْهِ مِنَ النَّظَائِرِ وَالْأَضْدَادِ نو د هغه لپاره به پر دغه اصل د واردېدونکو امثالو او اضدادو تخریج ممکنه وي.

**اللغات**: ﴿عِدة﴾ څه شمېر، ﴿أحكم﴾ د افعال د باب ماضي ده: (يو کار) په مضبوطي سره کول، مظبوطول، پخول، ﴿متأمّل﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: تأمّل کونکی، غور او فکر کونکی، ﴿نظائر﴾ جمع د نَظِيْرٌ ده: مثل، مشابه.

**تشریح**: مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دلته (د معاقلُ په هکله) امام محمد رَحِمَهُ الله څو مسئلې په جلا جلا توګه بیان کړي دي، لېکن که د دې ځای په اُصولو او قواعدو ځان پوه کړل سي نو په دې مسئلو او د هغوی په څېر نورو مسئلو باندي پوهېدل به ډېر آسانه وي. نو دلته مصنف رَحِمَهُ الله اصلاً څلور اُصول بیان کړي دي:

① ... اول اُصول دا دی چي که د مجرم (قاتل) په حالت کي بدلون راسي يعني د هغه حکم بدل سي، لکه د ولاء د منتقل کېدلو په صورت کي (چي هغه به لاندي ذکر سي)، نو که څه هم ولاء خو منتقل کيږي لېکن جرم (جنايت) نه منتقل کيږي؛ يعني د مجرم د حالت بدلېدلو باوجود هم د هغه په جنايت (جرم) کي هيڅ تغير او بدلون نه راځي او د مجرم پر اولي (مخکني) عاقلې باندي جنايت باقي پاتيږي، برابره ده قاضي پر هغو د ديت فيصله کړې وي، که نه وي.

مثلاً د يو بچي پلار غلام وي او د هغه مور آزاده وي، بيا هغه بچي خطاءً يو څوک قتل کړي. نو د بچي ديت به د مور عاقله اداء کوي او د بچي ولاء د هغه د مور کيږي، او که پلار آزاد کړی سي نو دا د بچي ولاء د پلار وطرف ته منتقل کيږي لېکن د بچي جنايت هغه ته نه منتقل کيږي.

② ... دويم اُصول دا دی چي که د مجرم حالت پټ او مخفي وي بيا هغه ښکاره سي، نو دلته (د حالت تر ښکاره کېدلو وروسته) جنايت پر اولي عاقلې باقي نه پاتيږي، بلکي د دويمي عاقلې وطرف ته منتقل کيږي، برابره ده قاضي پر اولي عاقلې د ديت فيصله کړې وي او که نه وي.

لکه د ملاعنه ښځي د مجرم بچي مسئله کوم چي مخکي تېره سوه چي که ملاعن پلار د لعان تکذیب وکړي او د بچي د نسب دعویٰ وکړي نو پټ حالت ښکاره سو (چي دا بچی د ملاعن پلار خپل بچی دی). نو د بچي جنایت د ملاعن پلار د عاقلې وطرف ته منتقل کیږي.

③... دریيم أصول دا دی چي که بدلون د مجرم په حالت کي نه بلکي د هغه په عاقله وو کي راغلی وي او عاقله بدل سوې وي. نو په دې صورت کي د قاضي د فیصلې (تقضاء) د وخت اعتبار کیږي. لهذا که قاضي پر اولي عاقلې د دیت فیصله کړې وي. نو پر دویمي (بدل سوي) عاقلې دیت نه واجبیږي. او که قاضي پر اولي عاقلې د دیت فیصله نه وي کړې. نو پر دویمي (بدل سوي) عاقلې دیت واجبیږي.

لکه د اهلِ کوفه او اهلِ بصره مسئله کوم چي مخکي تېره سوه چي که قاتل له اهلِ کوفه څخه وي بیا د هغه دیوان بصرې ته منتقل کړی سي. نو په دې صورت د قضاء د وخت په اعتبار کولو سره د اهل کوفه یا اهلِ بصره پر عاقله (اهلِ دیوان) باندي دیت واجبیږي.

④... وإذا كانت إلخ: څلورم أصول دا دی چي که په عاقله وو کي بدلون نه بلکي په هغو کي اضافه یا نقصان (کمي) راسي. د اضافې صورت دا دی چي په عاقله وو کي یو بچی بالغ سي. او د نقصان صورت دا دی چي له هغو څخه یو مړ سي. نو په دې صورت کي د قاضي تر فیصلې وروسته او مخکي هر وخت دوی ټوله د جنایت په حکم کي شریکان کیږي (یعني د قبل القضاء او بعد القضاء په حکم کي هیڅ فرق نه راځي بلکي په دې هر صورت کي د جنایت په حکم او د دیت په وجوب کي ټوله برابر شریکان کیږي).

ها! د دیت کوم مقدار چي اداء سوی وي، هغه له دې حکم څخه مستثنیٰ دی (هغه خو اداء سوی دی) نو د دوی سره د هغه هیڅ تعلق نه پاتیږي یعني په اداء سوي مقدار کي دوی ټوله نه شریکان کیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د معاقل په هکله دا څلور أصور دي. څوک چي په دې أصولو کي غور او ژور فکر وکړي او په دوی ځان پوه کړي، نو پر دې أصولو د متفرع کېدونکو مسئلو تحقیق او تخریج به د هغه لپاره ډېر آسانه وي او هغه به په آساني سره د دې مسئلو د نظائرو او اضدادو د حکم تخریج کولای سي.



# كِتَابُ الْوَصَايَا

(دا) کتاب د "وصيتونو" (په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله كتابُ الديات او كتابُ الجنايات بيان کړل. اوس له دې ځايه كتابُ الوصايا بيانوي. د دوی په مينځ کي وجه د مناسبت په دې توګه ده چي وصيت عموماً د مرګ په وخت کي کيږي (کله چي انسان مرګ ته نژدې سي) او جنايات هم ډېر ځله د جنايتکاره (مجرم) د مرګ ذريعه ګرځي. نو ځکه كتابُ الوصايا تر كتابُ الجنايات وروسته بيان کړی سوی دی.

**د وصية تحقيق او اصطلاحي معنیٰ**: وَصَايَا جمع د وَصِيَّةٌ ده. د "وص ی" اصل معنیٰ ده: عهد او وعده اخيستل. له همدې مادې څخه لفظ د وصيت دی. وصيت اسم د اِيْصَاء دی. او د کوم شي وصيت چي وسي (يعني موصیٰ به) پر هغه هم د وصيت اطلاق کيږي.

او د وصيت شرعي معنیٰ ده: تَمْلِيْكٌ مُضَافٌ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ بِطَرِيْقِ التَّبَرُّعِ. يعني د تبرّع او احسان په توګه يو څوک تر خپل مرګ وروسته د يو شي مالک جوړول (يا له يو شي څخه د نفع اخيستلو مالک جوړول).

دلته څو الفاظ ياد ساتل پکار دي:

① **مُوْصِيْ**: وصيت کونکی کس، ② **مُوْصیٰ لَهٗ**: د چا لپاره چي وصيت وسي،

③ **مُوْصیٰ بِهٖ**: د کوم شي وصيت چي وسي (وصيت کړی سوی شی).

د وصيت حکم دا دی چي د چا لپاره وصيت سوی وي (يعني مُوصیٰ لهٗ) هغه د ملک جديد په توګه د وصيت کړی سوی شی (يعني د مُوصیٰ به) مالک کيږي. (بنايه ۱۲ /۴۸۴)

**د وصيت شرائط**: ① مُوصِي (وصيت کونکی کس) به د تبرّع او احسان کولو اهل وي. يو چا ته به شی تبرعاً ورکولای سي. ② مُوصِي به مقروض نه وي. ③ د وصيت کولو په وخت کي به موصیٰ لهٗ ژوندی وي. که څه هم هغه د مور په نس کي وي (يعني د جنين لپاره هم د يو شي وصيت کول جائز دي) په دې شرط چي د وصيت په وخت کي هغه يقيناً په نس کي موجود وي يعني چي د وصيت له وخت څخه په شپږو مياشتو کي دننه پيدا سي. ④ مُوصیٰ لهٗ به د مُوصِي وارث نه وي. ⑤ مُوصیٰ لهٗ به د مُوصِي قاتل نه وي. ⑥ مُوصیٰ به شی به د تمليک قابل وي. ⑦ د ميراث له ثلث (درېيمي حصې) څخه به د زيات مقدار وصيت نه وي.

# بَابٌ فِي صِفَةِ الْوَصِيَّةِ

## مَا يَجُوْزُ مِنْ ذٰلِكَ وَمَا يُسْتَحَبُّ مِنْهُ وَمَا يَكُوْنُ رُجُوْعًا عَنْهُ

دا باب د وصيت د صفت په بيان کې دی. يعني د جائز وصيت. مستحب وصيت او له وصيت څخه د رجوع کولو په بيان کې دی

### د وصيت شرعي حيثيت او دليل

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي الْوَصِيَّةُ غَيْرُ وَاجِبَةٍ وَهِيَ مُسْتَحَبَّةٌ وصيت واجب نه دی او هغه مستحب دی وَالْقِيَاسُ يَأْبِي جَوَازَهَا او قياس د هغه د جواز انکار کوي لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ مُضَافٌ إِلَى حَالِ زَوَالِ مَالِكِيَّتِهِ ځکه وصيت داسې تمليک دی کوم چې د هغه د مالک والي [ملکيت] د زايلېدلو حالت ته منسوب دی وَلَوْ أُضِيفَ إِلَى حَالِ قِيَامِهَا او که دا تمليک د مالکيت د قايموالي [موجودوالي] حالت ته منسوب کړی سي بِأَنْ قِيلَ: مَلَّكْتُكَ غَدًا په دې توګه چې وويل سي: ما ته سبا مالک جوړ کړې كَانَ بَاطِلًا نو دا باطل دي فَهٰذَا أَوْلَى نو ځکه [دوصيت] دا صورت به په درجه اولیٰ [باطل] وي إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّاهُ لېکن موږ د استحسان پر بناء وصيت جائز ګرځولی دی لِحَاجَةِ النَّاسِ إِلَيْهَا ځکه چې وصيت ته د خلکو ضرورت دی فَإِنَّ الْإِنْسَانَ مَغْرُوْرٌ بِأَمَلِهِ مُقَصِّرٌ فِي عَمَلِهِ ځکه انسان [په خپل ژوند کې] د خپل اُميد په وجه دوکه کړی سوی وي [او] په خپل عمل کې کوتاهي کونکی وي فَإِذَا عَرَضَ لَهُ الْمَرَضُ وَخَافَ الْبَيَاتَ نو کله چې ده ته مرض پېښ سي او دئ له هلاکت [مرګ] څخه وېرېږي يَحْتَاجُ إِلَى تَلَافِيْ بَعْضِ مَا فَرَطَ مِنْهُ مِنَ التَّفْرِيْطِ بِمَالِهِ نو دئ د خپل مال په ذريعه د هغه کوتاهي [اولا پروايي] تدارک ته محتاج سي کوم چې له ده څخه مخکې سوې وي عَلَى وَجْهٍ لَوْ مَضَى فِيْهِ په دې توګه چې که هغه په دې مرض کې ولاړ سي [مر سي] يَتَحَقَّقُ مَقْصَدُهُ الْمَآلُ نو د هغه اُخروي مقصد به ثابت [او پوره] سي وَلَوْ أَنْهَضَهُ الْبُرْءُ او که روغتيا هغه پاسوي [يعني روغ او جوړ

سي] يَصْرِفُهُ إِلَىٰ مَطْلَبِهِ الْحَالِيِّ نو هغه به دا مال په دنياوي مقصد كي صرف كړي وَفِي شَرْعِ الْوَصِيَّةِ ذٰلِكَ او د وصيت په مشروع کولو کي دا مقصد حاصليږي فَشَرَعْنَاهُ نو ځکه موږ هغه مشروع [په شريعت كي نافذ او روا] ګرځولی دی وَمِثْلُهُ فِي الْإِجَارَةِ بَيَّنَّاهُ او د همدې مثل په موږ په اجازه كي بيان كړي دي.

**اللغات:** ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: (ديو شي) مالک کول، مالک جوړول. ﴿مغرور﴾ د ضرب د باب مفعول دی: دوکه کړی سوی، چا ته چي دوکه ورکول سوې وي. ﴿تلافي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: د فوت سوي شي د نقصان عوض ورکول، جبران، د نقصان بدله ورکول. ﴿فَرَطَ﴾ د نصر د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي: مخکي کېدل، کوتاهي کول، له حد څخه تېرېدل، تېزي کول او تکليف ورکول وغيره، او کله چي يې په صله کي مِنْ ذکر سي لکه دلته، نو معنیٰ يې ده: له چا څخه مخکي يو کوتاهي او لا پروايي کېدل، بغير له سوچ او احساسه څه څني صادرېدل. ﴿تفريط﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، د دې باب هم څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: کوتاهي کول، التفريط (کوتاهي او کمي). ﴿مقصد﴾ بفتح الصاد د ضرب د باب مصدرِ ميمي دی په معنیٰ سره د قصد کولو او بکسر الصاد اسمِ مکان دی په معنیٰ سره ځای د قصد. ﴿برء﴾ روغتيا، صحت، جوړښت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي وصيت واجب او ضروري نه دی چي پر قريبُ الموت کس دي وصيت کول لازم وي، بلکي شريعت هغه ته د استحباب درجه ورکړې ده چي د انسان لپاره وصيت کول مستحب دي، لېکن د قياس په اعتبار سره وصيت جائز نه دی؛ د قياس دليل دا دی چي په وصيت کي د مُوصیٰ لهٗ لپاره په داسي حالت کي ملکيت ثابتول کيږي په کوم حالت کي چي له مُوصي څخه د تمليک (مالک جوړولو) صفت فوت سوی وي (يعني هغه د دې اهل نه وي چي څوک د خپل شي مالک جوړ کړي او په ملکيت کي يې ورکړي) ځکه تر مرګ وروسته د مُوصي ملکيت ختميږي، حال دا چي اهل کېدل شرط دي چي موصي به د تمليک او تبرّع کولو اهل وي، نو ځکه د ما بعد الموت وطرف ته منسوب کېدونکی وصيت باطل دی. او ښکاره خبره دا ده چي که يو کس بل چا ته ووايي چي ته! ما سبا د فلانکي شي مالک جوړ کړې (تا ته مي سبا خپل دا شی په ملکيت کي درکړی) نو دا تمليک هم باطل دی، حال دا چي په سبا کي هم پر هغه شي د دې کس ملکيت باقي دی (يعني سبا هم هغه د دې شي

مالک دی). نو کله چې ما بعد الیوم والا تملیک باطل دی. نو ما بعد الموت والا تملیک به په درجه اولیٰ باطل وي.

إلا أنا استحسنا إلخ: خو د خلکو د ضرورت په خاطر د وصیت په مسئله کې مورږ قیاس پرې ایښی دی او بناء بر استحسان مو وصیت جائز ګرځولی دی. او وصیت ته د خلکو ضرورت او حاجت په دې توګه دی چې په دنیا کې انسان په ډېرو اُمیدونو او آرزوګانو کې راګیر وي او د هغوی د پوره کولو په وجه ډېر ځله غلطي او کوتاهي ځني صادره سي او ده ته احساس هم نه وي. لیکن په مرض یا بوډاتوب کې د مرګ پر بستره انسان ته د مخکني غلطۍ احساس وسي او دیٔ د خپلي ماضي پر غلطۍ او کمۍ پښېماني وکړي او د هغه تلافي کول وغواړي او د هغه لپاره انسان د خپل مال درېیمه حصه وغیره د الله ﷻ په لار کې خرچول غواړي. یا یې خپلو قریبانو او نورو ته ورکول غواړي او دا خیال کوي چې که زه په دې مرض کې مړ سوم نو هغه به مې د آخرت په بنه راسي او که جوړ سوم نو دا مال به فی الحاله په صحیح مصرف او مطلب کې صرف کړم. لو د انسان د غلطیو د تلافۍ او تدارک آسانه لار ه وصیت ده او په وصیت کې هم دغسې کیږي، نو ځکه شریعت وصیت جائز ګرځولی دی.

## د قیاس جواب او په قرآن او حدیث سره د وصیت ثبوت

وَقَدْ تَبْقَى الْمَالِكِيَّةُ بَعْدَ الْمَوْتِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ او مالک والی [ملکیت] تر مرګ وروسته هم د ضرورت په اعتبار سره باقي پاتېږي كَمَا فِي قَدْرِ التَّجْهِيزِ وَالدَّيْنِ لکه د تجهیز [کفن دفن] او د قرض مقدار وَقَدْ نَطَقَ بِهِ الْكِتَابُ او کتاب الله د وصیت په جواز [جائز کیدلو] سره ګویا دی وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾ [النساء: ۱۲] او هغه د الله تعالیٰ دا فرمان دی: ﴿من بعد وصیة إلخ﴾ وَالسُّنَّةُ او سنت [هم د هغه په جواز سره ګویا دی] وَهُوَ قَوْلُ النَّبِيِّ ﷺ [1] او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی «إِنَّ اللهَ تَعَالَى تَصَدَّقَ عَلَيْكُمْ بِثُلُثِ أَمْوَالِكُمْ فِي آخِرِ أَعْمَارِكُمْ الله تعالیٰ پر تاسو په آخري عمرونو کې ستاسې د مالونو درېیمه حصه صدقه کړې ده زِيَادَةً لَكُمْ فِي أَعْمَالِكُمْ تَضَعُونَهَا حَيْثُ شِئْتُمْ» ستاسې په اعمالو کې د زیاتوب [اضافې] په غرض سره چې تاسې هغه [مالونه] ولګوئ

---

[1] تخریج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الوصايا، باب الوصية بالثلث، حديث رقم: ۲۷۰۹.

چیري چي ستاسي خوښه وي أَوْ قَالَ: «حَيْثُ أَحْبَبْتُمْ» او یا نبي ﷺ فرمایلي دي: چیري چي تاسي وغواړئ [یعني په یوه روایت کي د "شئتم" پر ځای "أحببتم" ذکر سوي دي] وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ او د وصیت پر جواز اجماع [هم] منعقد سوی ده ثُمَّ تَصِحُّ لِلْأَجْنَبِيِّ فِي الثُّلُثِ مِنْ غَيْرِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ بیا د اجنبي لپاره د مال په دریمه حصه کي د وارثانو له اجازې څخه بغیر وصیت صحیح کیږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي [اوس] موږ روایت کړی وَسَنُبَيِّنُ مَا هُوَ الْأَفْضَلُ فِيهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او موږ به په وصیت کي افضله طریقه انْ شاء الله تعالیٰ ژر بیان کړو.

**اللغات**: ﴿التجهیز﴾ د تفعیل د باب مصدر دی. د دې باب خپله معنیٰ ده: یو شی تیارول. چمتو کول. تجهیز المیت: مړي د ښخولو لپاره تیارول (یعني غسل او کفن ورکول). قدر التجهیز: مراد څني د غسل کفن او دفن خرچ دی (شرح). ﴿أحببتم﴾ د افعال له باب څخه د جمع مذکر مخاطب صیغه ده: محبت او مینه کول. رغبت کول.

**تشریح**: په مخکنۍ مسئله کي چي د قیاس په دلیل کي دا ویل سوي دي چي تر مرګ وروسته د موصي (مړي) ملکیت ختمیږي. دا موږ نه تسلیموو، ځکه تر مرګ وروسته د کفن دفن خرچ او قرض دا تر ټولو مخکي د مړي له مال څخه اداء کول کیږي. نو که چیري د مړي ملکیت ختمېدای او باقي نه پاتېدای. نو دا أمور به هم د هغه په مال سره نه ترسره کېدلای. لهذا څرنګه چي د دې أمورو په ترسره کولو کي د مړي ملکیت باقي پاتیږي. همداسي به د مړي د وصیت په جواز او نافذولو کي هم د هغه ملکیت باقي شمېرل کیږي او د هغه وصیت به جائز او صحیح وي.

له دې څخه علاوه د وصیت د جواز بل واضح دلیل په قرآن او حدیث سره د هغه ثابتېدل دي. په قرآن کریم کي د هغه دلیل دا آیت دی: ﴿فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ﴾.

همدارنګه په حدیث سره د وصیت د جواز دلیل دا دی چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: "إن الله تصدق علیکم بثلث أموالکم في آخر أعمارکم زیادةً لکم في أعمالکم تضعونها حیث شئتم" (یعني الله تعالیٰ پر تاسو په آخري عمرونو کي ستاسي د مالونو دریمه حصې صدقه کړې ده. د دې لپاره چي د دې مالونو په برکت ستاسي په اعمالو کي اضافه وسي او چي تاسو چیري وغواړئ دا مالونه خرچ کړئ!). او په آخري عمر کي د دریمي حصې (ثلث المال) وصیت کول کیږي. له دې څخه معلومه سوه چي د وصیت جواز

په شریعت کي موجود او ثابت دی. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي په یوه روایت کي د "حیث شئتم" پر ځای "حیث أحببتم" ذکر سوي دي.

او بل د وصیت پر جواز د اُمت اجماع هم ده. لهذا کله چي په کتابُ الله او په سنت رسول الله او په اجماع ټولو سره د وصیت جواز ثابت دی. نو بیا که قیاس زر ځله د هغه انکار وکړي، په هر صورت کي به هغه ثابت او جائز پاتیږي.

ثم تصح إلخ: د دې حاصل دا دی چي د مال په درېیمه حصه (ثلث المال) کي د وصیت کولو لپاره د وارثانو اجازه پکار نه ده بلکي له څه اجازې بغیر دا وصیت جائز دی، په دې شرط کله چي وصیت د وارث لپاره نه وي. بلکي د اجنبي کس لپاره وي.

**فایده:** وصیت پر څلور قسمه دی:

①... واجب وصیت، لکه د خپل زکاة او کفاراتو د اداء کولو په حق کي وصیت کول.

②... مکروه وصیت، لکه د فاسق و فاجر لپاره وصیت کول.

③... مباح وصیت، لکه د مالدار لپاره وصیت کول.

④... او له پورتني قسمونو څخه بغیر په نورو کي که څه مُبطِل عارض نه وي، نو وصیت مستحب دی. د تفصیل لپاره وګورئ! (شامي ج: ۵، ص: ۴۱۵)

## د وصیت حدّ (مړ کېدونکی کس د یو چا لپاره د خپل څومره مال وصیت کولای سي؟)

قَالَ: وَلَا تَجُوْزُ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ فرمایي: او وصیت جائز نه دی په هغه مقدار سره کوم چي تر درېیمه حصه زیات وي لِقَوْلِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] فِيْ حَدِيْثِ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ رضی الله عنه ځکه نبي کریم ﷺ د سعد بني ابي ووقاص رضی الله عنه په حدیث کي فرمایلي دي «اَلثُّلُثَ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ» درېیمه حصه [یعني ته د مال د درېیمي حصې وصیت وکړه!] او درېیمه حصه [هم] زیاته ده بَعْدَ مَا نَفٰى وَصِيَّتَهُ بِالْكُلِّ وَالنِّصْفِ [دا یې وفرمایل] وروسته تر دې چي نبي ﷺ د ټوله مال او نیم مال د وصیت نفي وکړې وَلِأَنَّهُ حَقُّ الْوَرَثَةِ او ځکه چي [د مورث] مال د وارثانو حق دی وَهٰذَا لِأَنَّهُ انْعَقَدَ سَبَبُ الزَّوَالِ إِلَيْهِمْ او دا ځکه چي د زوال سبب د وارثانو طرف ته منعقد سوی دی وَهُوَ اسْتِغْنَاؤُهُ عَنِ الْمَالِ او هغه

[سبب] له مال څخه د مورث [موصي] مستغني کېدل دي فَأَوْجَبَ تَعَلُّقَ حَقِّهِمْ بِهِ لهذا دا [د مورث مستغني کېدل] به د دې مال سره د هغو د حق متعلق کېدل ثابت کړي إِلَّا أَنَّ الشَّرْعَ لَمْ يُظْهِرْهُ فِيْ حَقِّ الْأَجَانِبِ بِقَدْرِ الثُّلُثِ لېکن شريعت د دريمي حصې په مقدار کې داجنبي کسانو په حق کې دا استغناء نه ده ښکاره کړې لِيَتَدَارَكَ تَقْصِيْرَهُ د دې لپاره چې موصي د هغه خپل کوتاهي [او لا پروايي] تلافي وکړی سي عَلٰی مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې [مخکې] موږ بيان کړه وَأَظْهَرَهُ فِيْ حَقِّ الْوَرَثَةِ او شريعت د وارثانو په حق کې [په دې وجه] دا استغناء ښکاره کړې ده لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ لَا يَتَصَدَّقُ بِهِ عَلَيْهِمْ تَحَرُّزًا عَمَّا يَتَّفِقُ مِنَ الْإِيْثَارِ ځکه ښکاره همدا ده چې مورث [موصي] به پر خپلو وارثانو د مال دريمه حصه نه صدقه کوي له هغه ايثار [ترجيح ورکولو] څخه د بچ کېدلو په خاطر کوم چې اتفاقاً واقع کېږي [ځکه که هغه پريوه وارث د مال دريمه حصه صدقه کړي نو دغه وارث ته پر نورو وارثانو ترجيح ورکول لازميږي او دا د هغو د خوربدلو سبب ګرځي] عَلٰی مَا نُبَيِّنُهُ د هغه تفصيل مطابق چې موږ به يې [څه وروسته] بيان کړو [په دې الفاظو سره: ولأنه يتأذى البعض بإيثار البعض، ففي تجويزه قطيعة الرحم] وَقَدْ جَاءَ فِي الْحَدِيْثِ او په حديث کې راغلي دي «الْحَيْفُ ❷ فِي الْوَصِيَّةِ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ» چې په وصيت کې ظلم کول له لويو [سترو] ګناهونو څخه لويه ګناه ده وَفَسَّرُوْهُ بِالزِّيَادَةِ عَلَى الثُّلُثِ وَبِالْوَصِيَّةِ لِلْوَارِثِ او فقهاؤ د حيف تفسير پر ثلث په زياتوب کولو او د وارث لپاره په وصيت کولو سره کړی دی [يعني حيف دا دی چې انسان د خپل مال له دريمي حصې څخه د زيات مقدار وصيت وکړي يا د خپل وارث لپاره وصيت وکړي].

**اللغات**: ﴿ثلث﴾ دريمه حصه. ﴿إيثار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ترجيح ورکول. ﴿استغناء﴾ مستغني کېدل (يو شي ته احتياج نه لرل)، مالداري غوښتل. ﴿حَيف﴾ (بفتح الحاء) ظلم، نا انصافي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې مورث او مړ کېدونکی کس له خپل مال څخه صرف د دريمي حصې وصيت کولای سي او هغه ته دا جائز نه دي چې د خپل مال له دريمي حصې څخه د زيات مقدار وصيت وکړي؛ په دې هکله دليل د حضرت سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه دا حديث دی: "قلتُ يا رسول الله (صلى الله عليه وسلم)! إن لي مالًا كثيرًا وإنما ترثني ابنتي أفأوصي بمالي كله. قال لا. قال فالثلثين. قال لا. قال فبالثلث. قال الثلث والثلث كثير إلخ" يعني حضرت سعد رضي الله عنه فرمايي چې ما

---

❷ تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، كتاب الوصايا، حديث رقم: ۱۲۵۸۶، ۱۲۵۸۷.

رسول الله ﷺ ته وویل: زما سره ډېر مال دی او صرف زما یوه لور زما وارثه (میراث خوره) ده. نو آیا زه د خپل ټوله مال وصیت وکړم. لنډه دا چي نبي کریم ﷺ په آخر کي ورته وفرمایل چي ته د خپل مال د درېیمي حصې وصیت کولای سې او درېیمه حصه زیاته ده. له دې ځخه معلومه سوه چي مورث صرف د مال د درېیمي حصې وصیت کولای سي او له هغه ځخه د زیات مقدار وصیت نه سي کولای. ځکه نبي کریم ﷺ د حضرت سعد رضی الله عنه په حق کي د ټوله مال او دوو ثلثو او د نصف مال د وصیت نفي کړي دي.

لأنه حق الورثة إلخ: له درېیمي حصې ځخه د زائد مقدار د وصیت نه جائز کېدلو عقلي دلیل دا دی چي کله مورث او موصي مرګ ته نژدې سي نو د هغه د مال سره د وارثانو حق متعلق کیږي او مُوصي له مال ځخه مستغني کیږي او د دې استغنا تقاضا دا ده چي د ده په مال کي په هیڅ مقدار سره هم د ده وصیت جائز نه سي او د هر مقدار په حق کي دا استغناء ښکاره سي. خو ځرنګه چي شریعت دا جانبو په حق کي په ثلث المال کي دا استغناء نه ده ښکاره کړې د دې لپاره چي مورث د هغه په ذریعه د خپلي غلطۍ او کمۍ تلافي وکړی سي. نو ځکه په ثلث کي خو هغه ته د وصیت اجازه ورکول کیږي او له هغه ځخه بغیر د نورو اجازه نه ورکول کیږي. نو ځکه نه له ثلث المال ځخه د زائد مقدار وصیت جائز دی او نه د خپل وارث لپاره وصیت جائز دی؛ ځکه که د وارث لپاره وصیت جائز وګرځول سي نو پاته وارثانو ته تکیف ورکول لازمیږي همدارنګه د هغوی دل آزاري او قطع رحمي لازمیږي. حال دا چي قطع رحمي جائز نه ده.

وقد جاء في الحديث إلخ: فرمايي چي له ثلث المال ځخه د زائد مقدار د وصیت نه جائز کېدلو او د وارث لپاره د هغه نه جائز کېدلو دلیل دا حدیث هم دی "الحیف في الوصیة من أکبر الکبائر" یعني په وصیت کي ظلم کول له کبیره ګناهونو ځخه یوه ګناه او د کبائرو په فهرس کي داخله ده. او په وصیت کي ظلم همدا دی چي انسان دیو چا لپاره د خپل مال له درېیمي حصې ځخه د زائد وصیت وکړي یا د وارث لپاره وصیت وکړي.

## له درېیمي حصې ځخه د زیات مقدار وصیت د وارثانو پر اجازه موقوف دی

قَالَ: إِلَّا أَنْ يُجِيزَهَا الْوَرَثَةُ بَعْدَ مَوْتِهِ وَهُمْ كِبَارٌ فرمايي: مګر دا چي وارثان د مورث [موصي] تر مرګ وروسته د هغه [له ثلث ځخه د زیات مقدار] اجازه ورکړي حال دا چي هغوی لویان [بالغان] وي لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ ځکه [د وصیت] ممتنع کول د وارثانو د حق په وجه دي وَهُمْ أَسْقَطُوهُ او دوی [په اجازه سره] خپل حق ساقط کړی.

اللغات: ﴿يجيز﴾ د افعال د باب مضارع ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول، نافذول.

**تشریح**: **مسئله:** دا ده چي د مورث لپاره دا جائز نه دي چي د خپل مال له دریمي حصې څخه د زائد مقدار وصیت وکړي. لیکن که هغه داسي وکړي او بیا تر مرګ وروسته د هغه وارثان د وصیت اجازه ورکړي او په هغه راضي سي او وارثان بالغان وي. نو بیا جائز دي. ځکه په زائد مقدار کي د وصیت ممتنع کېدل د وارثانو د حق په وجه وه او وارثانو په اجازه ورکولو او راضي کېدلو سره خپل حق ساقط کړی. نو ځکه اوس د وصیت په جواز کي هیڅ شبهه نسته.

## له دریمي حصې څخه په زیات مقدار کي د وارثانو د اجازې وخت او تفصیل

وَلَا مُعْتَبَرَ بِإِجَازَتِهِمْ فِيْ حَالِ حَيَاتِهِ او د مورث [موصي] په ژوند کي د وارثانو اجازې لره اعتبار نسته لِأَنَّهَا قَبْلَ ثُبُوْتِ الْحَقِّ ځکه هغه [د موصي په ژوند کي اجازه] له حق ثابتېدلو څخه مخکي [اجازه] ده إِذِ الْحَقُّ يَثْبُتُ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه [د وارثانو] حق [د موصي] د مرګ په وخت کي ثابتیږي فَكَانَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوْهُ بَعْدَ وَفَاتِهِ نو ځکه وارثانو ته به دا حق وي چي د مورث [موصي] تر مرګ وروسته دا اجازه رد کړي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ په خلاف تر مرګ وروسته د اجازې لِأَنَّهُ بَعْدَ ثُبُوْتِ الْحَقِّ ځکه دا اجازه له حق ثابتېدلو څخه وروسته [اجازه] ده فَلَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَرْجِعُوْا عَنْهُ نو ځکه وارثانو ته به له هغه څخه د رجوع کولو حق نه وي لِأَنَّ السَّاقِطَ مُتَلَاشٍ ځکه ساقط سوی شی معدوم دی غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّهُ يَسْتَنِدُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ آخراً دا [سوال کېدلای سي] چي د وارثانو حق د اجازې په وخت کي مستند کیږي [یعني د هغو حق د موصي د مرضُ الموت وخت ته مستند او منسوب کیږي او د استناد په ګوته د قبل الموت والا اجازې په وخت کي ثابتیږي] لٰكِنَّ الْاِسْتِنَادَ يَظْهَرُ فِيْ حَقِّ الْقَائِمِ لیکن [جواب دا دی چي] استناد د موجود شي په حق کي ښکاره کیږي وَهٰذَا قَدْ مَضٰى وَتَلَاشٰى او دا [قبل الموت اجازه] خو تېره سوې او معدوم سوې ده وَلِأَنَّ الْحَقِيْقَةَ تَثْبُتُ عِنْدَ الْمَوْتِ او ځکه چي حقیقت [ملک حقیقي] د مرګ په وخت کي ثابتیږي وَقَبْلَهُ يَثْبُتُ مُجَرَّدُ الْحَقِّ او تر مرګ مخکي محض حق [حقِ ملک] ثابتیږي فَلَوِ اسْتَنَدَ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو که په هر اعتبار سره استناد ثابت سي يَنْقَلِبُ حَقِيْقَةً قَبْلَهُ نو دا حق [حقِ ملک] به تر مرګ مخکي په حقیقت [ملکِ حقیقي] سره بدل سي وَالرِّضَا بِبُطْلَانِ الْحَقِّ لَا يَكُوْنُ رِضًا بِبُطْلَانِ الْحَقِيْقَةِ او د حق په باطلېدلو راضي کېدل د حقیقیت [ملک حقیقي] په باطلېدلو راضي کېدل نه دي.

**اللغات**: ﴿متلاش﴾ د تفاعل د باب فاعل دی: لا شی، ختم او معدوم، ﴿غایة الأمر﴾ انتهائي امر، آخري خبره (یعني په آخر کي کم از کم دا خبره او اعتراض کېدای سي). ﴿یستند﴾ د استفعال د باب مضارع ده، اِسْتَنَدَ یَسْتَنِدُ اِسْتِنَادًا: (د یو شي او یو حالت وطرف ته) تکیه کول، منسوب کېدل، استصحاب الحال المتأخر إلى الزمن المتقدم. ﴿ینقلب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: اوښتل، بدلېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د مال له درېیمي حصې څخه په زائد مقدار کي د وارثانو اجازه په هغه صورت کي معتبره او جائز ده کله چي دوی د مورث تر مرګ وروسته دا اجازه ورکړې وي. لېکن که وارثانو د مورث په ژوند کي اجازه ورکړې وي. نو بیا د دوی اجازې لره اعتبار نسته: ځکه د مورث په مال کي د دوی حق د مورث تر مرګ وروسته ثابتیږي نو د مرګ له وخت څخه مخکي اجازه ورکول له حق ثابتېدلو څخه مخکي اجازه ورکول دي. نو ځکه له قبل الموت والا اجازې څخه وارثانو ته د رجوع کولو حق سته. او له بعد الموت والا اجازې څخه وارثانو ته د رجوع کولو حق نسته: ځکه تر مرګ وروسته د مورث د مال سره د وارثانو حق متعلق سوی دی او اوس هغو خپل حق په اجازه ورکولو سره ساقط کړی دی او ساقط سوی شی معدوم ګرځي، نو ځکه له هغه څخه به د رجوع کولو حق ورته نه وي.

غایة الأمر إلخ: دا د یو مُقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي څرنګه بعد الموت والا اجازه معتبره ده، همداسي قبل الموت والا اجازه هم معتبره کېدل پکار دي او وارثانو ته له هغه څخه هم د رجوع حق نه حاصلېدل پکار دي: ځکه د مورث (موصي میت) په مال کي چي وارثانو ته کوم حق حاصل دی هغه د مورث د مرض الموت له وخت څخه ورته حاصل دی او هغه وخت ته مستند (منسوب) دی. نو کله چي د استناد په توګه د وارثانو د اجازې په وخت کي (قبل الموت) د وارثانو حق ثابت دی. نو بیا د دوی اجازه معتبره کېده پکار دي.

د جواب حاصل دا دی چي که څه هم د وارثانو حق د مورث (موصي) د مرض له وخت څخه د هغه د مال سره متعلق کیږي لېکن یو خو هغو ته د تصرف اختیار نسته او دویم دا چي د استناد لپاره د هغه شي بقاء او موجود والی ضروري دی کوم چي د استناد په توګه ثابتول کیږي او هغه اجازه ده، حال دا چي کومه اجازه قبل الموت ورکول سوې وه، اوس هغه باقي او قایمه نه ده (یا په بله وینا دا چي استناد په موجود حق کي ښکاره کیږي او قبل الموت والا اجازه تر مرګ وروسته ختم او معدوم سوې ده لهذا په هغه کي به استناد نه ښکاره کیږي)، نو ځکه دا اجازه د استناد په طریقه سره هم نه سي ثابتېدلای.

ولأن الحقیقة إلخ: دویم جواب او دلیل دا دی چي د مورث تر مرګ مخکي د وارثانو لپاره صرف حق ملک (د ملکیت حق) ثابتیږي او پاته سو ملک حقیقي (حقیقي ملکیت) نو هغه د مورث د مرګ په

وخت کي ثابتيږي. اوس که تاسي د استناد په توګه د مورث تر مرګ مخکي اجازه ثابته کړئ، نو د دې مطلب به دا وي چي د مورث تر مرګ مخکي دي حق ملک په ملک حقيقي سره بدل سي (يا په بله وينا دا چي تر مرګ مخکي د استناد په توګه که اجازه ثابته کړی سي. نو بعد الموت ثابتېدونکی شی به قبل الموت ثابت سي او حق ملک به په ملک حقيقي سره بدلېدل لازم سي) حالانکي دا باطل دي.

والرضا ببطلان الحق إلخ: دا په اصل کي د دې سوال جواب دی چي اجازه ورکول د وارثانو د خپل حق په ساقطولو راضي کېدل دي نو دا داسي سو لکه نور إسقاطات او په هغوی کي د رجوع حق نسته، نو ځکه په قبل الموت والا اجازه کي هم وارثانو ته د رجوع حق نه حاصلېدل پکار دي؟ (عنايه). د جواب حاصل دا دی چي د مورث تر مرګ مخکي په اجازه ورکولو سره وارثان صرف د حق ملک په باطلولو راضي سوي دي، نه د ملک حقيقي، او د حق ملک بطلان د ملک حقيقي بطلان لره مستلزم نه دی (يعني د حق ملک په باطلېدلو سره ملک حقيقي نه باطليږي)، او کله چي ملک حقيقي نه دی باطل سوی، نو ځکه هغو ته به د رجوع حق حاصل وي.

## د وارث لپاره د وصيت کولو شرعي حيثيت او تفصيل

وَكَذَا إِنْ كَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَارِثِ او همدارنګه که وصيت د وارث لپاره وي وَأَجَازَهُ الْبَقِيَّةُ او پاته وارثان اجازه وکړي فَحُكْمُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ نو د دې حکم هاغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَكُلُّ مَا جَازَ بِإِجَازَةِ الْوَارِثِ او هر هغه تصرف کوم چي د وارث په اجازه سره جائز سي يَتَمَلَّكُهُ الْمُجَازُ لَهُ مِنْ قِبَلِ الْمُوصِي عِنْدَنَا نو زموږ په نېز مجاز لهٔ [موصیٰ لهٔ] د موصي له طرفه د هغه مالک کيږي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ مِنْ قِبَلِ الْوَارِثِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د وارث له طرفه وَالصَّحِيحُ قَوْلُنَا او صحيح زموږ قول دی لِأَنَّ السَّبَبَ صَدَرَ مِنَ الْمُوصِي ځکه چي سبب د موصي له طرفه صادر سوی دی وَالْإِجَازَةُ رَفْعُ الْمَانِعِ او اجازه خو د مانع ليري کول دي وَلَيْسَ مِنْ شَرْطِهِ الْقَبْضُ او د هغه [رفع المانع] شرط قبضه نه ده وَصَارَ كَالْمُرْتَهِنِ إِذَا أَجَازَ بَيْعَ الرَّاهِنِ او دا داسي سو لکه مرتهن کله چي هغه د راهن د بيع اجازه ورکړي.

**اللغات:** ﴿يتملّك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مالک کېدل. مالک جوړېدل. ﴿مُجاز لهٔ﴾ د افعال د باب مفعول دی: د چا لپاره چي اجازه ورکول سوې وي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که مورث دیو وارث لپاره وصیت وکړي او پاتـه وارثان اجازه ورکړي او په هغه راضي سي. نو هم مخکینی حکم دی. یعني د هغو اجازه د مورث (موصي) تر مرګ وروسته معتبره ده. نه مخکې.

اوس دلته سوال دا دی چې موصیٰ لهٗ (مجاز لهٗ) کوم چې د موصیٰ بهٖ (وصیت کړی سوي مال) مالک سوی دی آیا هغه د مُوصِی له طرفه د دې مالک جوړیږي او که د وارث له طرفه؟. نو فرمایي چې هر هغه شی کوم چې د وارث په اجازه سره جائز کیږي. په هغه کې زموږ په نیز حکم دا دی چې موصیٰ لهٗ (مجاز لهٗ) د مُوصِي له طرفه د هغه مالک کیږي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز موصیٰ لهٗ د وارث له طرفه د هغه مالک کیږي. د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې د مورث په نفس مرګ سره وارث د دوه ثلثه مال مالک کیږي نو د مال ملکیت د وارث لپاره ثابتیږي او د وارث په ردولو سره ملکیت نه ردیږي، نو د وارث اجازه ورکول به بلا عوضه له خپل ملکیت څخه د مال ایستل وي (فیکون إجازته یکون إخراجاً عن ملکه بغیر عوض) او دا هبه ده چې د هغه لپاره قبضه شرط ده (ځکه هبه په قبضه سره پوره کیږي) چې مال به یې په قبضه او ملکیت کې وي.

لېکن صحیح قول زموږ دی چې موصیٰ لهٗ د موصي له طرفه د موصیٰ بهٖ مالک کیږي: زموږ دلیل دا دی چې د ملکیت سبب (یعني وصیت) د موصي له طرفه صادر سوی دی (ځکه وصیت هغه کړی دی)، نو ځکه د موصیٰ لهٗ ملکیت به هم د موصي له طرفه ثابتیږي.

والإجازة رفع المانع إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله اجازه له ملکیت څخه إخراج ګرځولی دی (چې د وارث اجازه ورکول بلا عوضه له خپل ملکیت څخه د مال ایستل دي او دا هبه ده)، نو د دې په جواب کې فرمایي چې اجازه له ملکیت څخه د وتلو سبب نه ده، بلکې هغه د مانع رفع کول (د بندیز لیري کول) دي، او د هغه لپاره قبضه شرط نه ده.

لهذا دا خبره ثابت سوه چې د موصیٰ لهٗ ملکیت د موصِي له طرفه ثابتیږي او هغه د موصِي له طرفه مالک کیږي.

او د دې مثال داسې دی لکه راهن چې مرهون شی خرڅ کړي او مرتهن د دې بیع اجازه ورکړي. نو بیع د راهن له طرفه ثابتیږي، نه د مرتهن له طرفه. یعني د مشتري ملکیت د راهن له طرفه ثابتیږي (فإجازة المرتهن رفع المانع).

## د قاتل لپاره د وصیت کولو حکم

قَالَ: وَلَا تَجُوْزُ لِلْقَاتِلِ او د قتل کونکي لپاره وصیت جائز نه دی عَامِدًا كَانَ أَوْ خَاطِئًا برابره ده هغه عمداً قتل کونکی وي او که خطاءً بَعْدَ أَنْ كَانَ مُبَاشِرًا وروسته تر دي چي هغه مباشر [خپله قتل کونکی] وي [او د قتل مُسبب نه وي] لِقَوْلِهِ الْعَلَيْقَلَا[1]: «لَا وَصِيَّةَ لِلْقَاتِلِ» د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: چي د قاتل لپاره وصیت نسته وَلِأَنَّهُ اسْتَعْجَلَ مَا أَخَّرَهُ اللهُ تَعَالَىٰ او ځکه چي قاتل د هغه شي ترلاسه کول ژر غوښتي دي [تلوار یې پکښي کړی دی] کوم چي الله تعالیٰ وروسته کړی دی فَيُحْرَمُ الْوَصِيَّةَ نو ځکه له وصیت څخه به محرومول کیږي كَمَا يُحْرَمُ الْمِيْرَاثَ لکه څرنګه چي قاتل له میراث څخه محروموَل کیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجُوْزُ لِلْقَاتِلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قاتل لپاره وصیت جائز دی وَعَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا أَوْصَىٰ لِرَجُلٍ او پر همدغه اختلاف دي کله چي یو چا د یو سړي لپاره وصیت کړی وي ثُمَّ إِنَّهُ قَتَلَ الْمُوْصِيَ بیا دا سړی هغه وصیت کونکی قتل کړی وي تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ عِنْدَنَا نو زموږ په نیز وصیت باطلیږي وَعِنْدَهُ لَا تَبْطُلُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز وصیت نه باطلیږي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ فِي الْفَصْلَيْنِ مَا قُلْنَاهُ او په دواړو صورتونو کي د امام شافعي په خلاف حجت هغه دلیل دی کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿مباشر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: مرتکب، په خپله عمل کونکی. ﴿استعجل﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په تلوار سره د یو شي طلب کول (تلوار پکښي کول)، ژر د یو شي غوښتنه کول. ﴿يُحرَم﴾ د ضرب او سمع له باب څخه مضارع مجهوله ده: محروم کول (محروموَل). (مصباح اللغات)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نیز د قاتل لپاره وصیت جائز نه دی. په دې شرط چي هغه قاتل مباشر وي (یعني په خپل لاس یې قتل کړی وي او د قتل سبب نه وي جوړ سوی ځکه که مباشر نه وي نو د هغه سره حرمان المیراث او د وصیت بطلان نه متعلق کیږي. نو مباشر کېدل شرط دي). برابره ده قاتل عمداً قتل کړی وي او که خطاءً. په هر صورت کي زموږ په نیز د هغه لپاره وصیت جائز نه دی؛ ځکه په حدیث مبارک کي په واضحه توګه ذکر سوي دي چي "لا وصيّة للقاتل" (د قاتل لپاره وصیت جائز نه دی).

[1] القول الراجح: أخرجه دار قطني في السنن، كتاب في الأقضية، حديث رقم: ۴۵۲۵، ۴۵۲۶. والبيهقي في كتاب السنن الكبرى، باب ما جاء في الوصية للقاتل، حديث رقم: ۱۲۶۵۲.

دویم دلیل دا دی چې قاتل د خپل موصي په قتلولو سره د وصیت مال ژر ترلاسه کول غواړي حال دا چې د شریعت حکم او فیصله دا ده چې دا مال د موصي تر مرګ وروسته هغه ته حاصلیږي. لهذا د موصي په قتلولو سره هغه د شرعي حکم صراحتاً مخالفت کوي، لهذا په دې حواله سره هم هغه به له وصیت څخه محروموول کیږي، لکه کله چې قاتل د مورث (مړي) وارث وي، نو هغه له میراث څخه هم د همدې دلیل پر بناء محروموول کیږي.

وعلی هذا الخلاف إلخ: فرمایي که یو چا (مثلاً حامد) له مخکې څخه د یو سړي (زید) لپاره وصیت کړی وي بیا دا سړی (زید) هغه موصي (حامد) قتل کړي. نو هم وصیت جائز نه پاتیږي او باطلیږي: ځکه د قاتل لپاره نه ابتداءً وصیت جائز نه دی او نه بقاءً او انتهاءً.

دا زموږ مسلک دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کې وصیت جائز دی: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې قاتل له مقتول څخه اجنبي دی، لهذا څرنګه چې د نورو اجانبو لپاره وصیت جائز دی، همداسې د قاتل لپاره هم وصیت جائز دی، لېکن زموږ پېش کرده حدیث "لا وصية للقاتل" د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی؛ ځکه په دې حدیث کې مطلقاً د قاتل لپاره د وصیت نفي سوې دې او د هغه د اجنبي یا قریب کېدلو هیڅ ذکر پکښې نسته، نو ځکه علی الاطلاق به د قاتل لپاره وصیت جائز نه وي، برابره ده هغه اجنبي وي او که وارث او قریب وي.

## په پورتنۍ مسئله کې د وارثانو د اجازت حکم

وَلَوْأَجَازَتْهَاالْوَرَثَةُ فرمایي: او که وارثان د وصیت اجازه ورکړي جَازَعِنْدَأَبِيْحَنِيْفَةَوَمُحَمَّدٍ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ❁ : لَاتَجُوْزُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې جائز نه دي لِأَنَّ جِنَايَتَهُ بَاقِيَةٌ ځکه چې د قاتل جنایت [تر اجازې وروسته هم] باقي پاته دی وَالِامْتِنَاعُ لِأَجْلِهَا حال دا چې [د وصیت] ممتنع کېدل د جنایت په وجه دي وَلَهُمَا: أَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې [د وصیت] ممتنع کېدل د وارثانو د حق په وجه دي لِأَنَّ نَفْعَ بُطْلَانِهَا يَعُوْدُإِلَيْهِمْ ځکه د وصیت د باطلېدلو نفع وارثانو وطرف ته ګرځي كَنَفْعِ

❁ القول الراجح: قول الطرفين، كما قال العلامة ابراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله: ولا لقاتله مباشرةً ولا لوارثه إلا بإجازة الورثة (ملتقى الأبحر ج:۴، ص:۴۱۸)، وهكذا في الهندية (ج:۶، ص:۹۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۷۲]

بُطْلَانِ الْمِيْرَاثِ لکه د میراث د باطلېدلو نفع [چي د وارثانو وطرف ته ګرځي] وَلِأَنَّهُمْ لَا يَرْضَوْنَهَا لِلْقَاتِلِ او ځکه چي وارثان د قاتل لپاره په وصیت کولو نه راضي کیږي [چي مورث د قاتل لپاره وصیت وکړي] كَمَا لَا يَرْضَوْنَهَا لِأَحَدِهِمْ لکه څرنګه چي دوی د خپل یوه [وارث] لپاره په وصیت کولو نه راضي کیږي.

**اللغات**: ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل. ممانعت. ﴿یرضون﴾ د سمع له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده: راضي کېدل، خوښ کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د قاتل لپاره وصیت جائز نه دی. لېکن که وارثان په دې راضي وي او اجازه ورکړي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قاتل لپاره وصیت جائز کیږي. لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د وارثانو د اجازې باوجود هم د قاتل لپاره وصیت نه جائز کیږي: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د قاتل لپاره د وصیت نه جائز کېدل د هغه د جنایت په وجه دي او د وارثانو له اجازې او رضا څخه وروسته هم د هغه جنایت باقي دی. لهذا کله چي بعد الاجازه هم جنایت باقي دی، نو ځکه بعد الاجازه به هم د قاتل لپاره وصیت جائز نه وي.

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي د قاتل لپاره د وصیت متمنع کېدل د وارثانو د حق په وجه دي؛ ځکه د قاتل لپاره د وصیت باطلېدلو فایده وارثانو ته حاصلیږي. لکه څرنګه چي د قاتل لپاره د میراث باطلېدلو فایده وارثانو ته حاصلیږي، او ځکه چي وارثان د قاتل لپاره په وصیت راضي نه وي لکه څرنګه چي دوی د خپل یوه وارث لپاره په وصیت راضي نه وي (چي مورث له دوی څخه صرف د یوه وارث لپاره وصیت وکړي لکه مخکې چي ذکر سوه)، لېکن که دوی د هغه یوه وارث لپاره د وصیت اجازه ورکړي او په راضي سي نو وصیت جائز کیږي، نو همداسي دلته هم که وارثان د قاتل لپاره د وصیت اجازه ورکړي. نو وصیت به جائز کیږي او قاتل به د هغه مستحق کیږي.

## د خپل وارث لپاره د وصیت نه جائز کېدلو په هکله نقلي او عقلي دلائل

قَالَ: وَلَاتَجُوْزُ لِوَارِثِهٖ فرمايي: او د خپل وارث لپاره وصيت جائز نه دی لِقَوْلِهِ الْعَلِيْلَا د نبي ﷺ د فرمان په وجه «إِنَّ اللهَ تَعَالٰى أَعْطٰى ❶ كُلَّ ذِيْ حَقٍّ حَقَّهُ، أَلَا لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ» بېشکه الله تعالیٰ هر حق والا ته د هغه حق ورکړی دی، خبردار! د وارث لپاره وصيت نشته وَلِأَنَّهٗ يَتَأَذَّى الْبَعْضُ بِإِيْثَارِ الْبَعْضِ او ځکه چي بعضو ته د ترجيح ورکولو په وجه بعضي په تکليف کيږي فَفِيْ تَجْوِيْزِهٖ قَطِيْعَةُ الرَّحِمِ نو د هغه په جائز ګرځولو کي قطع رحمي سته وَلِأَنَّهٗ حَيْفٌ بِالْحَدِيْثِ الَّذِيْ رَوَيْنَاهُ او ځکه چي هغه [د وارث لپاره وصيت کول] ظلم دی د هغه حديث پر بناء کوم چي موږ روايت کړی وَيُعْتَبَرُ كَوْنُهٗ وَارِثًا أَوْ غَيْرَ وَارِثٍ وَقْتَ الْمَوْتِ او د هغه [موصیٰ لهٗ] د وارث کېدلو يا نه وارث کېدلو اعتبار به [د مورث (موصي)] د مرګ په وخت کي کيږي لَا وَقْتَ الْوَصِيَّةِ نه [د مورث] د وصيت کولو په وخت کي لِأَنَّهٗ تَمْلِيْكٌ مُضَافٌ إِلٰى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه وصيت داسي تمليک دی کوم چي تر مرګ وروسته وخت ته منسوب دی وَحُكْمُهٗ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ او د هغه حکم تر مرګ وروسته ثابتيږي وَالْهِبَةُ مِنَ الْمَرِيْضِ لِلْوَارِثِ فِيْ هٰذَا نَظِيْرُ الْوَصِيَّةِ او د مريض له طرفه خپل وارث ته هبه کول په دې باره کي [چي د هغه وارث کېدلو ته د مرګ په وخت کي اعتبار دی] د وصيت په څېر دي لِأَنَّهَا وَصِيَّةٌ حُكْمًا ځکه چي هبه د حکم په اعتبار سره وصيت دی حَتّٰى تَنْفُذَ مِنَ الثُّلُثِ همدا وجه ده چي هبه [د مال] له درېيمي حصې څخه نافذيږي وَإِقْرَارُ الْمَرِيْضِ لِلْوَارِثِ عَلٰى عَكْسِهٖ او د وارث لپاره د مريض اقرار د دې [هبې د حکم] برعکس دی لِأَنَّهٗ تَصَرُّفٌ فِي الْحَالِ ځکه چي دا فی الحاله تصرف دی فَيُعْتَبَرُ ذٰلِكَ وَقْتَ الْإِقْرَارِ نو ځکه دا تصرف به د اقرار په وخت کي معتبر وي.

**اللغات:** ﴿يتأذیٰ﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: په تکليف کېدل (په عذابېدل)، چا ته اذيت رسېدل.

﴿إيثار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ترجيح ورکول. ﴿حَيف﴾ ظلم، نا انصافي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي څرنګه د قاتل لپاره وصيت کول جائز نه دي، همداسي د خپل وارث لپاره هم وصيت کول جائز نه دي چي مورث (د وارثانو له اجازې پرته) ديوه وارث لپاره

---

❶ تخريج: أخرجه ابو داؤد فی كتاب الوصايا، باب ما جاء فی الوصية للوارث، حديث رقم: ۲۸۷۰.

وصيت وکړي: ځکه په حديث "أَلَا لَا وَصِيَّةَ لِلْوَارِثِ" کي د وارث لپاره وصيت کول ممنوع ګرځول سوي دي او د حديث په اول جزء "إِنَّ اللهَ أَعْطَىٰ كُلَّ ذِيْ حَقٍّ حَقَّهُ" کي دا ښوول سوې ده چي الله پاک د وارثت په ذريعه د مورث په مال کي هر حقدار (وارث) ته خپل حق ورکړی دی. لهذا د وصيت د لاري نه مورث هغه يوه ته ورکولای سي او نه څوک هغه اخيستلای سي.

عقلي دليل دا دی چي د مورث په مال کي وارثان ټوله برابر شريکان او حقداره دي. او ښکاره خبره ده چي د يوه وارث لپاره په وصيت کولو سره هغه وارث له نورو وارثانو څخه فائق او زيات حق والا ګرځول کيږي او د موصي په دې فعل سره نورو وارثانو ته اذيت او ستونزه کېدلای سي او دا د قطع رحمی سبب جوړېدلای سي، حال دا چي مسلمان ته اذيت رسول حرام دي. لهذا په دې حواله سره هم د وارث لپاره وصيت جائز نه دی.

ولأنه حيف إلخ: يعني د وارث لپاره د وصيت نه جائز کېدلو په هکله مخکي ذکر سوی دا حديث هم دليل دی "الحيف في الوصية من أكبر الكبائر" چي په دې حديث د حيف (ظلم) تفسير دا سوی دی چي مورث د يوه وارث لپاره وصيت وکړي.

ويعتبر كونه إلخ: او بل دا چي وارث کېدل يا نه وارث کېدل د مرګ په وخت کي معتبر دي. نه د وصيت په وخت کي، همدا وجه ده که مورث د خپل ورور لپاره وصيت وکړي نو څرنګه چي اوس د هغه لپاره وصيت نه جائز کيږي ځکه چي هغه د مورث وارث دی لېکن که تر وصيت وروسته د مورث بچی پيدا سي نو بيا ورور وارث نه پاتيږي لهذا د هغه لپاره مخکيني وصيت جائز پاتيږي که څه هم د وصيت په وخت کي هغه وارث وو.

او د مرګ د وخت اعتبار ځکه سوی دی چي وصيت داسي تمليک دی کوم چي د ما بعد الموت وطرف ته مضاف دی لکه څرنګه چي دا ښکاره خبره ده، نو وارث کېدل به هم په همدې وخت کي معتبر وي. او د وصيت حکم هم تر مرګ وروسته ثابتيږي، لهذا د وارث کېدلو يا نه کېدلو اعتبار به هم د مرګ په وخت کي کيږي. نه د وصيت په وخت کي.

والهبة من المريض إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د مرض الموت مريض د وارث لپاره هبه وکړي. نو د هغه هبه هم جائز نه ده: ځکه د مريض هبه هم د وصيت په درجه کي ده. لهذا د وارث لپاره چي څرنګه وصيت کول جائز نه دي همداسي د وارث لپاره هبه کول هم جائز نه دي. او دلته هم د وارث کېدلو اعتبار (د واهب) د مرګ په وخت کيږي: ځکه هبه هم حکماً وصيت دی، همدا وجه ده چي څرنګه

وصيت د مال په دريېمه حصه کي نافذيږي. همداسي هبه هم صرف د مال په دريېمه حصه کي نافذيږي.

وإقرار المريض إلخ: فرمايي که چيري مريض ديو وارث (مثلاً د زيد) لپاره د مال اقرار وکړي، نو د دې حکم د هبې او وصيت د حکم په خلاف دی. يعني د مقرلهٗ (زيد) د وارث کېدلو يا نه کېدلو اعتبار به د اقرار په وخت کي کيږي، نه د مريض د مرګ په وخت کي؛ ځکه چي اقرار حالي تصرّف دی. نو ځکه په هغه کي به د حالي وخت يعني د اقرار د وخت اعتبار کيږي، نه د مرګ د وخت.

## په پورتنۍ مسئله کي د ټولو وارثانو يا بعضي وارثانو د اجازت حکم

قَالَ: إِلَّا أَنْ يُجِيزَهَا الْوَرَثَةُ فرمايي: مګر دا چي وارثان د وصيت اجازه ورکړي وَيُرْوٰى هٰذَا الِاسْتِثْنَاءُ فِيمَا رَوَيْنَاهُ او دغه استثناء په هغه حديث کي روايت سوې ده کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ او ځکه چي [د وصيت] ممتنع کېدول د وارثانو د حق په وجه دي فَتَجُوزُ بِإِجَازَتِهِمْ نو ځکه د وارثانو په اجازه سره به وصيت جائز کيږي وَلَوْ أَجَازَ بَعْضٌ وَرَدَّ بَعْضٌ او که بعضي اجازه ورکړي او بعضي يې ردّ کړي تَجُوزُ عَلَى الْمُجِيزِ بِقَدْرِ حِصَّتِهِ نو پر اجازه ورکونکي د هغه د حصې په اندازه وصيت جائز کيږي لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهِ ځکه اجازه ورکونکي ته پر خپل ځان ولايت سته وَبَطَلَ فِي حَقِّ الرَّادِّ او د ردونکي [انکار کونکي] په حق کي وصيت باطليږي.

**اللغات**: ﴿يجيز﴾ د افعال د باب مضارع ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول، نافذول. مُجِيز له همدې باب څخه د فاعل صيغه ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د وارث لپاره وصيت جائز نه دی. ليکن که نور وارثان اجازه ورکړي او په دې وصيت راضي سي، نو بيا د وارث لپاره وصيت جائز کيږي؛ ځکه مخکي چي موږ کوم حديث ذکر کړی دی په هغه کي دا استثناء هم سوې ده "لا تجوز الوصية لوارث إلا أن يشاء الورثة" او د وارث لپاره د وصيت نه جائز کېدل د وارثانو د حق په وجه دي او کله چي وارثان خپله د خپل حق په ساقطولو راضي دي، نو ښکاره ده چي د وصيت جواز به راګرځي او د وارث لپاره به وصيت کول جائز وي. ځکه همدا قاعده ده چي "إذا زال المانع عاد الممنوع".

ولوأجاز إلخ : د دې حاصل دا دی چي که د وارث لپاره د وصيت کولو په هکله صرف بعضي وارثان اجازه ورکړي او بعضي دا رد او منع کړي. نو کومو وارثانو چي اجازه ورکړې وي. د هغو د حصې په اندازه وصيت جائز دی؛ ځکه هغو ته پر خپلو ځانو ولايت حاصل دی. او کومو وارثانو چي وصيت رد کړی وي د هغو په حصه کي وصيت باطليږي: ځکه د وصيت ممتنع کېدل د هغو د حق په وجه دي او اوس هم هغو خپل حق منع کړی دی.

## د مسلمان او ذمي يو د بل لپاره د وصيت کولو حکم

قَالَ: وَيَجُوْزُ أَنْ يُوْصِيَ الْمُسْلِمُ لِلْكَافِرِ وَالْكَافِرُ لِلْمُسْلِمِ فرمايي: او جائز دي چي مسلمان د کافر لپاره او کافر د مسلمان لپاره وصيت وکړي فَالْأَوَّلُ لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ نو اول د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه ﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ﴾ [الممتحنة: ٨] نه منع کوي الله جَلَّ تاسي له هغه خلکو [کفارو] څخه کوم چي د دين په باره کي ستاسي سره جنګېدلي نه وي [چي تاسي د هغه سره نېکنه او انصاف وکړئ!] وَالثَّانِيْ لِأَنَّهُمْ بِعَقْدِ الذِّمَّةِ سَاوَوْا الْمُسْلِمِيْنَ فِي الْمُعَامَلَاتِ او دويم ځکه چي کفار د ذمي والي د تړون په وجه په معاملاتو کي د مسلمانانو سره برابر سوي دي وَلِهٰذَا جَازَ التَّبَرُّعُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ په همدې وجه د ژوند په حالت کي له دواړو طرفونو څخه تبرع جائز ده فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ نو همداسي به تر مرګ وروسته هم [دا جائز وي] وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: الْوَصِيَّةُ لِأَهْلِ الْحَرْبِ بَاطِلَةٌ او په جامع صغير کي دي: چي د حربيانو لپاره وصيت کول باطل دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه ﴿إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ قَاتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ﴾ [الممتحنة: ٩] [بلکي] الله جَلَّ تاسي منع کوي له هغو خلکو څخه کوم چي د دين په باره کي ستاسي سره جنګېدلي وي.

**اللغات:** ﴿عقد الذمة﴾ د ذمي والي تړون (معاهده)، ذمي کېدل. ﴿ساوَوْا﴾ د مفاعلې له باب څخه د جمع مذکر غائب ماضي صيغه ده: برابرېدل، يو د بل مثل کېدل. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: نېکي او احسان، چا ته بلا عوضه (مفت) يو شه ورکول، داسي کاژ کول کوم چي د انسان پر ذمه واجب نه وي.

**تشريح:** په دې عبارت کي له کافر څخه ذمي کافر مراد دی. خاصل د عبارت دا دی چي که مسلمان د ذمي لپاره وصيت وکړي او ذمي د مسلمان لپاره وصيت وکړي. نو جائز دي: ځکه وصيت بو تبرع ده او د قرآن کريم په لاندينې آيت کي د ذميانو او غير محارب کافرانو سره د بِر او قسط (ښېګني او انصاف)

حکم سوی دی ﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْا إِلَيْهِمْ﴾. نو په دې آيت سره د ذميانو لپاره د تبرع او احسان کولو او د دې تر څنګ د هغو لپاره د وصيت کولو جواز ثابت سو.

عقلي دليل دا دی چي د ذمي والي په تړون او عقد کولو سره ذميانو زموږ د مسلمانانو سره په معاملاتو کي مساوات او برابري کړې ده. او مسلمانان په خپل مينځ کي يو د بل لپاره وصيت کولای سي. لهذا مسلمان او ذمي به هم يو د بل لپاره وصيت کولای سي. او بل دا چي کله په ژوند کي ذمي او مسلمان يو بل ته تبرع کولای سي، نو تر مرګ وروسته به هم يو د بل سره داسي معامله کولای سي. شرعاً د دې اجازه سته او په دې کي هيڅ قباحت نسته.

وفي الجامع الصغير الخ: دا د جامع صغير مسئله ده. حاصل يې دا دی چي هغه کافر کوم چي د مسلمانانو سره جنګيږي او حربي وي، د هغه لپاره مسلمان وصيت نه سي کولای او نه هغه د مسلمان لپاره وصيت کولای سي: ځکه په قرآن کريم کي له دې څخه منع سوې ده ﴿إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ قَاتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَأَخْرَجُوْكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوْا عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ﴾ (الله جل جلاله تاسي د هغه خلګو له دوستی څخه منع کوي کوم چي د دين په باره کي ستاسي مسلمانانو سره جنګېدلي وي او له خپلو کورونو څخه يې باسلي وي او ستاسي په ايستلو کي شريکان سوي وي). له دې څخه معلومه سوه چي د حربيانو سره دوستي کول ممنوع دي. همداسي دا هم معلومه سوه چي د هغو لپاره وصيت کول باطل دي. نو د حربي کافر لپاره وصيت کول څنګه جائز کېدلای سي!.

## وصيت به کله قبلول کيږي؟

قَالَ: وَقَبُوْلُ الْوَصِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ فرمايي: او د وصيت قبلول تر مرګ وروسته دي فَإِنْ قَبِلَهَا الْمُوْصٰى لَهُ حَالَ الْحَيَاةِ أَوْ رَدَّهَا لېکن که موصی له (دچا لپاره چي وصيت سوی دی هغه) د موصي د ژوند په حالت کي وصيت قبول کړي يا يې رد کړي فَذٰلِكَ بَاطِلٌ نو دا باطل دي لِأَنَّ أَوَانَ ثُبُوْتِ حُكْمِهِ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه د وصيت د حکم ثابتېدلو وخت تر مرګ وروسته دی لِتَعَلُّقِهِ بِهِ ځکه وصيت د مرګ سره متعلق دی فَلَا يُعْتَبَرُ قَبْلَهُ نو ځکه قبول او رد به تر مرګ مخکي معتبر نه وي كَمَا لَا يُعْتَبَرُ قَبْلَ الْعَقْدِ لکه څرنګه چي تر عقد مخکي معتبر نه دي.

**اللغات**: ﴿آوان﴾ واحد آن: وخت. ګړی. لمحه.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې د موصي له طرفه کېدونکې وصيت به موصیٰ لهٗ د موصي تر مرګ وروسته قبلوي او وصيت قبلول د موصي تر مرګ وروسته معتبر دي؛ ځکه وصيت د مرګ سره متعلق کيږي او تر همدې مرګ وروسته د هغه حکم ثابتيږي؛ نو ځکه د هغه قبوليت به هم تر مرګ وروسته متحقق او صحيح کيږي. او که تر مرګ مخکې د موصي په ژوند کې موصیٰ لهٗ هغه قبول کړي يا يې رد کړي، نو دا قبول او رد باطليږي او دوی لره هيڅ اعتبار نسته، لکه څرنګه چې له عقد وصيت څخه مخکې قبول او رد لره هيڅ اعتبار نسته.

## د وصيت مستحب مقدار او په کوم صورت کې وصيت نه کول افضل دي؟

قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُوصِيَ الْإِنْسَانُ بِدُوْنِ الثُّلُثِ فرمايي: او مستحب دا ده چې انسان له درېيمې حصې څخه د کم مقدار وصيت وکړي سَوَاءٌ كَانَتِ الْوَرَثَةُ أَغْنِيَاءَ أَوْ فُقَرَاءَ برابره ده وارثان مالداره وي او که غريبان [تنګلاسي] وي لِأَنَّ فِي التَّنْقِيْصِ صِلَةَ الْقَرِيْبِ بِتَرْكِ مَالِهِ عَلَيْهِمْ ځکه [له درېيمې حصې څخه] په کمولو کې پر خپل قريب صله رحمي کول دي د هغو لپاره د خپل مال پرېښوولو په وجه بِخِلَافِ اسْتِكْمَالِ الثُّلُثِ په خلاف د درېيمې حصې د پوره کولو [چې د پوره ثلث وصيت وکړی سي] لِأَنَّهُ اسْتِيْفَاءُ تَمَامِ حَقِّهِ ځکه دا خو خپل حق پوره ترلاسه کول دي فَلَا صِلَةَ وَلَا مِنَّةَ لهذا [په دې کې] نه صله رحمي شته او نه څه احسان شته ثُمَّ الْوَصِيَّةُ بِأَقَلِّ مِنَ الثُّلُثِ أَوْلٰى أَمْ تَرْكُهَا؟ بيا له درېيمې حصې څخه د کم مقدار وصيت کول اولیٰ دي يا وصيت پرېښوول [اولیٰ دي] قَالُوْا: إِنْ كَانَتِ الْوَرَثَةُ فُقَرَاءَ مشايخو فرمايلي دي: که چيرې وارثان غريبان وي وَلَا يَسْتَغْنُوْنَ بِمَا يَرِثُوْنَ او دوی په هغه ميراث سره نه مالداره کيږي کوم چې يې دوی ترلاسه کوي فَالتَّرْكُ أَوْلٰى نو بيا وصيت پرېښوول اولیٰ دي [چې مورث د بل چا لپاره وصيت نه وکړي بلکې ټوله مال د وارثانو لپاره پرېږدي] لِمَا فِيْهِ مِنَ الصَّدَقَةِ عَلَى الْقَرِيْبِ ځکه په دې کې پر قريب صله رحمي ده وَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ او نبي ﷺ فرمايلي دي «أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ[1] عَلٰى ذِي الرَّحِمِ الْكَاشِحِ» غوره صدقه پر کرکه ناکه [او ناخوښی] قريب

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، كتاب قسم الصدقات، باب يقسم الصدقة على قرابته وجيرانه. حديث رقم: ۱۳۲۲۳.

ده [كوم چي متنفر او زړه بدی وي] وَلِأَنَّ فِيْهِ رِعَايَةَ حَقِّ الْفُقَرَاءِ وَالْقَرَابَةِ جَمِيْعًا او ځکه چي په دې کي د غریبانو او قرابت دواړو رعایت سته.

**اللغات**: ﴿تنقيص﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: کمول. کمي پکښي راوستل. ﴿مِنّة﴾ منت. احسان. نېکي او ښېګڼه. ﴿كاشح﴾ کرکه ناک او بغض کونکی دښمن. لیري والي اختیارونکی. (مصباح المنیر)

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي شریعت انسان ته په آخري وخت کي د خپل مال په درېیمه حصه کي د تصرف کولو اختیار ورکړی دی (چي انسان د خپلو ګناهونو د تلافی وغیره لپاره وصیت پکښي وکړي). لهذا د خپل مال په ثُلث (درېیمه حصه) کي هغه ته وصیت کول جائز دي؛ لېکن مستحب دا ده چي د ټوله ثُلث وصیت نه وکړي. برابره ده وارثان مالداره وي او که محتاجه وي په هر صورت کي غوره دا ده چي تر ثُلث د کم مقدار وصیت وکړي؛ ځکه د کم مقدار د وصیت کولو په صورت کي د مُوصي خپل حق (له ثُلث څخه پاته مال) د هغه د وارثانو او قریبانو لپاره پاتیږي. نو په دې کي د ده له طرفه د هغو سره صله رحمي او حُسنِ سلوک ثابتیږي کوم چي غوره او محمود فعل دی. لېکن که هغه د ټوله ثُلث وصیت وکړي نو هغه خپل ټوله حق ترلاسه کړی. لهذا بیا د هغه له طرفه هیڅ صله و احسان او حسنِ سلوک نه ثابتیږي. نو ځکه اولیٰ دا ده چي له ثُلث څخه د کم مقدار وصیت وکړي.

ثم الوصية إلخ: دلته دا سوال پیدا کیږي چي له ثُلث څخه د کم مقدار وصیت کول اولیٰ دي یا ګردسره وصیت پرېښوول اولیٰ دي، نو د دې جواب د فقهاؤ په ژبه دا دی چي که وارثان غریبان او محتاجه وي او د میراث کوم حصه چي دوی ته حاصلیږي په هغه سره دوی نه مالداره کیږي او د دوی تنګلاسي په هغه سره نه ختمیږي. نو په داسي صورت کي وصیت نه کول (وصیت پرېښوول) افضل او اولیٰ دي: ځکه په داسي صورت کي که وصیت نه وکړی سي او خپل ټوله مال د خپلو وارثانو او قریبانو لپاره پرېښوول سي نو مورث ته به پر قریب د صدقې او صله رحمي دواړو ثواب حاصل سي او هغه به د دوچنده ثواب مستحق سي؛ ځکه چي په دې صورت کي د فقیر او قرابت دواړو د حق رعایت سته ځکه د هغه خپل قریب فقیر او محتاجه دی. او په حدیث کي ذکر سوي دي "أفضل الصدقة على ذي الرحم الكاشح" یعني پر خپل هغه قریب صدقه کول دي زیات فضیلت والا او زیات غوره دي چي له هغه څخه انسان خوشاله نه وي او د دوی په مینځ کي کرکه او نفرت وي: ځکه په دې کي د نفس مخالفت دی. قرابت هم دی او د فقیر د حق رعایت هم دی.

## په کوم صورت کې وصیت کول افضل دي؟

وَإِنْ كَانُوا أَغْنِيَاءَ او که وارثان مالداره [شتمن] وي أَوْ يَسْتَغْنُونَ بِنَصِيْبِهِمْ یا دوی [د میراث] په خپله حصه سره مالداره کیږي فَالْوَصِيَّةُ أَوْلٰى نو بیا وصیت کول اولیٰ دي لِأَنَّهُ يَكُوْنُ صَدَقَةً عَلَى الْأَجْنَبِيِّ ځکه [په دې صورت کې] وصیت کول به پر اجنبي کس صدقه وي وَالتَّرْكُ هِبَةٌ مِنَ الْقَرِيْبِ او وصیت پرېښوول به پر قریب هبه وي وَالْأُوْلٰى أَوْلٰى اول [صدقه] غوره ده [له هبې څخه] لِأَنَّهُ يَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ تَعَالٰى ځکه په صدقه سره د الله د رضاء طلب کیږي وَقِيْلَ: فِيْ هٰذَا الْوَجْهِ يُخَيَّرُ او ویل سوي دي: چې په دې صورت کې موصي ته اختیار ورکول کیږي [که وصیت کوي او که یې پرېږدي] لِاشْتِمَالِ كُلٍّ مِنْهُمَا عَلٰى فَضِيْلَةٍ وَهُوَ الصَّدَقَةُ وَالصِّلَةُ ځکه له دې دواړو څخه هر یو پر یو فضیلت مشتمل دی او هغه صدقه ده یا صله ده فَيُخَيَّرُ بَيْنَ الْخَيْرَيْنِ نو ځکه مورث ته به د دواړو ښېګڼو تر مینځ اختیار ورکول کیږي.

**اللغات:** ﴿یستغنون﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر غائب صیغه ده: مستغني کېدل (احتیاج ختمېدل)، مالداري غوښتل، مراد: مالداره کېدل. ﴿نصیب﴾ حصه، برخه. ﴿یبتغي﴾ د افتعال د باب مضارع ده: طلب کول، لټول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مورث وارثان (قریبان) مالداره وي، یا داسي وي چې په میراث کې کومه حصه دوی ته حاصلیږي په هغه سره دوی مالداره کیږي او تنګلاسي یې ختمیږي، نو په دې صورت کې د مورث لپاره وصیت کول زیات غوره دي چې د بل چا لپاره وصیت وکړي: ځکه په دې صورت کې به هغه پر اجنبي کس صدقه کونکی وي او د وصیت نه کولو په صورت کې به هغه پر قریب هبه کونکی وي، او صدقه کول له هبې څخه زیات غوره دي: ځکه د صدقې مقصد او منشا د الله تعالیٰ رضا حاصلول وي حال دا چې په هبه سره د موهوب لهٗ رضا ترلاسه کیږي. او ښکاره ده چې د الله تعالیٰ رضا د هر چا له رضا څخه مخکې او اولیٰ ده.

وقیل فی هذا إلخ: فرمایي چې په مذکوره صورت کې د بعضي فقهاؤ رایه دا ده چې موصي ته اختیار دی برابره ده صدقه اختیار وي او که هبه، ځکه صدقه او هبه دواړه ښک کارونه دي. نو کوم یو چې یې خوښه وي هغه دې اختیار کړي.

## موصی لهٗ کله د موصیٰ بهٖ مالک کیږي؟

قَالَ: وَالْمُوصٰى بِهٖ يُمْلَكُ بِالْقَبُوْلِ فرمايي: او موصیٰ بهٖ [د کوم مال وصيت چي سوی وي] په قبلولو سره په ملکيت کي راځي [يعني د وصيت په قبلولو سره هغه د وصيت قبلونکي (موصیٰ لهٗ) په ملکيت کي داخليږي] خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دی هُوَ يَقُوْلُ: الْوَصِيَّةُ أُخْتُ الْمِيْرَاثِ هغه فرمايي: چي وصيت د ميراث خور ده إِذْ كُلٌّ مِنْهُمَا خِلَافَةٌ ځکه له دې دواړو څخه هر يو خلافت دی لِمَا أَنَّهُ انْتِقَالٌ ځکه چي دا انتقال دی ثُمَّ الْإِرْثُ يَثْبُتُ مِنْ غَيْرِ قَبُوْلٍ بيا ميراث له قبول [قبلولو] څخه بغير ثابتيږي فَكَذٰلِكَ الْوَصِيَّةُ نو همداسي به وصيت هم [بغير له قبلولو څخه ثابتيږي] وَلَنَا: أَنَّ الْوَصِيَّةَ إِثْبَاتُ مِلْكٍ جَدِيْدٍ او زموږ دليل دا دی: چي وصيت د نوي ملکيت ثابتول دي وَلِهٰذَا لَا يَرُدُّ الْمُوْصٰى لَهٗ بِالْعَيْبِ په همدې وجه موصیٰ لهٗ د عيب په وجه [د وصيت شی] نه سي واپس کولای وَلَا يُرَدُّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ او نه پر موصیٰ لهٗ [د وصيت شی] واپس کول کېدای سي [د دواړو جملو صورتونه به په تشريح کي ذکر سي] وَلَا يَمْلِكُ أَحَدٌ إِثْبَاتَ الْمِلْكِ لِغَيْرِهٖ إِلَّا بِقَبُوْلِهٖ او يو څوک د بل چا لپاره د هغه له قبول څخه بغير د ملکيت ثابتولو مالک نه دی أَمَّا الْوِرَاثَةُ خِلَافَةٌ او پاته سو وراثت خلافت دی [يعني ميراث د وارث لپاره د خلافت (خليفه والي) په توګه ثابتيږي چي د هغه د خپل مورث (مړي) خليفه او نائب دی] حَتّٰى يَثْبُتَ فِيْهَا هٰذِهِ الْأَحْكَامُ همدا وجه ده چي په وراثت کي دغه احکام جاري کيږي [يعني د عيب په وجه د وارث شی واپس کول او وارث ته شی واپس کېدل] فَيَثْبُتُ جَبْرًا مِنَ الشَّرْعِ مِنْ غَيْرِ قَبُوْلٍ [او کله چي وراثت خلافت دی] نو ځکه [د وارث لپاره] له قبول څخه بغير د شريعت له طرفه جبراً ملکيت ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿مُوصیٰ بهٖ﴾ د کوم شي او کوم مال وصيت چي سوی وي. ﴿يُملك﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: مالک کېدل. مالک جوړېدل (يو څه د چا په ملکيت کي داخلېدل). ﴿مُوصیٰ لهٗ﴾ د کوم چا لپاره چي وصيت سوی وي. مُوصیٰ د افعال د باب مفعول دی چي دلته يې د صلې په بدلون سره معنیٰ بدله سوې ده.

تشریح: صورت د مسئلې: دا دی چې زموږ په نیز موصی لهٔ چې کله د موصي تر مرګ وروسته موصیٰ به قبول کړي. نو موصیٰ به د هغه په ملکیت کې داخلیږي او له قبول څخه بغیر موصی لهٔ د موصیٰ به نه مالک کیږي، حال دا چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز موصی لهٔ له قبول څخه بغیر د موصیٰ به مالک کیږي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله یو قول دی: د دې حضراتو دلیل دا دی چې وصیت د میراث خور ده: ځکه وصیت او میراث دواړه د خلافت په توګه ثابتیږي او میراث د وارث له قبول څخه بغیر ثابتیږي. لهذا وصیت به هم د موصی لهٔ له قبول څخه بغیر ثابتیږي.

ولنا إلخ: دا زموږ دلیل دی او حاصل یې دا دی چې وصیت د ملک جدید (نوي ملکیت) اثبات دی. همدا وجه ده چې که څوک یو شی رانیسي او بیا دیو چا لپاره د هغه وصیت وکړي او موصی لهٔ (یعني د چا لپاره چې یې وصیت کړی دی) په هغه شي کې یو عیب وویني. نو موصی لهٔ د دې عیب په وجه هغه شی (مبیع) پر بائع نه سي واپس کولای. او نه پر موصی لهٔ د عیب په وجه مبیع واپس کول کېدای سي مثلاً که یو سړي د یو چا لپاره د خپل مال وصیت وکړي او بیا موصي د هغه مال څخه یو شی خرڅ کړي او مشتري په هغه شي کې یو عیب وویني. نو مشتري موصی لهٔ ته هغه شی نه سي واپس کولای. معلومه سوه چې په وصیت کې د موصی لهٔ لپاره ملک جدید ثابتیږي او د خلافت په توګه هغه نه مالک کیږي او د ملک جدید د ثبوت لپاره چې څوک مالک جوړول کیږي. د هغه قبول (قبلول) شرط دي او د هغه له قبول څخه بغیر هیڅ شی د هغه په ملکیت کې نه داخلیږي، نو ځکه موږ د موصی لهٔ قبول شرط کړی دی چې هغه به موصیٰ به قبلوي.

او پاته سو وارثت د وصیت په خلاف دی: ځکه هغه د وارث لپاره د خلافت په توګه ثابتیږي. نو ځکه په هغه کې د وارث قبول کول شرط نه دي او په هغه کې قبول او ردّ د شریعت له طرفه جبراً ثابتیږي.

## له پورتنی مسئلې څخه یوه استثناء (که تر موصي وروسته موصی لهٗ له وصیت قبلولو څخه مخکې مړ سي نو څه حکم دی؟)

قَالَ: إِلَّا فِي مَسْأَلَةٍ وَاحِدَةٍ فرمایي: مګر په یوه مسئله کې وَهِيَ أَنْ يَمُوتَ الْمُوصِي ثُمَّ يَمُوتَ الْمُوصَى لَهُ قَبْلَ الْقَبُولِ او هغه دا ده چې موصي مړ سي بیا له قبول [وصیت قبلولو] څخه مخکې موصی لهٗ مړ سي فَيَدْخُلُ الْمُوصَى بِهِ فِي مِلْكِ وَرَثَتِهِ اِسْتِحْسَانًا نو موصیٰ بهٖ [د کوم شي وصیت چې سوی وي] د موصیٰ لهٗ د وارثانو په ملکیت کې استحساناً داخلیږي وَالْقِيَاسُ أَنْ تَبْطُلَ الْوَصِيَّةُ او قیاس دا دی چې وصیت باطلیږي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْمِلْكَ مَوْقُوفٌ عَلَى الْقَبُولِ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی چې ملکیت پر قبول موقوف دی فَصَارَ كَمَوْتِ الْمُشْتَرِي قَبْلَ قَبُولِهِ بَعْدَ إِيجَابِ الْبَائِعِ نو داسې سو لکه د بائع تر ایجاب وروسته د مشتري له قبول څخه مخکې د مشتري مړ کېدل وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْوَصِيَّةَ مِنْ جَانِبِ الْمُوصِي قَدْ تَمَّتْ بِمَوْتِهِ تَمَامًا د استحسان دلیل دا دی: چې وصیت د موصي له طرفه د هغه د مړ کېدلو په وجه داسې پوره سو لَا يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ مِنْ جِهَتِهِ چې [تر دې وروسته] د موصي له طرفه هغه ته فسخ نه سي لاحق کېدلای وَإِنَّمَا تَوَقَّفَتْ لِحَقِّ الْمُوصَى لَهُ او [تر دې وروسته خو] د موصیٰ لهٗ د حق په وجه وصیت موقوف کیږي فَإِذَا مَاتَ لېکن کله چې موصیٰ لهٗ مړ سو دَخَلَ فِي مِلْكِهِ نو موصیٰ بهٖ د هغه په ملکیت داخلیږي كَمَا فِي الْبَيْعِ الْمَشْرُوطِ فِيهِ الْخِيَارُ إِذَا مَاتَ قَبْلَ الْإِجَازَةِ لکه په هغه بیع کې چې په هغه کې د مشتري لپاره خیار شرط کړی سوی وي کله چې مشتري له اجازه ورکولو څخه مخکې مړ سي.

**اللغات:** د موصیٰ لهٗ وغیره تعریف د تېر عبارت په لغاتو کې ذکر سو.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې په عام حالت کې خو زموږ په نېز د وصیت حکم همدا دی چې وصیت (موصیٰ بهٖ) د موصیٰ لهٗ له قبول څخه بغیر د هغه په ملکیت کې نه داخلیږي. لېکن یو صورت له دې څخه مستثنیٰ دی او په هغه کې موصیٰ لهٗ له قبول څخه بغیر هم بناء بر استحسان د وصیت مالک کیږي. هغه صورت دا دی چې موصي د موصیٰ لهٗ لپاره وصیت وکړي او د موصیٰ لهٗ تر قبول مخکې موصي هم مړ سي او موصیٰ لهٗ هم مړ سي، نو په دې صورت کې استحساناً وصیت

(موصی به) د موصی له د وارثانو ملکیت ګرځي او دوی د هغه (موصی به) وارث کیږي، حال دا چې قیاساً په دې صورت کې هم وصیت باطلیږي او موصی له د وصیت نه مالک کیږي؛ ځکه د موصی له له طرفه قبول موجود نه سو، حال دا چې د موصی له لپاره د ملکیت ثابتېدل د هغه پر قبولیت موقوف دي، مثال یې دا دی لکه د بائع تر ایجاب وروسته که مشتري له قبول څخه مخکې مړ سي، نو د بائع ایجاب او بیع باطلیږي، نو همداسې قیاساً دلته وصیت باطلیږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دلیل دا دی چې د موصي د مرګ په وجه د هغه له طرفه وصیت کامل او بشپړ وګرځیدی، نو ځکه اوس د هغه له طرفه د وصیت فسخ کولو هیڅ سوال نه پیدا کیږي، ها! اوس د وصیت په پوره کېدلو کې د موصی له قبول (وصیت قبلول) پکار وه او کله چې موصی له مړ سو نو د هغه په مرګ سره دا قبول انتها ته ورسېدی (ګواکي هغه وصیت قبول کړی)؛ ځکه په عامه توګه وصیت قبلول کیږي او ډېر کم ردول کیږي، لهٰذا د موصی له په مرګ سره د قبول (وصیت قبلولو) اړخ ته تقویه حاصلیږي او موصی به د موصی له په ملکیت کې داخلیږي، لکه په بیع کې که د مشتري لپاره خیار شرط وي او بیا مشتري له اجازه ورکولو څخه مخکې مړ سي، نو مرګ د هغه له طرفه اجازه ګڼل کیږي او بیع پوره کول کیږي او د مشتري د وارثانو لپاره د مبیع فیصله کول کیږي.

## د یو سړي سره چې څومره مال وي، هغومره مقروض هم وي، د هغه د وصیت حکم

قَالَ وَمَنْ أَوْصٰى وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيْطُ بِمَالِهِ فرمایي: او څوک چې وصیت وکړي او پر هغه دومره قرض وي کوم چې د هغه مال لره محیط وي لَمْ تَجُزِ الْوَصِيَّةُ نو وصیت جائز نه دی لِأَنَّ الدَّيْنَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْوَصِيَّةِ ځکه چې قرض پر وصیت مخکې دی لِأَنَّهُ أَهَمُّ الْحَاجَتَيْنِ ځکه چې قرض له دوو ضرورتونو څخه اهم ضرورت دی فَإِنَّهُ فَرْضٌ وَالْوَصِيَّةُ تَبَرُّعٌ ځکه چې د قرض اداء فرض ده او وصیت تبرّع ده وَأَبَدًا يُبْدَأُ بِالْأَهَمِّ فَالْأَهَمِّ او همېشه په زیات اهم شروع کول کیږي بیا چې تر هغه زیات اهم وي إِلَّا أَنْ يُبَرِّئَهُ الْغُرَمَاءُ مګر دا چې قرضخواهان هغه [مقروض] بري کړي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ الدَّيْنُ ځکه چې قرض باقي پاته نه سو فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ عَلَى الْحَدِّ الْمَشْرُوْعِ نو ځکه وصیت به تر هغه حدّ پوري نافذیږي کوم چې مشروع دی لِحَاجَتِهِ إِلَيْهَا ځکه موصي وصیت ته محتاج دی.

**اللغات**: ﴿يحيط﴾ د افعال د باب مضارع ده: احاطه کول، چار طرفه پرې راګرځېدل. محيط قرض: مثلاً مال لک روپۍ وي او وصيت هم لک روپۍ وي يا تر دې زيات وي. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: نېکي او احسان. چا ته بلا عوضه (مفت) يو څه ورکول. داسې کار کول کوم چې د انسان پر ذمه واجب نه وي. ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيمٌ ده: د قرض مالک. قرضخواه (قرض غوښتونکی). ﴿مشروع﴾ د فتح د باب مفعول دی: په شريعت کې مطلوب. په شريعت کې جاري او جائز.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مقروض سړی د بل چا لپاره د مال وصيت وکړي او پر هغه دومره قرض باندې وي کوم چې د ده مال له محيط وي، نو شرعاً د ده وصيت جائز نه دی؛ ځکه پر ده چې کوم محيط قرض باندې دی. هغه د وصيت له جواز څخه مانع دی؛ ځکه قرض پر مړي واجب حق دی چې د هغه اداء کول ضروري دي او له ټولو شيانو څخه مخکې دي (چې هغه به د ميراث له تقسيم وغيره څخه مخکې اداء کول کيږي). حال دا چې وصيت محض مستحب او مستحسن دی او قاعده دا ده چې اول له هغه شي څخه شروع کيږي کوم چې زيات اهم وي. نو ځکه د موصي (ميت) له مال څخه به تر ټولو مخکې د هغه قرضونه اداء کول کيږي او بيا به بل کار کول کيږي.

ها! که چيرې قرضخواه (د قرض مالک) دا موصي له قرض څخه بري کړي او د قرض معامله بالکل ختمه سي. نو په دې صورت کې د مال تر درېيمې حصې (ثلث المال) پورې وصيت نافذېږي؛ ځکه موصي د خپل قصور او کوتاهۍ د تلافۍ لپاره وصيت ته محتاج او مجبوره دی او شريعت د مقروض نه کېدلو په صورت کې هغه ته دا حق ورکړی دی.

## د بچي (کوچني) د وصيت حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ وَصِيَّةُ الصَّبِيِّ فرمايي: او د بچي وصيت صحيح نه دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَصِحُّ إِذَا كَانَ فِيْ وُجُوْهِ الْخَيْرِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صحيح دی کله چې د خير په جهتونو کې وي لِأَنَّ عُمَرَ ﷺ أَجَازَ وَصِيَّةَ يَفَاعٍ أَوْ يَافِعٍ ځکه چې حضرت عمر ﷺ د يفاع يا يافع وصيت جائز وګرځوی وَهُوَ الَّذِيْ رَاهَقَ الْحُلُمَ او يفاع هغه بچی [هلک] دی کوم چې بلوغ ته نږدې سوی وي وَلِأَنَّهُ نَظَرٌ لَهُ او ځکه چې دا [د بچي وصيت صحيح کېدل] بچي ته مصلحت دی بِصَرْفِهِ إِلَى نَفْسِهِ فِيْ نَيْلِ الزُّلْفٰى چې بچی به د الله د رضا حاصلولو لپاره هغه د خپل ځان وطرف ته صرفوي وَلَوْ لَمْ تَنْفُذْ او که چيرې [د بچي] وصيت نافذ نه سي يَبْقٰى عَلٰى غَيْرِهِ نو مال به پر غير [د بل چا لپاره] باقي پاته سي

وَلَنَا: أَنَّهُ تَبَرُّعٌ او زموږ دليل دا دی: چې وصيت تبرع دی وَالصَّبِيُّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او بچی د تبرع اهل نه دی وَلِأَنَّ قَوْلَهُ غَيْرُ مُلْزِمٍ او ځکه چې د بچي قول مُلزِم [لازمونکی] نه دی وَفِي تَصْحِيحِ وَصِيَّتِهِ قَوْلٌ بِإِلْزَامِ قَوْلِهِ او د بچي د وصيت په صحيح ګرځولو کي د هغه د قول په مُلزم کېدلو قائل کېدل دي وَالْأَثَرُ مَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ كَانَ قَرِيبَ الْعَهْدِ بِالْحُلُمِ مَجَازًا او اثر محمول دی پر دې چې هغه بچی مجازاً په بلوغ سره قريب العهد وو [يعني د هغه پر بلوغ زيات وخت نه وو تېر سوی او داسي بچي ته هم مجازاً يفاع او هلک ويل کيږي] أَوْ كَانَتْ وَصِيَّتُهُ فِي تَجْهِيزِهِ وَأَمْرِ دَفْنِهِ يا د هغه بچي وصيت د خپل تجهيز او دفن [ښخولو] د کار په هکله وو وَذَٰلِكَ جَائِزٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نېز جائز دي وَهُوَ يُحْرِزُ الثَّوَابَ بِالتَّرْكِ عَلَى وَرَثَتِهِ او بچی به د خپلو وارثانو لپاره د مال پرېښوولو په وجه ثواب جمع کړي كَمَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چې موږ دا بيان کړه.

**اللغات:** ﴿وجوه﴾ جمع د وَجهٌ ده، د دې لفظ ډېري معناوي دي چې له هغوی څخه ځيني دا دي: صورت، جهت، لاره، نوع، ﴿يافع﴾ هغه هلک کوم چې احتلام ته نژدې سوی وي، ﴿حُلُم﴾ او حُلم: ① احتلام، ② بلوغ (بلوغ الصبی مبلغ الرجال)، ﴿نظر﴾ ① مصلحت (ښېګڼه)، ② شفقت، ﴿نَيل﴾ د فتح د باب مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿زُلفیٰ﴾ قُرب، تقرّب، رضا، مراد: قُرب الهي او ثواب، ﴿مُلزِم﴾ د افعال د باب فاعل دی: لازمونکی، ﴿يُحرز﴾ د افعال د باب مضارع ده: جمع کول، ذخيره کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د بچي وصيت جائز نه دی، حال دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د خير او نېکی په لاره کي د بچي وصيت جائز دی؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې حضرت عمر ﷺ د يو قريبُ البلوغ بچي وصيت جائز وګرځوی، کوم چې هغه د اکا د لور (ابنة العمّ) لپاره وصيت کړی وو، دا بچی د "غسّان" اوسېدونکی وو او د هغه وارث په "شام" کي وو، لنډه دا چې حضرت عمر ﷺ د هغه وصيت جائز وګرځوی، له دې څخه معلومه سوه چې د بچي وصيت جائز دی.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چې د بچي د وصيت په جائز ګرځولو کي د هغه ښېګڼه او د هغه سره شفقت دی او وصيت کول د هغه په حق کي نفع مند دي چې د وصيت په ذريعه به

هغه رضاء الهي او ثواب حاصل کړي. او که د بچي وصیت ناجائز کړی سي، نو د هغه مال به هسي پروت وي او اغیار به له هغه څخه نفع اخلي. نو ځکه غوره همدا ده چي د بچي وصیت جائز وګرځول سي د دې لپاره چي د هغه مال له ضایع کېدلو څخه محفوظ او خوندي سي.

ولنا أنه تبرّع إلخ: زموږ دلیل دا دی چي وصیت یو تبرّع او احسان دی (کمامر) او بچی د تبرّع کولو اهل نه دی. نو ځکه د هغه وصیت به هم معتبر نه وي. دویم دلیل دا دی چي د بچي قول مُلزِم (لازمونکی) نه وي (چي د هغه په ذریعه پر یو چا څه شی لازم کړی سي). او که موږ د هغه وصیت جائز وګرځوو نو د هغه د قول مُلزِم کېدل به لازم سي. حال دا چي د هغه قول مُلزِم نه دی. له دې څخه هم معلومه سوه چي د بچي وصیت جائز نه دی.

والأثر محمول إلخ: دبچي د وصیت جائز کېدلو په دلیل کي چي امام شافعي رَحِمَهُ الله د حضرت عمر رضی الله عنه کوم اثر پېش کړی دی، دلته صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه جواب ورکوي فرمایي چي دا اثر پر دې محمول دی چي هغه بچی بالغ سوی وو خو د هغه د بلوغ زیاتي ورځي نه کېدلې. نو د ما کان علیه په اعتبار سره مجازاً هغه ته "یافع" یا "یفاع" وویل سوه.

دویم جواب دا دی چي د هغه بچي وصیت د خپل تجهیز وتکفین لپاره وو. او داسي وصیت زموږ په نېز هم جائز دی.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وینا چي "په وصیت کولو سره به هغه ثواب حاصل کړي" موږ نه تسلیموو؛ ځکه د ثواب حصول یوازي په وصیت کولو سره نه کیږي. بلکي په دې سره هم کیږي چي مال د خپلو وارثانو (قریبانو) لپاره پرېښوول سي چي دا به پر خپلو قریبانو صدقه وي کوم چي زیات ثواب لري؛ لکه څرنګه چي مخکي هم د دې فضیلت او ترجیح بیان سوه.

## د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب او د پورتنی مسئلي نور وضاحت

وَالْمُعْتَبَرُ فِي النَّفْعِ وَالضَّرَرِ النَّظَرُ إِلَى أَوْضَاعِ التَّصَرُّفَاتِ او په نفع او نقصان کي معتبر د تصرفاتو [اصلي] وضعو ته کتل معتبر دي لَا إِلَى مَا يَتَّفِقُ بِحُكْمِ الْحَالِ نه هغه [وضعو] ته چي فی الحاله اتفاقا [دفعتا] واقع سي اِعْتَبِرْهُ بِالطَّلَاقِ ته پر هغه طلاق قیاس کړه! فَإِنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ وَلَا وَصِيُّهُ ځکه بچی [کوچنی] او د هغه وصي د طلاق ملکیت [او اختیار] نه لري وَإِنْ كَانَ يَتَّفِقُ نَافِعًا فِي بَعْضِ الْأَحْوَالِ که څه هم په ځیني حالتونو کي طلاق اتفاقا نفع مند واقع کیږي. وَكَذَا إِذَا أَوْصَى ثُمَّ مَاتَ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ

او همدارنګه کله چي بچی وصیت وکړي بیا تر بلوغ وروسته مړ سي [نو هم د هغه وصیت نه صحیح کیږي] لِعَدَمِ الْأَهْلِيَةِ وَقْتَ الْمُبَاشَرَةِ ځکه د مباشرت [وصیت کولو] په وخت کي اهلیت [پکښي] معدوم وو وَكَذَا إِذَا قَالَ او همدارنګه کله چي بچی ووایي إِذَا أَدْرَكْتُ فَثُلُثُ مَالِي لِفُلَانٍ وَصِيَّةٌ کله چي زه بالغ سم نو زما د مال دریمه حصه د فلانکي لپاره وصیت دی [نو هم وصیت نه صحیح کیږي] لِقُصُورِ أَهْلِيَّتِهِ ځکه د هغه اهلیت قاصر [ناقص] دی فَلَا يَمْلِكُهُ تَنْجِيزًا وَتَعْلِيقًا نو ځکه بچی به د وصیت کولو ملکیت نه لري نه د منجّز [فی الحاله] وصیت کولو او نه د مُعلق وصیت کولو كَمَا فِي الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ لکه څرنګه چي په طلاق او عتاق کي دي بِخِلَافِ الْعَبْدِ وَالْمُكَاتَبِ په خلاف د غلام او مکاتب لِأَنَّ أَهْلِيَّتَهُمَا مُسْتَتِمَّةٌ ځکه د دوی دواړو اهلیت بشپړ دی وَالْمَانِعُ حَقُّ الْمَوْلَى او مانع د مالک حق دی فَتَصِحُّ إِضَافَتُهُ إِلَى حَالِ سُقُوطِهِ نو ځکه د مالک د حق ساقطېدلو حالت ته به د وصیت اضافت صحیح وي.

**اللغات:** ﴿أوضاع﴾ جمع د وضع ده: صورت، کیفیت. ﴿إدراك﴾ د افعال د باب مصدر دی. مراد: بلوغ ته رسېدل. ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو کار په خپله کول. بذات خود کول. ﴿تنجيزًا﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: فی الحاله او فوراً (سمدستي) یو کار "کول" یا "کېدل"، فوراً واقع کول. له څه تعلیق او شرط څخه بغیر واقع کول. ﴿تعليقًا﴾ دا هم د تفعیل د باب مصدر دی: مُعلق کول. ﴿مستتمة﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث فاعل صیغه ده: کامل او بشپړ، د بشپړتیا غوښتونکی.

**تشریح:** په تېر عبارت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دلیل دا ذکر سو چي د وصیت په جائز ګرځولو کي د بچي ښېګڼه او د هغه سره شفقت دی او وصیت کول د هغه په حق کي نفع مند دي.

دلته صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه جواب ورکوي. حاصل د جواب دا دی چي د نفع او نقصان په هکله د اصلي وضع او د بنیادي حالت اعتبار کول کیږي. حال دا چي وضعاً او اصلاً د بچي افعال مضر او نقصان مند وي (وإثمه أكبر من نفعه). او دفعتاً او اتفاقي نفع لره اعتبار نسته ځکه چي عموماً د بچي افعال نفع مند نه وي. لهذا که دفعتاً د هغه په فعل کي یو فایده ولیدل سي. نو هغه فایدې لره به اعتبار نه وي. لکه څرنګه چي طلاق د خپل اصل وضع په اعتبار سره مضر دی نو هغه همېشه مضر ګڼل کیږي که څه هم دفعتاً او اتفاقاً چیري هغه نفع مند ثابتیږي، همدا وجه ده چي نه بچی (کوچنی

ملک) خپلي ښځي ته طلاق ورکولای سي او نه يې د هغه وصي ورکولای سي: ځکه د اصل وضع په اعتبار سره طلاق مضر دی.

وکذا إلخ: فرمايي که بچی د يو سړي لپاره وصيت وکړي، بيا تر بلوغ (بالغ کېدلو) وروسته هغه مړ سي، نو دا هغه دا وصيت هم باطل دی: ځکه د وصيت له شرطونو څخه يو شرط دا دی چي موصي به د وصيت اهل وي، او په مذکوره صورت کي بچی د وصيت په وخت کي د وصيت اهل نه دی: نو ځکه د هغه وصيت باطل دی.

همدارنګه که بچی داسي وصيت وکړي چي کله زه بالغ سم نو زما د مال درېيمه حصه د فلانکي لپاره وصيت ده، نو دا د وصيت تعليق دی يعني بچي خپل د بلوغ پر وخت هغه مُعلّق کړی دی او په دې صورت کي هم د هغه وصيت باطل دی: ځکه په بچي کي د وصيت اهليت ناقص او ناتمام دی. لنده دا چي په هيڅ توګه هم بچی د وصيت مالک نه دی، لکه څرنګه چي هغه د طلاق او عتاق مالک نه دی.

د بچي په خلاف په غلام او مکاتب کي د وصيت اهليت موجود دی او دوی د وصيت اهل دي، همدا وجه که غلام يا مکاتب دا خبره وکړي چي زما تر آزادی وروسته د فلانکي لپاره زما له مال څخه دومره مال وصيت دی، نو دا تعليقاً وصيت صحيح دي، او فی الحاله (تنجيزاً) صرف د مالک د حق په وجه دا وصيت نه نافذيږي او کله چي هغه آزاد کړی سي نو بيا نافذيږي، لېکن د غلام والي او مکاتب والي په حالت کي د هغه دا فعل صحيح او جائز دی.

## د مکاتب د وصيت حکم

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ وَصِيَّةُ الْمُكَاتَبِ فرمايي: او د مکاتب وصيت صحيح نه دی وَإِنْ تَرَكَ وَفَاءً که څه هم هغه [د بدل کتابت لپاره] پوره کافي مال پرې ايښی وي [يعني تر شا يې دومره مال پرې ايښی وي کوم چي د بدل کتابت اداء کولو لپاره کافي وي] لِأَنَّ مَالَهُ لَا يَقْبَلُ التَّبَرُّعَ ځکه د مکاتب مال تبرّع نه قبلوي وَقِيلَ: عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ لَا تَصِحُّ او ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول د مکاتب وصيت صحيح نه دی وَعِنْدَهُمَا تَصِحُّ، رَدًّا لَهَا إِلَى مُكَاتَبٍ يَقُولُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز صحيح دی، د وصيت په ګرځولو سره و هغه مکاتب ته کوم چي داسي وايي كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ فِيمَا أَسْتَقْبِلُ فَهُوَ حُرٌّ هر هغه مملوک [غلام يا مينځه] چي زه يې په مستقبل کي مالک سم نو هغه آزاد دی ثُمَّ عَتَقَ بيا دا مکاتب آزاد سي فَمَلَكَ بيا [د غلام يا مينځي] مالک سي وَالْخِلَافُ فِيهَا مَعْرُوفٌ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ

او په دې کې اختلاف معلوم [مشهور] دی کوم چې په خپل ځای کې پېژندل سوی دی.

**اللغات**: ﴿وفاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی. خپله معنی يې ده: پوره اداء کول، پوره کول. مراد ځني دومره مال دی کوم چې د بدل کتابت د اداء کولو لپاره کافي وي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د مکاتب وصیت تعلیقاً جائز دی لېکن تنجیزاً د هغه وصیت جائز نه دی (کمامرّ). یعني که د هغه وصیت د هغه پر آزادی مُعلّق وي نو صحیح دی، او که فی الحاله وصیت وي نو صحیح نه دی که څه هم هغه د بدل کتابت په اندازه مال پرېږدي؛ ځکه وصیت یو تبرّع او احسان دی او د مکاتب مال تبرّع نه قبلوي. د ځیني حضراتو رایه دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مکاتب وصیت صحیح نه دی، لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه وصیت صحیح دی او د هغه وصیت پر دې صورت قیاسول کېږي کله چې هغه داسي ووایي چې په راروان وخت (مستقبل) کې چې زه د کوم غلام مالک سم هغه آزاد دی او بیا په راروان وخت کې مکاتب آزاد کړی سی او بیا هغه دیو غلام مالک سي، نو غلام آزادیږي، نو څرنګه چې د مکاتب اعتاق صحیح دی، همداسې د هغه وصیت هم صحیح دی. لېکن صاحبینو رَحِمَهُمَا الله ته جواب دا دی چې دا مسئله د مُنجّز وصیت ده او مقیس علیه (یعني صاحبینو چې پر کوم صورت قیاس کړی دی هغه) مُعلّق اعتاق دی. په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې مسئله کې مشهور اختلاف دی او د جامع صغیر په باب الحنث کې د هغه پوره تفصیل ذکر سوی دی او د هغه څه بحث د هدایهٔ رابع پر ۶۵۹ صفحه په ۱۳ نمبر حاشیه کې هم سته. (احسن الهدایه)

## د حمل او جنین لپاره د وصیت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَتَجُوْزُ الْوَصِيَّةُ لِلْحَمْلِ وَبِالْحَمْلِ فرمایي: او د حمل لپاره وصیت کول او په حمل سره وصیت کول صحیح دي إِذَا وُضِعَ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ الْوَصِيَّةِ [په دې شرط] کله چې د وصیت له وخت څخه تر شپږو میاشتو په کمه موده کې حمل وزېږول سي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْوَصِيَّةَ اِسْتِخْلَافٌ مِنْ وَجْهٍ کوم چې اول [د حمل لپاره وصیت کول] دي نو په دې وجه [جائز دی] چې وصیت په یوه اعتبار سره خلیفه جوړول دي لِأَنَّهُ يَجْعَلُهُ خَلِيْفَةً فِيْ بَعْضِ مَالِهِ ځکه وصي هغه حمل [جنین] په خپل بعضې مال کې خلیفه [نائب] جوړوي وَالْجَنِيْنُ صَلُحَ خَلِيْفَةً فِي الْإِرْثِ او جنین په میراث کې د

خليفه جوړېدلو صلاحيت لري فَكَذَا فِي الْوَصِيَّةِ نو همداسي به په وصيت کي هم هغه خليفه جوړېدلای سي إِذْ هِيَ أُخْتُهُ ځکه وصيت د ميراث خور ده إِلَّا أَنَّهُ يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ خو وصيت په ردولو سره رد کيږي لِمَا فِيْهِ مِنْ مَعْنَى التَّمْلِيْكِ ځکه په هغه کي د تمليک معنیٰ سته بِخِلَافِ الْهِبَةِ په خلاف د هبې لِأَنَّهَا تَمْلِيكٌ مَحْضٌ ځکه هبه خالص تمليک دی وَلَا وِلَايَةَ لِأَحَدٍ عَلَيْهِ لِيُمَلِّكَهُ شَيْئًا او پر جنين هيڅا ته ولايت نسته چي هغه ديو شي مالک جوړ کړي وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّهُ بِعَرَضِ الْوُجُوْدِ او کوم چي دويم [په حمل سره وصيت کول] دي نو په دې وجه [جائز دي] چي حمل د وجود [پيدا کېدلو] پر مقام دی [يعني پيدا کېدلو ته نژدې دی] إِذِ الْكَلَامُ فِيمَا إِذَا عُلِمَ وُجُوْدُهُ وَقْتَ الْوَصِيَّةِ ځکه [مذکوره] خبره په هغه صورت کي ده کله چي د وصيت په وخت کي د هغه وجود [موجودېدل] معلوم وي [چي هغه د مور په نس کي موجود دی] وَبَابُهَا أَوْسَعُ لِحَاجَةِ الْمَيِّتِ وَعَجْزِهِ او د مړي د ضرورت او عاجزۍ په وجه د وصيت باب ډېر وسيع دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ فِي غَيْرِ الْمَوْجُوْدِ كَالثَّمَرَةِ په همدې وجه په غير موجود شي کي وصيت صحيح دی لکه مېوه [کوم چي د وصيت په وخت کي موجوده نه وي] فَلِأَنْ تَصِحَّ فِي الْمَوْجُوْدِ أَوْلٰى نو په موجود شي کي خو به په درجه اولیٰ وصيت صحيح وي.

**اللغات**: ﴿حمل﴾ هغه بچی چي د مور په نس (خېټه) کي وي، او همدا د جنين معنیٰ ده. ﴿استخلاف﴾ د استفعال د باب مصدر دی: خليفه جوړول، قائم مقام کول، نائب کول. ﴿عرض﴾ د دې لفظ ډېر معناوي دي: پېش کېدل وغيره، عرض الوجود: د وجود پر پېشگاه، د وجود پېش کېدلو پر مقام.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په نس کي د موجود حمل لپاره هم وصيت کول جائز دي او خودي د حمل وصيت کول (حمل په وصيت کي ورکول) هم جائز دي. مثلاً که څوک وصيت وکړي چي زما له مال څخه دومره مال د هغه حمل لپاره دی کوم چي د فلانکۍ ښځي په نس کي دی. يا دا وصيت وکړي چي زما د فلانکۍ مينځي په نس کي چي کوم حمل دی هغه د فلانکي کس لپاره دی. نو دا دواړه صورتونه جائز دي، لېکن شرط دا دی چي د وصيت په وخت کي حمل په نس کي موجود وي. او په نس کي د حمل د وجود علامه دا ده چي د وصيت له وخت څخه تر شپږو مياشتو په کمه موده کي بچی پيدا سي.

أمّا الأول إلخ: يعني د حمل (جنين) لپاره د وصيت جائز کېدلو دليل دا دی چې وصيت من وجه استخلاف دی: ځکه موصیٰ به (جنين) د موصي تر مرګ وروسته د موصیٰ لهٗ په ملکيت کې داخليږي او موصي ابتداءً موصیٰ لهٗ د وصيت د مال خليفه جوړوي کوم چې د موصي تر مرګ وروسته هغه ته حاصليږي، او جنين په ميراث کې د خپل مورث خليفه کېدلای سي، لهذا ميراث کوم چې د وصيت خور ده په هغه کې به هم جنين د موصي خليفه کېدلای سي: په وصيت او ميراث کې فرق دا دی چې په وصيت کې د موصي له طرفه تمليک کيږي (يعني هغه يو څوک د خپل څه مال مالک جوړوي) او دا تمليک د شريعت له طرفه جبراً نه ثابتيږي، نو ځکه په هغه کې رجوع کېدلای سي: حال دا چې په ميراث کې مورث ته د رجوع حق حاصل نه دی: ځکه ميراث محض استخلاف دی او شرعاً په هغه کې جبراً ملکيت ثابتېدلای سي.

بخلاف الهبة إلخ: فرمايي چې د حمل لپاره وصيت خو جائز دی، لېکن هبه جائز نه ده: ځکه هبه خالص تمليک دی او په هغه کې استخلاف جاري نه دی او د تمليک (مالک جوړولو) لپاره د موهوب لهٗ موجودېدل ضروري دي، حال دا چې "حمل" تر اوسه ناپيدا شده وي او پر هغه هيچا ته ولايت نه وي، نو ځکه د حمل لپاره هبه صحيح نه ده.

وأما الثاني إلخ: يعني د حمل د وصيت جائز کېدلو دليل دا دی چې مذکوره مسئله د هغه حمل (جنين) په هکله ده چې د هغه د وجود قطعي او يقيني علم وي لکه څرنګه چې په "إذا وضع لأقل إلخ" سره دا خبره واضحه کړی سوه او ښکاره ده چې کله حمل په يقيني توګه موجود او معلوم وي نو په را روان نژدې وخت (مستقل قريب) کې به هغه پيدا هم سي، او د مړي د ضرورت او مجبوري په خاطر شريعت د وصيت باب ډېر وسيع کړی دی، نو ځکه د حمل وصيت هم جائز دی، او فقط دا نه بلکې که څوک دا وصيت وکړي چې زما د باغ مېوه د فلانکي لپاره ده، حال دا چې مېوه د وصيت په وخت کې موجوده نه وي، نو هم وصيت جائز کيږي، لهذا کله چې د هغه مېوي کوم چې معدومه ده وصيت جائز دی، نو د موجود حمل وصيت خو به په درجه اولیٰ جائز وي.

## د حامله مینځې په وصیت کې د هغې د حمل د استثنا کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى بِجَارِيَةٍ إِلَّا حَمْلَهَا فرمایي: او څوک چې د مینځې وصیت وکړي مګر د هغې د حمل صَحَّتِ الْوَصِيَّةُ وَالِاسْتِثْنَاءُ نو وصیت او استثناء صحیح کیږي لِأَنَّ اِسْمَ الْجَارِيَةِ لَا يَتَنَاوَلُ الْحَمْلَ لَفْظًا ځکه اسم د جاریه [مینځه] د لفظ په اعتبار سره حمل لره نه شاملیږي وَلٰكِنَّهُ يَسْتَحِقُّ بِالْإِطْلَاقِ تَبَعًا لیکن د مطلق والي [مطلق جاریه ویلو] په وجه تبعاً د حمل استحقاق [هم] ثابتیږي فَإِذَا أَفْرَدَ الْأُمَّ بِالْوَصِيَّةِ نو کله چې موصي یوازي [جلا] د مور وصیت وکړي صَحَّ إِفْرَادُهَا یوازي د مور وصیت کول به صحیح وي وَلِأَنَّهُ يَصِحُّ إِفْرَادُ الْحَمْلِ بِالْوَصِيَّةِ او ځکه چې یوازي د حمل وصیت کول صحیح دي فَجَازَ اسْتِثْنَاؤُهُ نو ځکه د هغه استثناء به هم جائز وي وَهٰذَا هُوَ الْأَصْلُ أَنَّ مَا يَصِحُّ إِفْرَادُهُ بِالْعَقْدِ او همدا قاعدهٔ کلیه ده چې د کوم شي عقد کول چې یوازي صحیح وي يَصِحُّ اسْتِثْنَاؤُهُ مِنْهُ نو له عقد څخه د هغه استثناء صحیح ده إِذْ لَا فَرْقَ بَيْنَهُمَا ځکه د دې دواړو [صحة عقد او استثناء] تر مینځ فرق نسته وَمَا لَا يَصِحُّ إِفْرَادُهُ بِالْعَقْدِ او د کوم شي عقد کول چې یوازي صحیح نه وي لَا يَصِحُّ اسْتِثْنَاؤُهُ مِنْهُ نو له عقد څخه د هغه استثناء هم صحیح نه ده وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوعِ او دا [قاعدهٔ کلیه] په کتاب البیوع کې تیر سوې ده.

**اللغات:** ﴿لا يتناول﴾ د تفاعل له بابه د نفي صیغه ده: شاملیدل (ګډیدل). مشتمل کیدل. ﴿إفراد﴾ د افعال د باب مصدر دی: یوازي او تنها کول. جلا کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی کوم چې پر ډیره مشهوره قاعده مبني دی او د هغه قاعدې حاصل دا دی چې کوم شی د بل شي تابع وي او له متبوع څخه بغیر یوازي پر هغه تابع شي عقد کېدلای سي، نو له متبوع څخه د هغه تابع استثنا هم جائز ده. او که یوازي پر تابع عقد نه سو کېدلای. نو له متبوع څخه د هغه استثنا هم جائز نه ده. او حمل د مور تابع وي او یوازي پر حمل عقد کېدلای سي. نو ځکه (په وصیت کې) له مور څخه د حمل استثنا هم جائز ده. لهذا که څوک د خپلې مینځې وصیت وکړي او د هغې د حمل وصیت نه وکړي. نو وصیت جائز او صحیح دی او د اعتراض هیڅ موقع نسته؛ ځکه نوم د "جاریه" صرف د مینځې سره خاص دی او په لفظي اعتبار سره حمل په جاریه کې شامل نه دی.

## له وصیت څخه د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلْمُوصِي الرُّجُوعُ عَنِ الْوَصِيَّةِ فرمايي: او وصيت کونکي لره له وصيت څخه رجوع کول جائز دي لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ لَمْ يَتِمَّ ځکه وصيت يو داسي تبرّع ده کوم چي [تر اوسه] تام سوې نه ده فَجَازَ الرُّجُوعُ عَنْهُ كَالْهِبَةِ نو ځکه له وصيت څخه به رجوع جائز وي لکه هبه [چي له هغه څخه رجوع جائز ده] وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ فِي كِتَابِ الْهِبَةِ او دا مورږ په کتابُ الهبه کي ثابته کړې ده وَلِأَنَّ الْقَبُولَ يَتَوَقَّفُ عَلَى الْمَوْتِ او ځکه چي [د وصيت] قبول [د موصي] پر مرګ موقوف دي وَالْإِيجَابُ يَصِحُّ إِبْطَالُهُ قَبْلَ الْقَبُولِ او له قبول څخه مخکي د ايجاب باطلول صحيح دي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په بيع کي.

**اللغات:** ﴿يتوقف﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: موقوف کېدل (موقوف پاتېدل).

**تشريح: مسئله:** دا ده که موصي له خپل وصيت څخه رجوع کول وغواړي، نو هغه ته د رجوع کولو پوره حق سته؛ ځکه وصيت غير تام تبرّع ده او د تبرّع حکم دا دی چي تر څو هغه تام او پوره سوې نه وي، له هغه څخه رجوع کېدلای سي، لکه هبه چي تر څو تام سوې نه وي (مثلاً موهوب لهٗ تر اوسه پر موهوب شي قبضه نه وي کړې)، نو واهب له هبې څخه رجوع کولای سي، نو همداسي موصي هم له وصيت څخه رجوع کولای سي.

په دې هکله بل دليل دا دی چي د وصيت قبول (قبلول) د موصي پر مرګ موقوف دي (کما مرّ) او له قبول څخه مخکي ايجاب باطلول کېدای سي، لهذا موصي کوم چي ايجاب کونکی دی که د موصیٰ لهٗ له قبول څخه مخکي خپل ايجاب باطل کړي، نو دا ابطال صحيح دی. لکه په بيع کي چي کله يو عاقد ايجاب وکړي او بيا د بل عاقد له قبول څخه مخکي هغه ايجاب کونکی عاقد خپل ايجاب باطل کړي، نو دا ابطال صحيح دی، نو همداسي په مذکوره مسئله کي له وصيت څخه رجوع هم صحيح ده.

## د رجوع طريقه او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا صَرَّحَ بِالرُّجُوعِ فرمايي: او کله چي موصي صراحتاً رجوع وکړي أَوْ فَعَلَ مَا يَدُلُّ عَلَى الرُّجُوعِ يا داسي کار وکړي کوم چي په رجوع باندي دلالت کوي كَانَ رُجُوعًا نو دا رجوع ګرځي أَمَّا الصَّرِيحُ فَظَاهِرٌ کوم چي صريح [صراحتاً رجوع کول] دي نو ښکاره ده [چي هغه رجوع ګرځي] وَكَذَا الدَّلَالَةُ او همدارنګه دلالت [دلالتاً رجوع کول هم ښکاره ده] لِأَنَّهَا تَعْمَلُ عَمَلَ الصَّرِيحِ ځکه دلالت د صريح په

ځېر عمل کوي نَقَامَ مَقَامَ قَوْلِهِ قَدْ أَبْطَلْتُ نو دا [رجوع کول] د موصي د دې قول قائم مقام سو [يعني لکه هغه چي ووايي]: قد أبطلتُ [ما وصيت باطل کړی] وَصَارَ كَالْبَيْعِ بِشَرْطِ الْخِيَارِ او داسي سو لکه د خیار په شرط سره بیع کول فَإِنَّهُ يَبْطُلُ الْخِيَارُ فِيهِ بِالدَّلَالَةِ ځکه په هغه [بیع بشرط الخیار] کي په دلالت سره خيار باطلیږي.

**اللغات**: ﴿صرح﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: په ښکاره الفاظو سره ذکر کول. په وضاحت سره بیانول. ﴿یدلّ﴾ د نصر د باب مضارع ده: دلالت کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي موصي ته چي له وصیت څخه کوم د رجوع حق حاصل دی، د دې رجوع دوې طریقې دي:

①... یوه دا چي موصي صراحتاً رجوع وکړي او په ښکاره الفاظو داسي ووایي چي ما وصیت باطل کړی.

②... دویمه طریقه دا چي موصي یو داسي کار وکړي کوم چي پر رجوع دلالت کوي. مثلاً موصي د یو چا لپاره د کور وصیت وکړي چي زما تر مرګ وروسته دا کور د فلانکي دی لېکن بیا موصي هغه کور په کرایه ورکړي، یا مثلاً د یو کپړې وصیت وکړي لېکن بیا هغه کپړه خپله استعمال کړي. نو په دې دواړو صورتونو کي له وصیت څخه رجوع ثابتیږي، لکه په بیع کي چي کله مشتري د خپل ځان لپاره د خیار شرط لګولی وي، نو څرنګه چي د مشتري په صراحتاً ابطال سره خیار باطلیږي. همداسي په دلالتاً ابطال سره هم خیار باطلیږي.

## له وصیت څخه د رجوع کولو بل صورت او قاعده

ثُمَّ كُلُّ فِعْلٍ لَوْ فَعَلَهُ الْإِنْسَانُ فِي مِلْكِ الْغَيْرِ بیا هر داسي کار چي که هغه انسان د بل چا په ملکیت کي وکړي يَنْقَطِعُ بِهِ حَقُّ الْمَالِكِ نو په هغه سره د مالک حق منقطع کیږي فَإِذَا فَعَلَهُ الْمُوصِي لهذا کله چي موصي داسي کار وکړي كَانَ رُجُوعًا نو دا رجوع ګرځي وَقَدْ عَدَدْنَا هٰذِهِ الْأَفَاعِيلَ فِي كِتَابِ الْغَصْبِ او موږ [مخکي] په کتابُ الغصب کي دا افعال شمېرلي دي.

**اللغات**: ﴿عددنا﴾ د نصر له بابه د جمع متکلم صیغه ده: شمېرل. ګڼل. ﴿افاعیل﴾ جمع د فعل ده: کار.

**تشریح**: په دې عبارت کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د رجوع عن الوصیة په هکله بل صورت او قاعده بیان کړې ده. حاصل یې دا دی چي هر داسي کار چي که یو څوک هغه د بل چا په ملکیت کي وکړي نو د هغه په وجه له مذکوره شي څخه د مالک حق ختمیږي. نو داسي کار یو ډول تصرف او

تغیر دی. لهذا که موصي د وصیت په شي (موصی به) کي داسي کار وکړي. نو دا له وصیت څخه د رجوع دلیل دی. مثلاً که څوک اوسپنه غصب کړي او له هغه څخه یو شی جوړ کړي (مثلا توره). نو ښکاره خبره ده چي اوس دا مغصوب شی (اوسپنه) مغصوب منهٔ ته نه سي واپس کول کېدای او غاصب به د هغه ضمان (تاوان) اداء کوي. نو همدغه ډول که موصي د یو چا لپاره د اوسپني وصیت وکړي او بیا موصي له هغه څخه یو شی جوړ کړي. نو د هغه دا فعل هم له وصیت څخه رجوع ده. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي مخکي په کتاب الغصب کي موږ د دې افعالو یادونه کړې ده.

**د رجوع کولو بل صورت**

وَكُلُّ فِعْلٍ يُوْجِبُ زِيَادَةً فِي الْمُوْصٰى بِهٖ او هر داسي کار کوم چي په موصیٰ به کي زیاتوب ثابت کړي وَلَا يُمْكِنُ تَسْلِيْمُ الْعَيْنِ إِلَّا بِهَا او له هغه څخه بغیر د عین [موصیٰ به] ورسپارل ممکن نه وي فَهُوَ رُجُوْعٌ إِذَا فَعَلَهُ نو دا رجوع ده کله چي موصي هغه کار وکړي مِثْلُ السَّوِيْقِ يَلُتُّهُ بِالسَّمْنِ لکه نیني چي موصي هغه په غوړیو کي لت پت کړي وَالدَّارِ يَبْنِيْ فِيْهِ الْمُوْصِيْ او لکه کور چي موصي په هغه کي ځای جوړ کړي وَالْقُطْنِ يَحْشُوْ بِهٖ او لکه پمبه چي موصي په هغه سره یو شی [بالښت وغیره] ډک کړي وَالْبِطَانَةِ يُبَطِّنُ بِهَا او لکه [الاندینی؟] استر چي موصي په هغه سره استر جوړ کړي وَالظِّهَارَةِ يُظَهِّرُ بِهَا او لکه ابره [پاسنی استر] چي موصي په هغه سره ابره جوړه کړي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيْمُهُ بِدُوْنِ الزِّيَادَةِ ځکه [دلته] له زیاتوب څخه بغیر د هغه [نینو. کور وغیره] ورسپارل ممکن نه دي وَلَا يُمْكِنُ نَقْضُهَا او نه د زیاتوب ماتول ممکن دي لِأَنَّهُ حَصَلَ فِيْ مِلْكِ الْمُوْصِيْ مِنْ جِهَتِهٖ ځکه دا زیاتوب د موصي له طرفه د موصي په ملکیت کي حاصل سوی دی بِخِلَافِ تَخْصِيْصِ الدَّارِ الْمُوْصٰى بِهَا په خلاف د وصیت کړی سوي کور د چونه کولو وَهَدْمِ بِنَائِهَا او [په خلاف] د وصیت کړی سوی کور د ودانۍ نړولو لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي التَّابِعِ ځکه دا په تابع کي تصرف دی.

**اللغات**: ﴿یوجب﴾ د افعال د باب مضارع ده: واجبول. ثابتول. ﴿تسلیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ورسپارل. ﴿سویق﴾ نیني. د غنمو او اوربشو وریته سوي او میده سوي دانې (پر اور کباب کړل سوي او میده سوي دانې). د غنمو او اوربشو وریته سوي (کباب سوي) اوړه. ﴿سَمْن﴾ غوړي (د غوا او داسي نورو

غوړي). ﴿قطن﴾ پمبه (پنبه). مالوچ (صفا سوې پنبه چي پنبه دانه ځني کښل سوې وي). ﴿يحشو﴾ د نصر د باب مضارع ده: بالښت وغيره په پمبه وو ډکول. په بالښت کي پمبه اچول. ﴿بِطَانَة﴾ د کپړې او جامې لاندينی (دننی) استر. ﴿الظِهَارَة﴾ (بکسر الظاء): د کپړې او جامې پاسنی (بنکاره) استر. صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی: الظِهَارَة من الثوب مايُظهر للعين منه ولا يلي الجسد وهو خلاف البِطَانَة. يا په بله وينا دا چي د جامې د مخ استر او د مخ کپړه. ﴿هَدَم﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که موصي په موصیٰ بهٖ کي داسي زياتوب (اضافه) وکړي کوم چي له موصیٰ بهٖ ځخه نه سي جلا کېدای او موصیٰ بهٖ له هغه زياتوب ځخه بغير موصیٰ لهٗ ته جلا ورسپارل ممکن نه وي. نو دا هم له وصيت ځخه د رجوع دليل دی. مثلاً که موصیٰ بهٖ نينې وي او بيا موصي هغه په غوړو کي لت پت کړي او په غوړو سره يې خيشتې کړي. يا مثلاً موصیٰ بهٖ کور وي (يعني موصي د کور وصيت کړی وي) او بيا موصي په هغه کور کي يو ځای جوړ کړي. يا مثلاً موصیٰ بهٖ پمبه (پنبه) وي او موصي په هغه سره بالښت وغيره ډک کړي او داسي نور. نو په دې ټولو صورتونو کي د موصي دا فعل له وصيتِ ځخه رجوع شمېرل کيږي؛ ځکه له دې تصرفاتو ځخه بغير موصیٰ بهٖ جلا ورسپارل ممکن نه دي.

د دې په خلاف که موصي د وصيت کور چونه کړي. يا په هغه کي يو ځای ونړوي، نو دا له وصيت ځخه رجوع نه ده؛ ځکه دا په تابع کي تصرف کول دي او د تابع په تصرف سره پر اصل هيڅ اثر نه لوېږي. نو ځکه په دې صورت کي وصيت برقرار پاتيږي.

### د رجوع کولو بل صورت

وَكُلُّ تَصَرُّفٍ أَوْجَبَ زَوَالَ مِلْكِ الْمُوْصِيْ او هر داسي تصرف کوم چي د موصي د ملکيت زائلېدل ثابت کړي فَهُوَ رُجُوْعٌ نو هغه رجوع ده كَمَا إِذَا بَاعَ الْعَيْنَ الْمُوْصٰى بِهٖ لکه کله چي موصي وصيت کړی سوی شی خرڅ کړي ثُمَّ اشْتَرَاهُ بيا هغه رانيسي أَوْ وَهَبَهُ يا موصي هغه هبه کړي ثُمَّ رَجَعَ فِيْهِ بيا په هغه [هبه] کي رجوع وکړي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَا تَنْفُذُ إِلَّا فِيْ مِلْكِهٖ ځکه وصيت صرف د موصي په خپل ملکيت کي نافذيږي فَإِذَا أَزَالَهُ نو کله چي موصي هغه [خپل ملکيت] زائل کړی كَانَ رُجُوْعًا نو دا رجوع سوه وَذَبْحُ الشَّاةِ الْمُوْصٰى بِهَا رُجُوْعٌ او د وصيت کړی سوي پسه ذبح کول رجوع ده لِأَنَّهٗ

لِلصَّرْفِ إِلَىٰ حَاجَتِهِ عَادَةً ځکه داسي کول عادتاً په خپل ضرورت کي د صرفولو لپاره وي [يعني پسه ذبح کول وغیره عموماً انسان د خپل ضرورت لپاره کوي] فَصَارَ هٰذَا الْمَعْنٰى أَصْلًا أَيْضًا لهذا دغه معنیٰ هم يوه قاعده وګرځېده وَغَسْلُ الثَّوْبِ الْمُوْصٰى بِهِ لَا يَكُوْنُ رُجُوْعًا او د وصيت کړی سوي کپړې پرېولل رجوع نه ګرځي لِأَنَّ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُعْطِيَ ثَوْبَهُ غَيْرَهُ ځکه څوک چي وغواړي چي خپله کپړه بل چا ته ورکړي يَغْسِلُهُ عَادَةً نو عادتاً هغه کپړه پرېولي فَكَانَ تَقْرِيْرًا نو دا به د وصيت ثابتول [او مضبوطول] وي.

**اللغات**: ﴿أوجب﴾ د افعال د باب ماضي ده: واجبول. ثابتول. ﴿أزال﴾ د افعال د باب ماضي ده: زائلول. ليري کول. ﴿شاة﴾ اسم جنس دی: پسه. وزګړی. بزه. مېږه پر هر يوه يې اطلاق کيږي. ﴿صَرْف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګرځول. خرچول (مصرفول). ﴿تقرير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ثابتول. باقي ساتل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موصي په موصیٰ بهٖ کي داسي تصرف وکړي چي د هغه په وجه له موصیٰ بهٖ څخه د موصي ملکيت زائليږي. مثلاً موصیٰ بهٖ شی خرڅ کړي يا يې په هبه کي چا ته ورکړي. نو په دې دواړو صورتونو کي وصيت باطليږي که څه هم وروسته موصي هغه رانيسي يا يې له واهب څخه واپس واخلي: ځکه وصيت د موصي په خپل ملکيت کي نافذيږي او دلته د بيع او هبې په وجه له موصیٰ بهٖ څخه د موصي ملکيت زائل سو. نو ځکه له وصيت څخه رجوع کول به متحقق سي.

وذبح الشاة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که موصیٰ بهٖ پسه وي او موصي هغه ذبح کړي. نو دا هم له وصيت څخه رجوع ده؛ ځکه عموماً انسان د خپل ضرورت لپاره پسه وغيره ذبح کوي. نو ځکه د پسه ذبح کول به رجوع وي، او له همدې څخه دا قاعده هم ښکاره سوه چي هر هغه تصرف کوم چي موصي د خپل ضرورت لپاره په موصیٰ بهٖ کي وکړي. هغه رجوع شمېرل کيږي.

وغسل الثوب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د يو چا لپاره د يو کپړې وصيت وکړي (چي مثلاً زما دا څادر وغيره د فلانکي دي). او بيا هغه کپړه (څادر) پرېولي. نو دا له وصيت څخه رجوع نه ده: ځکه عموماً کله چي يو څوک يو چا ته کپړه ورکوي. نو پرېوللې کپړه ورکوي. لهذا پرېولل به د وصيت لپاره اثبات وي. نه رجوع.

## له خپل وصیت څخه د انکار کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِنْ جَحَدَ الْوَصِيَّةَ فرمايي: او که څوک د وصيت انکار وکړي لَمْ يَكُنْ رُجُوْعًا نو دا انکار [له وصيت څخه] رجوع نه ګرځي كَذَا ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ همداسي امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ۞: يَكُوْنُ رُجُوْعًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي رجوع ګرځي لِأَنَّ الرُّجُوْعَ نَفْيٌ فِي الْحَالِ وَالْجُحُوْدَ نَفْيٌ فِي الْمَاضِيْ وَالْحَالِ ځکه رجوع فی الحاله [د وصيت] نفي کول دي او جحود په ماضي او حال دواړو کي [د وصيت] نفي کول دي فَأَوْلَىٰ أَنْ يَكُوْنَ رُجُوْعًا نو ځکه دا جحود [انکار کول] به په درجه اولیٰ رجوع وي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْجُحُوْدَ نَفْيٌ فِي الْمَاضِيْ او د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي جحود په ماضي کي [د وصيت] نفي کول دي وَالْاِنْتِفَاءُ فِي الْحَالِ ضَرُوْرَةُ ذٰلِكَ او فی الحاله [د وصيت] منتفي کېدل د هغه [نفی فی الماضي] له ضرورت څخه دي وَإِذَا كَانَ ثَابِتًا فِي الْحَالِ او کله چي [د موصي کذب] فی الحاله ثابت دي كَانَ الْجُحُوْدُ لَغْوًا نو [د موصي] انکار به لغو وي أَوْ لِأَنَّ الرُّجُوْعَ إِثْبَاتٌ فِي الْمَاضِيْ وَنَفْيٌ فِي الْحَالِ يا ځکه چي رجوع په ماضي کي [د وصيت] ثابتول دي او په حال کي نفي کول دي وَالْجُحُوْدُ نَفْيٌ فِي الْمَاضِيْ وَالْحَالِ او انکار په ماضي او حال دواړو کي [د وصيت] نفي کول دي فَلَا يَكُوْنُ رُجُوْعًا حَقِيْقَةً نو ځکه هغه به حقيقتاً رجوع نه ګرځي وَلِهٰذَا لَا يَكُوْنُ جُحُوْدُ النِّكَاحِ فُرْقَةً په همدې وجه د نکاح انکار کول فرقت نه ګرځي.

**اللغات:** ﴿جحد﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول. ﴿انتفاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: نفي کېدل، ختمېدل. ﴿فرقة﴾ جدايي، جلا والی (ښځه او خاوند سره جلا کېدل).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چي که موصي د وصيت انکار وکړي چي ما خو هيڅ وصيت نه دی کړی. نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز په دې سره رجوع نه ثابتيږي: لیکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وفی المجمع: وبه يفتى ومثله فی العينی، ثم نقل عن العيون أن الفتوىٰ على أنه رجوع (ای قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله)...ولكن المتون على الأول.... وجعل في المجمع قول محمد رَحِمَهُ الله مختار المفتوى.... وكذا قوله ما أخذ به القانون المصري كما في الفقه الاسلامي.... وهو مختار صاحب الهداية. انظر المراجح ودفع التعارض [القول الراجح ج:۲، ص:۲۷۲]

الله په نیز دا هم رجوع ده: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي په رجوع کي فی الحاله وصیت نفي کول کیږي. یعني د رجوع حقیقت دا دی چي په رجوع سره په ماضي کي د وصیت اثبات راځي او فی الحاله (د رجوع په وخت کي) وصیت نفي کول کیږي او په دې توګه رجوع ثابتیږي. خو د وصیت د انکار کولو (جحود الوصیة) په صورت کي په ماضي کي هم وصیت نفي کول کیږي او په حال کي هم یعني په جحود سره په ماضي او حال دواړو کي د وصیت نفي کول مقصود وي. نو کله چي صرف د حال په نفي سره رجوع ثابتیږي. نو د ماضي او حال دواړو په نفي سره به په درجه اولیٰ رجوع ثابتیږي.

ولمحمد إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دی او حاصل یې دا دی چي په جحود (انکار کولو) سره په ماضي کي د وصیت نفي کول کیږي او فی الحاله د وصیت منتفي کېدل په ماضي کي د واقع سوي نفي د لوازماتو څخه دي. په بله وینا دا چي د ماضي پر نفي د حال نفي مبني دی. لیکن څرنګه چي په ماضي کي د موصي له طرفه جحود نسته بلکي اثبات دی؛ ځکه مذکوره مسئله په هغه صورت کي فرض کړل سوې ده چي موصي په ماضي کي وصیت کړی وي. لهذا کله چي په ماضي کي جحود نسته. بلکي اثبات سته. نو په حال کي به د موصي جحود لغو وي او د ماضي پر اثبات د نه مبني کېدلو په وجه به دا جحود (انکار) کذب او دروغ وي (ځکه کله چي هغه په ماضي کي وصیت کړی دی لیکن اوس د هغه انکار کوي. نو معلومه خبره ده چي موصي به کاذب وي) او موصي به د دې جحود په وجه رجوع کونکی نه شمېرل کیږي.

أو لأن الرجوع إلخ: د امام محمد رَحِمَهُ الله دویم دلیل دا دی چي د رجوع او جحود حقیقت یو له بل څخه بالکل جلا دي، په رجوع کي په ماضي کي (د وصیت) اثبات راځي او په حال کي (د وصیت) نفي راځي او په جحود کي دواړه ځایونه (د وصیت) نفي راځي، نو کله چي د دواړو حقیقت سره جلا دی. نو بیا په جحود او انکار کولو سره څنګه حقیقتاً رجوع ثابتېدلای سي!، همدا وجه ده چي له نکاح څخه انکار کول فرقت او طلاق نه شمېرل کیږي؛ ځکه د دواړو حقیقت سره جلا دی: ځکه د جحود مقصد په ماضي کي د نکاح نفي کول دي او د طلاق مقصد په ماضي کي د نکاح اثبات او فی الحاله د نکاح نفي کول دي. نو څرنګه چي په دې دواړو کي د تقابل په وجه یو د بل پر ځای د استعارې په توګه نه استعمالول کیږي. نو همداسي د انکار او رُجوع ترمینځ هم تقابل دی. نو ځکه له دوی څخه به یو د بل پر ځای نه استعمالول کیږي.

## خپل وصیت ته "حرام" یا "سود" ویل (حکم او تفصیل)

وَلَوْقَالَ: كُلُّ وَصِيَّةٍ أَوْصَيْتُ بِهَا لِفُلَانٍ او که موصي ووایي: هر هغه وصیت کوم چې ما د فلانکي لپاره کړی دی فَهُوَحَرَامٌ وَرِبًا نو هغه حرام او سُود دی لَايَكُوْنُ رُجُوْعًا نو دا رجوع نه ګرځي لِأَنَّ الْوَصْفَ يَسْتَدْعِي بَقَاءَ الْأَصْلِ ځکه وصف د اصل د باقي والي تقاضا کوي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: فَهِيَ بَاطِلَةٌ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي ووایي: [هر هغه وصیت چې د ما فلانکي لپاره کړی دی] نو هغه باطل دی لِأَنَّهُ الذَّاهِبُ الْمُتَلَاشِيْ ځکه باطل هغه دی کوم چې ختم سوی معدوم سوی وي وَلَوْقَالَ: أَخَّرْتُهَا او که ووایي: چې ما وصیت مؤخر کړی لَايَكُوْنُ رُجُوْعًا نو دا رجوع نه ګرځي لِأَنَّ التَّأْخِيْرَ لَيْسَ لِلسُّقُوْطِ ځکه [دوصیت] مؤخر کول [دوصیت] د ساقطېدلو لپاره نه دي كَتَأْخِيْرِ الدَّيْنِ لکه قرض مؤخر کول بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: تَرَكْتُ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي ووایي: ما [وصیت] پرېښووی لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه پرېښوول اسقاط [دوصیت ساقطول] دي.

**اللغات**: ﴿يستدعي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: تقاضا کول، غوښتل. ﴿ذاهب﴾ د فتح د باب فاعل دی: تلونکی، ختمېدونکی. ﴿متلاشي﴾ د تفاعل د باب فاعل دی: لاشي کېدونکی، معدوم کېدونکی (نېستېدونکی). ﴿أخرت﴾ د تفعیل له بابه د واحد متکلم ماضي صیغه ده: مؤخر کول، ځنډول، وروسته کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که موصي ووایي چې د فلانکي لپاره چې ما هر وصیت کړی دی، هغه وصیت حرام او سُود دی (یا مثلاً هغه وایي چې ما د فلانکي لپاره د کومو شیانو وصیت کړی دی. هغه ټوله حرام او سُود دي). نو دا رجوع عن الوصیة نه ده او په دې سره رجوع نه ثابتیږي: ځکه چې حرام کېدل او سود کېدل یو وصف دی او وصف د اصل بقاء لره متضمن وي چې اصل (وصیت) به باقي وي. نو ځکه د موصي دا قول به رجوع نه وي. بلکې د وصیت اثبات به وي او مطلب به یې دا وي چې وصیت موجود دی که څه هم هغه سود او حرام دی.

بخلاف إلخ: یعني که موصي داسې ووایي چې "كلّ وصية أوصيتُ بها لفُلان فهي باطلة". نو په دې صورت کې د هغه دا قول رجوع ده: ځکه باطل هغه ته وایي کوم چې معدوم او ختم سي او وصیت په هغه صورت کې معدوم کیږي کله چې موصي له وصیت څخه رجوع وکړي.

ولوقال إلخ: د دې حاصل دا دی چې که موصي ووايي چې ما د فلانکي لپاره وصيت مؤخر او وروسته کړی، نو دا هم رجوع نه ده او په تأخير (مؤخر کولو) سره رجوع نه ثابتيږي: ځکه تأخير د سقوط لپاره نه وي او په تأخير کې د اثبات اړخ غالب وي تر نفي. مثلاً که د قرض مالک له مقروض څخه د قرض اخيستل مؤخر کړي (چې زه د راروان کال پر ځای بل کال قرض در څخه اخلم)، نو په دې سره د قرض اسقاط نه ثابتيږي، نو همداسې به د وصيت په تأخير سره هم د وصيت اسقاط نه ثابتيږي.

بخلاف ما إذا إلخ: فرمايي که موصي داسې ووايي چې ما وصيت پرېښوو، نو دا رجوع ده: ځکه پرېښوول اسقاط (يعني د وصيت ساقطول) دي او اسقاط رجوع ده. نو ځکه ترک (پرېښوول) به هم رجوع وي.

## د رجوع يو مخصوص صورت او تفصيل

وَلَوْ قَالَ: الْعَبْدُ الَّذِيْ أَوْصَيْتُ بِهِ لِفُلَانٍ او که موصي ووايي: هغه غلام چې ما د فلانکي لپاره د هغه وصيت کړی دی فَهُوَ لِفُلَانٍ نو هغه غلام [تر دې وروسته] د فلانکي دی كَانَ رُجُوْعًا نو دا رجوع ګرځي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَدُلُّ عَلٰى قَطْعِ الشَّرِكَةِ ځکه [مذکوره] لفظ د شرکت پر ختمولو دلالت کوي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصٰى بِهِ لِرَجُلٍ ثُمَّ أَوْصٰى بِهِ لِآخَرَ په خلاف د هغه صورت کله چې څوک د يوه سړي لپاره د غلام وصيت وکړي بيا د بل سړي لپاره د هغه وصيت وکړي لِأَنَّ الْمَحَلَّ يَحْتَمِلُ الشِّرْكَةَ ځکه [دلته] محل [غلام] د شرکت احتمال لري وَاللَّفْظَ صَالِحٌ لَهَا او دا لفظ د شرکت صلاحيت لرونکی دی وَكَذَا إِذَا قَالَ: فَهُوَ لِفُلَانٍ وَارِثِيْ او همدارنګه کله چې موصي ووايي: [چې ما د فلانکي لپاره د کوم غلام وصيت کړی وو] نو هغه غلام زما د فلانکي وارث دی يَكُوْنُ رُجُوْعًا عَنِ الْأَوَّلِ نو دا له اول څخه رجوع ګرځي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَيَكُوْنُ وَصِيَّةً لِلْوَارِثِ او [غلام] د وارث لپاره وصيت ګرځي وَقَدْ ذَكَرْنَا حُكْمَهٗ او د دې حکم موږ [مخکې] ذکر کړی دی وَلَوْ كَانَ فُلَانٌ الْآخَرُ مَيِّتًا حِيْنَ أَوْصٰى او که هغه بل فلانکی [دويم موصیٰ له] د وصيت کولو په وخت کې مړ وي فَالْوَصِيَّةُ الْأُوْلٰى عَلٰى حَالِهَا نو اول وصيت پر خپل حال پاته دی لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ الْأُوْلٰى إِنَّمَا تَبْطُلُ ضَرُوْرَةَ كَوْنِهَا لِلثَّانِيْ ځکه اول وصيت د دې ضرورت په وجه باطليږي چې هغه د دويم

موصیٰ لهٔ لپاره دی وَلَمْ يَتَحَقَّقْ حال دا چې [دلته] هغه [ د دويم موصیٰ لهٔ لپاره وصيت] ثابت نه سو فَبَقِيَ لِلْأَوَّلِ نو وصيت د اول موصیٰ لهٔ لپاره پاتې سو وَلَوْكَانَ فُلَانٌ حِيْنَ قَالَ ذٰلِكَ حَيًّا او كه فلان [دويم موصیٰ لهٔ] كله چې موصي دا خبره [...فهو لفلان] كړې وي ژوندی وي [يعني كله چې موصي د دويم موصیٰ لهٔ لپاره وصيت كړی وي په هغه وخت كي دويم موصیٰ لهٔ ژوندی وي] ثُمَّ مَاتَ قَبْلَ مَوْتِ الْمُوْصِيْ بيا هغه [دويم موصیٰ لهٔ] د موصي تر مرګ مخكي مړ سي فَهِيَ لِلْوَرَثَةِ نو وصيت د موصي د وارثانو لپاره دی لِبُطْلَانِ الْوَصِيَّتَيْنِ ځكه چې دواړه وصيتونه باطل سوه اَلْأُوْلىٰ بِالرُّجُوْعِ وَالثَّانِيَةُ بِالْمَوْتِ اول وصيت د رجوع په وجه [باطل سو] او دويم وصيت [د موصیٰ لهٔ] د مرګ په وجه.

**اللغات**: ﴿قطع﴾ د فتح د باب مصدر دی: پرېكول (غوڅول). ختمول. ﴿لم يتحقق﴾ د تفعل له بابه د جحد صيغه ده: موجودېدل. ثابتېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه زيد مثلاً د خالد لپاره د يو غلام وصيت كړی وو. بيا نا څاپه د هغه رايه بدله سوه او داسي يې وويل چې ما د خالد لپاره د كوم غلام وصيت كړی وو. هغه غلام تر دې وروسته د فلانكي مثلاً د حامد دی او زه هغه غلام حامد ته په وصيت كي وركوم. نو د زيد (موصي) دا قول او فعل د اول يوه (خالد) په حق كي له وصيت څخه رجوع ده. نو د خالد حق له دې غلام څخه منقطع كيږي: ځكه د موصي دا جمله "العبد الذي إلخ" د شركت پر قطع دلالت كوي يعني دا ښيي چې هغه دا غلام اوس صرف حامد ته وركول غواړي او دواړه نه پكښې شريكوي. كنې داسي جمله به يې نه اداء كولای.

د دې په خلاف كه زيد مثلاً خالد ته يو غلام په وصيت كي وركړی وو. بيا يې د حامد لپاره هم د هغه غلام وصيت وكړی. نو د دې مطلب دا دی چې اوس موصي (زيد) په همدې يوه غلام كي د دواړو لپاره وصيت كوي: ځكه دلته په محل (غلام) كي د شركت احتمال سته او د وصي جمله د شركت صلاحيت لري: نو ځكه په دې صورت كي دواړه موصیٰ لهٔ (زيد او حامد) په غلام كي شريكان كيږي.

**وكذا إذا قال إلخ**: د دې حاصل دا دی چې كه موصي (زيد) داسي ووايي چې ما د خالد لپاره د كوم غلام وصيت كړی وو. هغه غلام تر دې وروسته زما د فلانكي وارث مثلاً د حامد دی. نو په دې صورت كي

هم د هغه دا قول له اول موصیٰ لهٔ (خالد) څخه رجوع ده او د هغه حق له غلام څخه منقطع کیږي. نو غلام صرف د وارث (حامد) کیږي: ځکه د موصي دا جمله د شرکت پر قطع دلالت کوي. لهذا اوس هغه غلام صرف د وارث کیږي او دا جلا خبره ده چې کله نور وارثان اجازه ورکړي. نو بیا هغه غلام ده ته حاصلیږي لکه مخکې چې د دې تفصیل تیر سو (وهو أن الورثة بالخيار إن شاءوا أجازوا وإن شاءوا ردوا).

ولو كان فلان الآخر إلخ: یعني کله چې موصي د دویم موصیٰ لهٔ (حامد) لپاره وصیت کړی وو. که په هغه وخت کې دویم موصیٰ لهٔ ژوندی نه وي بلکې له وصیت څخه مخکې مړ سوی وي. نو د اول موصیٰ لهٔ (خالد) لپاره وصیت باقي پاتیږي او نه باطلیږي: ځکه د اول وصیت باطلېدل د دویم وصیت پر صحت موقوف دي. او دلته د دویم موصیٰ لهٔ د مرګ په وجه دویم وصیت صحیح سوی نه دی. نو ځکه اول وصیت د اول موصیٰ لهٔ په حق کې باقي پاتیږي.

ولو كان فلان إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د وصیت کولو په وخت کې (یا په بله وینا د "العبد الذي أوصيت به لفلان فهو لفلان" د ویلو په وخت کې) فلان یعني دویم موصیٰ لهٔ (حامد) ژوندی وي. لېکن بیا هغه له موصي څخه مخکې مړ سي. نو په دې صورت کې دواړه وصیتونه باطلیږي یعني د اول او دویم موصیٰ لهٔ دواړو په حق کې وصیت باطلیږي او د وصیت مال (غلام) د موصي د وارثانو کیږي: ځکه اول وصیت خو د موصي د رجوع کولو په وجه باطل سو او دویم وصیت تر موصي مخکې د موصیٰ لهٔ د مړ کېدلو په وجه باطل سو. نو ځکه په دې صورت کې د وصیت غلام د موصي تر مرګ وروسته د هغه د وارثانو کیږي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْوَصِيَّةِ بِثُلُثِ الْمَالِ

(دا) باب د مال د دریمي حصې د وصیت کولو (په بیان کي) دی

**تشریح**: څرنګه چي د کتابُ الوصا زیاتره مسئلې د ثلث المال پر وصیت مبني دي، نو ځکه د کتابُ الوصایا د اولو مسئلو او مقدماتو تر بیان وروسته اوس د ثلث المال د وصیت مسائل بیانول کیږي.

## د دوو جلا کسانو لپاره د مال د ثلث (دریمي حصې) وصیت کول

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِرَجُلٍ بِثُلُثِ مَالِهٖ فرمايي: او څوک چي د يو سړي لپاره د خپل مال د دريمي حصې وصيت وکړي وَلِآخَرَ بِثُلُثِ مَالِهٖ او د بل يوه لپاره د خپل مال د دريمي حصې وصيت وکړي وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثان اجازه نه ورکړي فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا نو ثلث [دريمه حصه] د هغوی دواړو تر مينځ [نيم په نيمه] ده لِأَنَّهٗ يَضِيْقُ الثُّلُثُ عَنْ حَقِّهِمَا ځکه ثلث د هغوی دواړو له حق څخه تنګ دی [يعني په يوه ثلث سره د دواړو حق (ثلث) نه پوره کيږي] إِذْ لَا يُزَادُ عَلَيْهِ عِنْدَ عَدَمِ الْإِجَازَةِ ځکه [د وارثانو] د اجازې نه ورکولو په وخت کي وصيت له يوه ثلث څخه نه سي زياتول کېدای عَلٰى مَا تَقَدَّمَ لکه مخکي چي تېر سوه وَقَدْ تَسَاوَيَا فِيْ سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ او هغوی دواړه د مستحق کېدلو په سبب کي سره برابر دي فَيَسْتَوِيَانِ فِي الْاِسْتِحْقَاقِ نو په مستحق کېدلو کي به هم سره برابر وي وَالْمَحَلُّ يَقْبَلُ الشَّرِكَةَ او محل [مال] شرکت قبلوي فَيَكُوْنُ بَيْنَهُمَا نو ځکه ثلث المال به د هغوی دواړو تر مينځ [مشترک] وي.

**اللغات**: ﴿ثلث﴾ دریمه حصهٔ. ﴿لم تجز﴾ د افعال له بابه د جحد صیغه ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول. ﴿یضیق﴾ د ضرب د باب مضارع ده: تنګېدل. ﴿لا تزاد﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صیغه ده: زیاتول (زیاتوب کول)، اضافه کول. ﴿تساویا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه غائب ماضي صیغه ده: برابرېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د یو سړي مثلاً د خالد لپاره د خپل مال د دریمي حصې (ثلث المال) وصیت وکړي او د بل سړي مثلاً د حامد لپاره هم د ثلث المال وصیت وکړي. نو که د

موصي (وصيت کونکي) وارثان د دې اجازه ورکړي. نو دا وصيت جائز او صحيح دی. لیکن که وارثان اجازه نه ورکړي لکه څرنګه چې په مذکوره مسئله کې دي او تاسي ته مخکې معلومه سوه چې د اجازې د نشتوالي په وخت کې فقط په یوه ثلث کې وصيت نافذیږي. نو ځکه دلته به د موصي د مال ثلث (دریمه حصه) د دواړو موصی لهٔ (خالد او حامد) تر مینځ نیم په نیمه تقسیمیږي: ځکه د وارثانو د اجازې د نشتوالي په وجه په بل ثلث کې وصيت نه سي نافذېدلای. او په کوم ثلث کې چې وصيت جائز دی هغه د دوی دواړو له حق (ثلث) څخه تنګ دی او د دوی حق نه پوره کوي. نو ځکه په هغه کې به دواړه شریکان کیږي: ځکه د استحقاق په سبب یعني په وصيت کې دوی دواړه شریکان دي. نو ځکه په استحقاق کې به هم دوی دواړه شریکان کیږي او ثلث به د دوی تر مینځ نیم په نیمه تقسیمیږي.

## د یوه کس لپاره د ثلث او د بل کس لپاره د سدس د وصيت کولو حکم

وَإِنْ أَوْصٰى لِأَحَدِهِمَا بِالثُّلُثِ وَلِلْآخَرِ بِالسُّدُسِ او که موصي له هغوی دواړو څخه د یوه لپاره د ثلث [دریمي حصې] وصيت وکړي او د بل لپاره د سدس [شپږمي حصې] فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا نو ثلث د هغوی دواړو تر مینځ په دریو حصو سره دی [چې ثلث والا ته به دوې حصې او سدس والا ته به یوه حصه ورکول کیږي] لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُدْلِيْ بِسَبَبٍ صَحِيْحٍ ځکه له دوی دواړو څخه هر یو د صحيح سبب په وجه [خپل حق] راکشوي [د صحيح سبب په وجه استحقاق لري] وَضَاقَ الثُّلُثُ عَنْ حَقَّيْهِمَا او ثلث د دوی دواړو له حق څخه تنګ سوی دی [یعني په یوه ثلث سره د دواړو حق (ثلث او سدس) نه پوره کیږي] فَيَقْتَسِمَانِهِ عَلٰى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا نو ځکه دوی دواړه به ثلث د خپل حق [حصې] په اندازه سره تقسیموي كَمَا فِيْ أَصْحَابِ الدُّيُوْنِ لکه څرنګه چې په قرضونو والا کې کیږي فَيُجْعَلُ الْأَقَلُّ سَهْمًا وَالْأَكْثَرُ سَهْمَيْنِ نو ځکه اقل به یوه حصه او اکثر به دوې حصې ګرځول کیږي فَصَارَ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ نو دا ټوله به درې حصې سي سَهْمٌ لِصَاحِبِ الْأَقَلِّ وَسَهْمَانِ لِصَاحِبِ الْأَكْثَرِ یوه حصه د اقل [سدس] والا لپاره او دوې حصې د اکثر [ثلث] والا لپاره.

**اللغات:** ﴿سدس﴾ شپږمه حصه. ﴿يُدلِي﴾ د افعال د باب مضارع ده. په حاشیه کې یې د دې معنیٰ په "کشیدن" (راکشولو) سره کړې ده. او شارحینو د دې معنیٰ په "استحقاق لرلو" سره کړې ده. په قاموسونو کې چې د دې باب کومې معناوې نقل سوې دي، له هغوی څخه ځینې دا دي: دلیل بیانول.

دلیل ثبتول. وسیله ګرځول. همدارنګه سولاغه ځاه ته ور اچول یا راکشول. ﴿أَسْهُم﴾ جمع د سَهْمٌ ده: حصه . برخه .

**تشریح** : **صورت د مسئلې** : دا دی چې که یو څوک مثلاً د خالد لپاره د ثلث وصیت وکړي او د حامد لپاره د سدس وصیت وکړی او وارثان د دې وصیت اجازه نه ورکړي. نو په دې صورت کي به یو ثلث درې حصې کول کیږي، دوې حصې به هغه موصی لهٔ ته ورکول کیږي چې د هغه لپاره د ثلث وصیت سوی دی (یعني خالد). او یوه حصه به هغه موصی لهٔ (حامد) ته ورکول کیږي چې د هغه لپاره د سدس وصیت سوی دی: دلیل دا دی چې موصي د دواړو لپاره وصیت کړی دی. نو ځکه دوی دواړه په صحیح سبب سره د موصی به مستحق دي. او د موصي د مال په کوم مقدار کي چې وصیت جائز دی (یعني یو ثلث)، هغه د دواړو د حق اداء کولو لپاره ناکافي دی. نو ځکه په یوه ثلث کي به دوی دواړهٔ شریکان کیږي او هر یو به د خپل حق په اندازه به له هغه څخه حصه اخلي. یعني ثلث والا (خالد) به دوې حصې اخلي او یوې حصې والا (حامد) به سدس اخلي.

**د یوه کس لپاره د ګل مال او د بل لپاره د ثلث (درېیمي حصې) د وصیت کولو حکم او تفصیل**

وَإِنْ أَوْصَى لِأَحَدِهِمَا بِجَمِيعِ مَالِهِ او که موصي په دوی دواړو کي د یوه لپاره د خپل ټوله مال وصیت وکړي وَلِلْآخَرِ بِثُلُثِ مَالِهِ او د بل یوه لپاره د خپل مال د درېیمي حصې وصیت وکړي وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثان اجازه نه ورکړي فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَسْهُمٍ عِنْدَهُمَا نو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ثلث د دوی دواړو [موصی لهما] په مینځ کي پر څلورو حصو دی وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ ﷺ : الثُّلُثُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي: چې ثلث د دوی دواړو تر مینځ نیم په نیمه دی وَلَا يَضْرِبُ أَبُوحَنِيفَةَ لِلْمُوصَى لَهُ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د موصی لهٔ په حق کي د تناسب اعتبار نه کوي له ثلث [درېیمي حصې] څخه په زائد مقدار کي إِلَّا فِي الْمُحَابَاةِ وَالسِّعَايَةِ وَالدَّرَاهِمِ الْمُرْسَلَةِ مګر په محاباة کي او په سعایه کي او په دراهمه مرسله کي.

**اللغات** : ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول. یو څوک په مال سره خاصول. د یو چا سره په ثمن (قیمت) یا په مبیع کي رعایت کول. یعني یو شی په ډېر کم قیمت سره خرڅول. یا د احسان کولو په قصد له عام ربت (نرخ) څخه په کمه ورکول. ﴿سعاية﴾ د فتح د باب

مصدر دی: زیار او خواري کښل او ګټه کول (مال ګټل). د بل چا د حق اداء کولو لپاره کسب او مزدوري کول او مال ګټل. یا په بله وینا: د داسي غلام ګټه کول چي د هغه څه حصه آزاده سوې وي (چي هغه ګټه خپل مالک وغیره ته ورکړي او خپل پاته حصه هم آزاده کړي). ﴿ولا يضرب﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده. صاحب د حاشيې رَحِمَهُ الله د دې لفظ د معناوو تحقيق داسي کړی دی: "ولا يضرب [أي لا يعطي أبو حنيفة له شيئًا زائدًا] إلخ" يقال: ضرب له في ماله سهمًا أي جعل، فعلى هذا يكون ما في "المختصر" على حذف المفعول أي لا يجعل له شيئًا فيه ولا يعطيه، كذا في "المغرب"، وذكر فيه أيضًا "ضرب في الجزور بسهم" إذا شرك فيها وأخذ منها نصيبًا، وقال الفقهاء: "فلان يضرب فيه بالثلث" أي يأخذ منه شيئًا بحكم ماله من الثلث. او موږ چي په عبارت کي د دې لفظ کومه ترجمه نقل کړې ده هغه د اُردو شارحينو ده.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که یو څوک د خالد لپاره د ټوله مال وصيت وکړي او د حامد لپاره د مال د درېيمي حصې وصيت وکړي او د موصي وارثان د دې وصيت اجازه نه ورکړي. نو په کوم مقدار کي چي وصيت جائز دی يعني ثلثُ المال (د مال درېيمه حصه). د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به هغه (ثلثُ المال) څلور حصې کول کيږي چي په هغه کي به د کُل والا (خالد) ته درې حصې ورکول کيږي او د ثلث والا (حامد) ته به يوه حصه ورکول کيږي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي ثلث المال به د دوی ترمينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي يعني ثلث به دوې حصې کول کيږي او هر موصیٰ لهٗ ته به يوه، يوه حصه ورکول کيږي

ولا يضرب إلخ: د دې حاصل دا دی چي په مذکوره صورت کي يعني کله چي موصیٰ لهٗ دوه کسان وي (مثلاً خالد او حامد) او وصيت له ثلث څخه اضافه وي او وارثان د هغه اجازه هم نه ورکړي. نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاعده دا ده چي د موصیٰ لهٗ د حق تناسب ته به نه کتل کيږي يا په بله وينا دا چي د دواړو موصیٰ لهٗ (خالد او حامد) د حقوقو د تناسب اعتبار به نه کول کيږي: ځکه د حقوقو تناسب ته د ثلث المال د وصيت په وخت کي کتل کيږي (چي هر يوه ته به د خپل حق په اندازه حصه ورکول کيږي) او که وصيت له ثلث څخه زيات وي، نو بيا به د حقوقو تناسب ته نه کتل کيږي. بلکي دواړه موصیٰ لهٗ به برابر په ثلث کي شريکول کيږي (ځکه د وارثانو د اجازې د نشتوالي په صورت کي صرف په ثلث المال کي وصيت نافذيږي). او څرنګه چي په مذکوره صورت کي وصيت له ثلث څخه زيات دی (کما هو ظاهر). نو ځکه د مذکوره قاعدې مطابق به د تناسب لحاظ نه کيږي. بلکي دواړه به مساوي شمېرل کيږي چي په يوه ثلث کي به دواړه شريکان کيږي.

لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له پورتني قاعدې څخه درې مسئلې مستثنیٰ دي:
①محاباة فی البیع، ② سعایه (د غلام کټه)، ③ دراهم مرسله، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په محاباة، سعاية او په دراهم مراسله کې به د حق تناسب ته کتل کيږي او د تناسب اعتبار به کول کيږي.
①... "**محاباة فی البیع**" دلته د دې صورت دا دی چې مثلاً د شاکر دوه غلامان دي چې له هغوی څخه د يوه قيمت يوولس سوه (۱۱۰۰) درهمه دی او د بل قيمت شپږ سوه (۶۰۰) درهمه دی. او شاکر د محاباة او احسان کولو په توګه دا وصيت وکړی چې تاسي له دې دواړو څخه يو غلام صرف په سل درهمه پر خالد خرخ کړئ! او بل غلام صرف په سل درهمه پر حامد خرخ کړئ!. او بيا شاکر مړ سو او هغه له دې دواړو غلامانو څخه بغير نور مال هم پرې اينبی دی، نو دا وصيت به ټوله نافذيږي (يعني هر موصیٰ لهٗ به ته غلام صرف په سل درهمه ورکول کيږي). او که شاکر له دوی څخه بغير نور مال نه وي پرې اينبی، نو وصيت به صرف د مال په ثلث کې نافذيږي او هغه ثلث به دواړو موصیٰ له (خالد او حامد) ته د هغو د حق په تناسب سره ورکول کيږي، او دلته د خالد حق زر (۱۰۰۰) درهمه او د حامد حق پنځه سوه (۵۰۰) درهمه دی ځکه کله چې د يوه غلام قيمت (۱۱۰۰) درهمه دی او د بل غلام قيمت (۶۰۰) درهمه دی او شاکر (د محاباة په توګه) دا هر غلام په سل درهمه د ورکولو وصيت کړی دی. نو ګواکي شاکر د خالد لپاره د زرو درهمو او د حامد لپاره د پنځو سوو درهمو وصيت کړی دی چې هغوی مجموعتاً (۱۵۰۰) درهمه کيږي او (۱۵۰۰) درهمو ثلث پنځه سوه (۵۰۰) درهمه کيږي. نو ځکه د دې ثلث (۵۰۰) درهمو دوې حصې به خالد ته ورکول کيږي او يوه حصه به حامد ته ورکول کيږي. او پاته قيمت به د موصي وارثانو ته ورکول کيږي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که دا صورت (محاباة فی البيع) له پورتني قاعدې څخه مستثنیٰ نه وای نو د خالد او حامد هر يوه لپاره به د پنځو سوو درهمو نصف (۲۵۰) درهمه وای او پاته قيمت به د موصي وارثانو ته ورکول کېدای. خو دلته هغه دغه اُصول پرې اينبی دی او د حق د تناسب په اعتبار سره يې ثلث تقسيم کړی دی.
②... "**سعايه**" د دې صورت دا دی چې مثلاً شاکر د خپلو دوو غلامانو د عتق وصيت وکړی (چې زما تر مرګ وروسته دا دواړه غلامان آزاد دي)، او په دوی کې د يوه قيمت دوه زره (۲۰۰۰) درهمه دی او د بل قيمت زر (۱۰۰۰) درهمه دی. خو له دوی څخه بغير د شاکر نور هيڅ مال نسته. نو دا وصيت به په يوه ثلث (دريمه حصه) کې نافذيږي (چې هغه ۱۰۰۰ درهمه کيږي) او په باقي دوو ثلثو کې به پر دوی دواړو

قیمت واجبیږي چې دوی به د دوو ثلثو د قیمت لپاره سعی او ګټه کوي او هغه به وارثانو ته ورکوي، لېکن هغه یو ثلث به د دوی د قیمت په تناسب سره تقسیمیږي، او د دوی قیمت مجموعتاً درې زره درهمه دی چې د هغه ثلث زر (۱۰۰۰) درهمه دی، نو د کوم غلام قیمت چې دوه زره درهمه دی، د هغه له قیمت څخه (۶۶۶) درهمه ساقطیږي او د خپل پاته قیمت لپاره به هغه سعی او ګټه کوي (یعني ۱۳۳۴ درهمه به ګټي) او وارثانو ته به یې ورکوي، او د کوم غلام قیمت چې زر درهمه دی، د هغه له قیمت څخه (۳۳۳) ساقطیږي او خپل پاته قیمت به هغه ګټي او وارثانو ته به یې ورکوي.

②... "**دراهم مرسله**" د دې مطلب دا دی چې وصیت کونکی سړی (مثلاً شاکر) د ثلث او نصف وغیره صراحت نه وکړي چې مثلاً ثلث د خالد دی او نصف د حامد دی، بلکې مطلقاً داسې وصیت وکړي چې زما له طرفه دوه زره درهمه د خالد لپاره وصیت دی او زر درهمه د حامد لپاره، او د موصي (شاکر) سره صرف همدومره مال وي یعني له درې زر درهمو څخه بغیر نور مال ور سره نه وي. نو دا وصیت فقط په ثلث یعني په زرو (۱۰۰۰) درهمو کې نافذیږي چې له هغوی څخه به خالد ته (۶۶۶) درهمه ورکول کیږي او حامد ته به (۳۳۳) درهمه ورکول کیږي؛ ځکه دلته په جائز مقدار (ثلث) کې د دوی حق او حصه په همدې اندازه دی.

## د صاحبینو او د امام صاحب رَحِمَهُمُ الله دلائل

لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ: أَنَّ الْمُوصِيَ قَصَدَ شَيْئَيْنِ په اختلافي مسئله کې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې موصي د دوو شیانو اراده کړې ده الِاسْتِحْقَاقَ وَالتَّفْضِيلَ [یو] د استحقاق او بل د تفضیل [چې یوه موصی له ته پر بل فضیلت او ترجیح ورکړي] وَامْتَنَعَ الِاسْتِحْقَاقُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او استحقاق د وارثانو د حق په وجه ممتنع سو وَلَا مَانِعَ مِنَ التَّفْضِيلِ او له تفضیل څخه هیڅ مانع نسته فَيَثْبُتُ كَمَا فِي الْمُحَابَاةِ وَأُخْتَيْهَا لکه څرنګه چې په محاباة او د هغه په دوو نظیرونو [سعایه او دراهم مرسله] کې دي وَلَهُ: أَنَّ الْوَصِيَّةَ وَقَعَتْ بِغَيْرِ الْمَشْرُوعِ عِنْدَ عَدَمِ الْإِجَازَةِ مِنَ الْوَرَثَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې [دلته] د وارثانو د اجازې د نشتوالي په وخت کې وصیت غیر مشروع واقع سوی دی إِذْ لَا نَفَاذَ لَهَا بِحَالٍ ځکه په هیڅ حالت کې هم د دې وصیت لفاذ نسته فَبَطَلَ أَصْلًا نو ځکه دا خو به بالکل باطل سو [یعني غیر مشروع مقدار باطل سو] وَالتَّفْضِيلُ يَثْبُتُ فِي ضِمْنِ الِاسْتِحْقَاقِ او تفضیل د

استحقاق په ترځ کي ثابتيږي فَبَطَلَ بِبُطْلَانِهِ نو دا استحقاق د بطلان په وجه تفضيل باطليږي كَالْمُحَابَاةِ الثَّابِتَةِ فِي ضِمْنِ الْبَيْعِ لکه هغه محاباة کوم چي د بيع په ضمن کي ثابت وي بِخِلَافِ مَوَاضِعِ الْإِجْمَاعِ په خلاف د اجماع د مقاماتو [يعني محاباة، سعايه او دراهم مرسله] لِأَنَّ لَهَا نَفَاذًا فِي الْجُمْلَةِ بِدُونِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ ځکه چي د هغوی [مواضع اجماع] لپاره د وارثانو له اجازې څخه بغير هم فی الجمله نفاذ سته بِأَنْ كَانَ فِي الْمَالِ سَعَةٌ په دې توګه چي [د موصي] په مال کي پراخي وي فَتُعْتَبَرُ فِي التَّفَاضُلِ نو وصيت به د تفاضل په حق کي معتبر دی لِكَوْنِهِ مَشْرُوعًا فِي الْجُمْلَةِ ځکه چي [ دلته (په مواضع اجماع کي)] وصيت فی الجمله مشروع دی بِخِلَافِ مَا نَحْنُ فِيهِ په خلاف د هغه مسئلي چي موږ يکښي لګيا يو.

**اللغات:** ﴿قصد﴾ د نصر د باب ماضي ده: قصد او اراده کول. ﴿تفضيل﴾ فضيلت او فوقيت ورکول، ترجيح ورکول. ﴿سعة﴾ وسعت، پراخي او ګنجايش. ﴿فی الجملة﴾ په يو درجه کي.

**تشريح:** په مخکني مسئله کي چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله تر مينځ کوم اختلاف دی يعني د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به ثُلث څلور حصې کول کيږي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به هغه د دواړو موصیٰ لهٗ تر مينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي. په دې کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل حاصل دا دی چي په مذکوره مسئله کي موصي (وصيت کونکي) د دوو شيانو اراده کړې ده: ①يو د استحقاق چي هغه يو موصیٰ لهٗ د خپل ټوله مال مستحق کول غواړي (يوه ته خپل ټوله مال ورکول غواړي)، خو د هغه دا اراده د وارثانو د حق په وجه نه سي پوره کېدلای (ځکه له ثلث څخه بغير د موصي د نور مال سره د وارثانو حق متعلق دی)، ② او دويم د هغه اراده دا ده چي هغه پر يوه موصیٰ لهٗ (حامد) باندي بل موصیٰ لهٗ (خالد) ته ترجيح ورکول غواړي، او د هغه دا اراده پوره کېدلای سي ځکه چي له تفضيل (ترجيح) څخه هيڅ مانع نسته، نو ځکه د تفضيل اراده به ثابتيږي، لکه څرنګه چي د محاباة، سعايه او دراهم مرسله په دريو مسئلو کي ستاسي (امام صاحب) په نيز هم تفضيل ثابت سوی دی.

وله أن الوصية إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی. حاصل يې دا دی چي کله وارثانو اجازه نه ورکړه، نو له ثلث (دريمي حصې) څخه د زيات وصيت غير مشروع او ناجائز دی (لکه مخکي چي هم ذکر سوه)، ځکه د وارثانو له اجازې پرته له ثلث څخه په زيات (زائد مقدار) کي د وصيت نافذولو هيڅ

صورت نسته، نو ځکه له ثلث څخه په زیات کي خو وصیت بالکل باطل سو، او کله چي زیاتوب(زائد مقدار) باطل سو، نو په دواړو کي مساوات پاته سو. همدې ته مصنف رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چي تفضیل باطل سو: ځکه تفضیل د استحقاق په ضمن کي ثابتیږي. او کله چي استحقاق باطل وګرځېدی نو تفضیل هم باطل سو ځکه قاعده همدا ده چي د متضمّن په باطلېدلو سره متضمَّن هم باطلیږي. د مثال په توګه که په بیع کي محاباة سوی وي او بیا بیع فاسده سي نو محاباة هم فاسدیږي. او که بیع صحیح وي نو محاباة هم صحیح کیږي.

بخلاف الإجماع إلخ: پاته سو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قیاس چي هغو دا مذکوره مسئله پر مخکینیو دریو مسئلو (دراهم مرسله، محاباة وغیره) باندي قیاس کړې ده، نو له دې ځایه د هغه تردید کوي چي دا مذکوره مسئله د دراهم مرسله وغیره پر مسئلو باندي قیاسول صحیح نه دي: ځکه په دراهم مرسله وغیره کي د وارثانو له اجازې څخه بغیر هم وصیت نافذېدلای سي. په دې توګه چي د موصي په مال کي وسعت وي یعني د موصي سره له موصیٰ به (وصیت کړی سوي مال) څخه بغیر نور هم دومره مال وي کوم چي د ثلث له مقدار څخه زائد وي او د وصیت په نافذېدلو سره د وارثانو حق نه ضایع کیږي: لهذا په دې دریو مسئلو کي فی الجمله د وصیت نفاذ کېدلای سي او فی الجمله دا وصیت مشروع دی. په همدې وجه په دوی (دراهم مرسله، محاباة وغیره) کي تفضیل معتبر دی. لیکن څرنګه چي په مذکوره مسئله کي د وارثانو د اجازې د نشتوالي په وجه ګردسره وصیت مشروع نه دی. نو تفضیل به چیري معتبر وي! (یا په بله وینا دا چي په مذکوره مسئله او مسائل ثلاثه کي فرق دا دی چي په دې دریو مسئلو کي د مال د وسعت په صورت کي ټوله موصیٰ بهٔ دواړو موصیٰ لهٔ ته حاصلېدلای سي او په مذکوره مسئله کي نه سي ورته حاصلېدلای. نو ځکه په مذکوره مسئله کي د تفاضل اعتبار نه دی سوی او په مسائل ثلاثه کي د تفاضل اعتبار سوی دی چي له ثلث څخه د زائد مقدار په صورت کي هم د حق د تناسب لحاظ سوی دی).

## د پورتنۍ مسئلې په هکله د یو مقدّر سوال جواب

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصٰى بِعَيْنٍ مِنْ تَرِكَتِهِ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي موصي له خپل میراث څخه د یو معیّن شي [مثلاً د آس] وصیت وکړي وَقِيْمَتُهُ تَزِيْدُ عَلَى الثُّلُثِ او د هغه [عین] قیمت تر ثلث زیات وي فَإِنَّهُ يَضْرِبُ بِالثُّلُثِ نو [په دې صورت کي] موصیٰ لهٔ د ثلث مستحق کیږي وَإِنِ احْتَمَلَ أَنْ يَزِيْدَ الْمَالُ که څه هم دا احتمال سته چي [د موصي] مال به زیات سي فَيَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ نو عین به له ثلث څخه ووځي لِأَنَّ هُنَاكَ الْحَقُّ تَعَلَّقَ بِعَيْنِ التَّرِكَةِ ځکه دلته د موصیٰ

لهٔ حق د عينِ ميراث سره متعلق سوی دی بِدَلِيْلِ أَنَّهُ لَوْهَلَكَ وَاسْتَفَادَ مَالًا آخَرَ په دې دليل چې که عين هلاک سي او موصي نور مال حاصل کړي تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ نو وصيت باطليږي وَفِي الْأَلْفِ الْمُرْسَلَةِ لَوْهَلَكَتِ التَّرِكَةُ او په مطلق زرو درهمو [دراهم مرسله] کي که ميراث هلاک سي تَنْفُذُ فِيْمَا يُسْتَفَادُ نو وصيت په حاصل کړی سوي مال کي نافذيږي فَلَمْ يَكُنْ مُتَعَلِّقًا بِعَيْنِ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْوَرَثَةِ نو د موصیٰ لهٔ حق بعينهٖ د هغه شي سره متعلق نه سو چي د هغه سره د وارثانو حق متعلق دی.

**اللغات**: ﴿عين﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: عين شی، معين شی. يعني کوم شی چي موجود وي او په لاس سره مسه کېدلای سي او خوندي کېدلای سي. لکه څمکه، آس او داسي نور. داسي شي ته "عين" (عين شی) وايي، جمع يې "أَعْيَان" راځي. ﴿يضرب﴾ د ضرب د باب مضارع ده. څه مخکي د حاشيې په حواله سره د دې باب د معناوو تحقيق تېر سو. ﴿ثُلُث﴾ او ثُلْث: درېيمه حصه. ﴿يستفاد﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: حاصلول (ترلاسه کول)، فايده حاصلول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د يو مقدر سوال جواب ورکول سوی دی کوم چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مسلک وارديږي (په سوال د پوهېدلو لپاره مخکي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په مسلک او قاعده ځان پوه کړئ!).

سوال دا دی چي ستاسي په قول د دراهم مرسله په صورت کي (يعني چي د عين شي وصيت له ثلث څخه زيات وي) که له موصیٰ بهٖ څخه بغير د موصي سره نور مال نه وي نو څرنګه چي په دې صورت کي په ثلث کي وصيت نافذيږي او ستاسي په وړينا په هغه کي د دواړو موصیٰ لهٔ د حقوقو د تناسب اعتبار کول کيږي. حال دا چي موږ تاسو ته داسي مثال ښوولای سو چي هلته مذکوره معنیٰ موجوده وي خو بيا هم له ثلث څخه د زيات حق د تناسب اعتبار نه کول کيږي لکه څرنګه چي په مسائل ثلاثه يعني په دراهم مرسله. محاباة وغيره کي د حق د تناسب اعتبار کول کيږي. مثلاً شاکر د خالد لپاره د خپل ټوله آس وصيت وکړی او د حامد لپاره يې د آس د ثلث وصيت وکړی او د آس قيمت د موصي د مال (ميراث) له ثلث څخه زيات وو. او له دې آس څخه بغير د موصي (شاکر) سره نور مال نه وو. نو دلته د حق د تناسب اعتبار او لحاظ کول پکار دي، حال دا چي دلته هم تاسي همدا فرمايلي دي چي دواړه موصیٰ لهٔ (خالد او حامد) په ثلث کي نيم په نيمه شريکان کيږي يعني هر يوه ته به نيم ثلث

ور کول کیږي او د هر یوه د حق د تناسب اعتبار به نه کول کیږي چي له ثلث څخه به خالد ته درېیمه حصه ور کول کیږي او حامد ته به یوه حصه ورکول کیږي. حال دا چي د مسائل ثلاثه (دراهم مرسله وغیره) وجه دلته هم موجوده ده یعني کېدای سي چي له دې آس څخه بغیر موصي ته نور مال حاصل سي. نو بیا به په ټوله آس (موصی به) کي وصیت جاري کیږي.

د جواب حاصل دا دی چي ستاسي سوال پر ځای دی او هغه وجه دلته موجوده ده. خو بیا هم د دراهم مرسله والا حکم په دې وجه هغه ته نه دی ورکول سوی چي په آس او دراهم مرسله کي فرق دی او هغه فرق دا دی چي د آس والا په صورت کي د موصی له حق د دې معین آس سره متعلق دی: ځکه که دا آس هلاک سي نو وصیت باطلیږي. که څه هم د آس تر هلاکېدلو وروسته موصي ته نور مال هم حاصل سوی وي. بیا هم وصیت باطلیږي. د موصی له حق بعینه په دې آس کي وو او کله چي هغه هلاک سو. نو د ده حق هم باطل سو.

خو د دراهم مرسله په صورت کي د موصی له حق د معینو دراهمو سره متعلق نه وي. لهذا که تر وصیت وروسته مال (میراث) هلاک سي او بیا نور مال حاصل سي. نو بیا هم د موصی له حق باقي پاته دی. نو له دې څخه معلومه سوه چي په آس کي تر ثلث (درېیمي حصې) پوري د موصی له حق دي او بعینه د هغه آس له ثلث څخه بغیر په نوره حصه کي د وارثانو حق دی. لیکن د دراهم مرسله په صورت کي بعینه چي د کوم مال سره د وارثانو حق متعلق دی. د هغه سره د موصی له حق متعلق نه دی. لهذا کله چي د آس او دراهم مرسله والا په صورت کي فرق دی. نو د همدې فرق په وجه د دواړو په حق کي فرق کول سوی دی.

## د یو چا لپاره د خپل ځوی د حصې وصیت کول

| |
|---|
| قَالَ: وَإِذَا أَوْصٰى بِنَصِيْبِ ابْنِهِ فرمایي: او کله چي د خپل ځوی د حصې وصیت وکړي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصیت باطل دی وَلَوْ أَوْصٰى بِمِثْلِ نَصِيْبِ ابْنِهِ او که د خپل ځوی د حصې د مثل وصیت وکړي (چي زما د بچي د حصې غوندي حصه...) جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْأَوَّلَ وَصِيَّةٌ بِمَالِ الْغَيْرِ ځکه اول وصیت د بل چا د مال وصیت دی لِأَنَّ نَصِيْبَ الْاِبْنِ مَا يُصِيْبُهُ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه د ځوی حصه هغه ده کوم چي ده ته (د پلار) تر مرګ وروسته ورسیږي وَالثَّانِيْ وَصِيَّةٌ بِمِثْلِ نَصِيْبِ الْاِبْنِ او دویم |

وصیت د خپل ځوی د حصې د مثل وصیت دی وَمِثْلُ الشَّيْءِ غَيْرُهُ او د شي مثل له هغه شخه غیر [او جلا] وي وَإِنْ كَانَ يَتَقَدَّرُ بِهِ که څه هم د مثل اندازه په هغه شي سره کیږي فَيَجُوزُ نو ځکه دا [په دویم صورت کي وصیت] جائز دی وَقَالَ زُفَرُ: يَجُوزُ فِي الْأَوَّلِ أَيْضًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چي په اول صورت کي هم وصیت جائز دی فَنَظَرَ إِلَى الْحَالِ نو امام زفر رَحِمَهُ الله حال ته کتلي دي [یعني هغه دلته د حال اعتبار کړی دی. نه د مآل] وَالْكُلُّ مَالُهُ فِيْهِ او په حال کي [فی الحالحه] ټوله مال د موصي مال دی وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او د دې جواب هاغه دی کوم چي موږ ذکر کړی [أن الأول وصية بمال الغير].

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه. ﴿يتقدّر﴾ د تفعل د باب مضارع ده: اندازه کېدل. مقدار ټاکل کېدل. متعیّن کېدل. ﴿حال﴾ حالي زمانه. اوسنی وخت.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موصي دیو چا لپاره د خپل ځوی په حصه کي وصیت وکړي او داسي ووایي چي زما ځوی ته چي کومه حصه په میراث کي ورسیږي. هغه د فلانکي لپاره وصیت ده. نو دا وصیت باطل دی؛ ځکه د ځوی حصه د موصي له مال څخه ځوی ته د موصي تر مرګ وروسته رسیږي او تر مرګ وروسته هغه د ځوی په ملکیت کي داخلیږي او قاعده دا ده چي "التصرف في ملك الغير لا يجوز" (د بل چا په ملکیت کي تصرف کول جائز نه دي) نو ځکه د موصي دا وصیت جائز نه دی.

ولوأوصى بمثل إلخ: او که موصي داسي وصیت وکړي چي فلانکي ته دي دومره حصه مال ورکول سي څومره حصه چي زما ځوی ته ورسیږي، نو دا وصیت جائز دی. او که هغه مال تر ثلث کم وي یا ثلث وي. نو دا وصیت به نافذیږي. ځکه دلته موصي د موصیٰ لهٗ حصه د خپل ځوی د حصې مثل او مساوي ګرځولې ده او د خپل ځوی د حصې سره یې د موصیٰ لهٗ د حصې موازنه کړې ده. او د ځوی د حصې وصیت یې نه دی کړی. او دا معلومه خبره ده چي د شي مثل د هغه غیر او له هغه څخه جلا وي. نو ځکه دا وصیت جائز دی.

وقال زفر رَحِمَهُ الله إلخ: امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چي په اول صورت کي هم وصیت جائز دی یعني کله چي موصي د خپل ځوی د حصې وصیت کړی وي. نو هم وصیت جائز دی: ځکه چي د وصیت په وخت کي موصیٰ به د موصي مال دی. لهذا دا وصیت د مال غیر (بل چا د مال) وصیت نه سو. نو ځکه

به جائز وي. لېکن زموږ له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي د وصیت مال خو د موصي تر مرګ وروسته حاصلېږي. لهذا کله چي یې د حاصلېدلو وخت راسي نو هغه مال به د موصي د بچي ګرځېدلی وي. نو ځکه د مال غیر د وصیت کېدلو په وجه به دا وصیت جائز نه وي.

## د "سهم" (حصې) او د جزء په لفظ سره د وصیت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى بِسَهْمٍ مِنْ مَالِهِ فرمايي: او څوک چي له خپل مال څخه د یوه سهم [یوې حصې] وصیت وکړي فَلَهُ أَخَسُّ سِهَامِ الْوَرَثَةِ نو د موصیٰ لهٗ لپاره د وارثانو له سهامو څخه اخسّ [کمترین] سهم دی إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ عَنِ السُّدُسِ مګر دا چي هغه اخسّ سهم له سدس څخه کم سي فَيُتَمُّ لَهُ السُّدُسُ نو د موصیٰ لهٗ لپاره به سدس پوره کول کیږي وَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ او پر سدس به زیاتوب نه کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: لَهُ مِثْلُ نَصِيبِ أَحَدِ الْوَرَثَةِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د موصیٰ لهٗ لپاره د یوه وارث د حصې په څېر حصه ده وَلَا يُزَادُ عَلَى الثُّلُثِ او پر ثلث به زیاتوب نه کیږي إِلَّا أَنْ يُجِيزَ الْوَرَثَةُ مګر دا چي وارثان اجازه ورکړي لِأَنَّ السَّهْمَ يُرَادُ بِهِ أَحَدُ سِهَامِ الْوَرَثَةِ عُرْفًا ځکه په سهم سره په عُرف کي د وارثانو یو سهم مرادول کیږي لَا سِيَّمَا فِي الْوَصِيَّةِ خصوصاً په وصیت کي وَالْأَقَلُّ مُتَيَقَّنٌ بِهِ او اقل مقدار یقیني وي فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ نو ځکه د اقل وطرف ته به ګرځول کیږي إِلَّا إِذَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ مګر دا چي کله اقل له ثلث څخه زیات سي فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو زیاتوب به پر وارث واپس کول کیږي لِأَنَّهُ لَا مَزِيدَ عَلَيْهِ عِنْدَ عَدَمِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ ځکه د وارثانو د اجازې د نشتوالي په وخت کي پر ثلث زیاتوب نه کیږي وَلَهُ: أَنَّ السَّهْمَ هُوَ السُّدُسُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي سهم همدا سدس دی هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه [1] همدا له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت سوی دي وَقَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيمَا يَرْوِي او هغه دا تر نبي کریم ﷺ پوري مرفوع کړي دي په هغه قول کي کوم چي یې روایت کړی دی [یعني ابن مسعود رضي الله عنه دا په خپل روایت کي مرفوعاً (هم) روایت

[1] تخريج: ذكره الهيثمي في مجمع الزوائد ۴/ ۲۱۳، انظر تحقيق نصب الراية ج:۵، ص:۲۲۸.

کړی دی [ وَلِأَنَّهُ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ السُّدُسُ او ځکه [ کله چي ] سهم ذکر کول کیږي [ نو ] په هغه سره سدس مرادول کیږي فَإِنَّ إِيَاسًا قَالَ: السَّهْمُ فِي اللُّغَةِ عِبَارَةٌ عَنِ السُّدُسِ ځکه ایاس رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي سهم په لغت کي له سدس څخه عبارت دی وَيُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ الْوَرَثَةِ او [ کله چي ] سهم ذکر کول کیږي په هغه سره د وارثانو له سهامو څخه یو سهم مرادول کیږي فَيُعْطَى مَا ذَكَرْنَا نو ځکه موصیٰ لهٗ ته به هاغه ورکول کیږي کوم چي موږ ذکر کړي دي قَالُوا: هٰذَا كَانَ فِي عُرْفِهِمْ مشایخو فرمایلي دي: چي دا د کوفیانو په عرف کي وه [ چي سهم له سدس څخه عبارت دی ] وَفِي عُرْفِنَا السَّهْمُ كَالْجُزْءِ او زموږ په عرف کي سهم د جزء په څېر دی.

**اللغات:** ﴿سهم﴾ حصه. برخه. ﴿أخس﴾ خسیس ترین. کمترین (تر ټولو کم). د کمي درجې. ﴿سُدُس﴾ او سُدْس: شپږمه حصه (شپږمه). ﴿تجیز﴾ د افعالٌ د باب مضارع ده: اجازه ورکول. جائز ګرځول او نافذول. ﴿لاسیما﴾ په خاصه توګه. په ځانګړي توګه. ﴿أقل﴾ تر ټول کم. ﴿یُصرف﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: ګرځول. اړول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک له خپل مال څخه د یوه سهم وصیت وکړي چي زما له مال څخه یو سهم (یوه حصه) د فلانکي لپاره ده، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي موصیٰ لهٗ ته د وارثانو له سهامو (حصو) څخه چي کوم اخسّ السهام دي یعني سدس. هاغه به ورکول کیږي او که هغه تر سدس کم وي، نو د وارثانو له سهامو څخه به څه اخیستل کیږي او سدس به په پوره کول کیږي. لېکن په هیڅ حالت کي به هم هغه تر سدس نه زیاتول کیږي.

او په مذکوره مسئله کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي موصیٰ لهٗ ته به هغه حصه ورکول کیږي کوم چي له وارثانو څخه د یوه وارث حصه وي یعني څومره حصه چي یوه وارث ته ورسیږي. هغومره حصه به موصیٰ لهٗ ته هم ورکول کیږي. لېکن د موصیٰ لهٗ حصه به تر ثلث نه زیاتول کیږي. ها! که چیري وارثان دې اجازه ورکړي. نو بیا هغه تر ثلث زیاتول کېدای سي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي په عرف کي له "سهام" څخه د یوه وارث حصه مرادیږي

څخه د یوه وارث حصه مرادیږي او څرنګه چې دلته موصي د سهم واحد (یوې حصې) وصیت کړی دی. نو ځکه له هغه څخه به هم د یوه وارث حصه مرادول کیږي او سهام په نصف. ثلث او ربع غیره کي مشترک وي. نو ځکه له سهم څخه به أقل السهام مرادول کیږي ځکه چې أقل متیقن او متعین وي نو هاغه به موصی لهٔ ته ورکول کیږي. لیکن که د یوه وارث حصه له ثلث څخه زیاته وي. نو موصی لهٔ ته به د ثلث په اندازه حصه ورکول کیږي او تر ثلث زائد مقدار به وارثانو ته ورکول کیږي.

ولـه أن السهم إلـخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې له سهم څخه به سدس مرادول کیږي: د هغه دلیل دا دی چې له حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه موقوفاً او مرفوعاً دواړه ډوله حدیث روایت سوی دی او دواړه ځایونه له سهم څخه سدس مراد کړی سوی دی: په "مسند بزار" کي له حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه مرفوعاً دا حدیث روایت سوی دی "أنّ رجلاً أوصى بسهم من ماله، فجعل له النبي صلى الله عليه وسلم السدس" چې یو سړي له خپل مال څخه د یو کس لپاره د یوه سهم (یوې حصې) وصیت وکړی نو نبي کریم ﷺ د هغه کس لپاره سدس مقرر کړی. (بنایه ۱۲/۵۲۵). معلومه سوه چې له سهم څخه سدس مرادول کیږي. د دې تائید د حضرت ایاس بن معاویه رَحِمَهُ الله (قاضي البصره) په فرمان سره هم کیږي چې په هغه کي دي "السهم في اللغة عبارة عن السدس" چې په لغت کي له سهم څخه سدس مراد دی. لهذا په دې حواله سره هم په مذکوره مسئله کي به موصی لهٔ بالسهم ته سدس ورکول کیږي.

قالوا إلـخ: مشایخو فرمایلي دي چې له سهم څخه د سدس مراد اخیستل دا د کوفې والا عُرف او اصطلاح ده. په همدې وجه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز له سهم څخه سدس مراد دی. لیکن زموږ په عرف کي سهم د جزء په معنیٰ سره دی او جزء مجهول دی کوم چې قلیل او کثیر دواړو لره شامل دی. نو ځکه اوس به د سهم د مقدار بیان او تعیین د موصي وارثان کوي. نو وارثان چې کوم مقدار متعین کړي. هاغه به موصی لهٔ ته ورکول کیږي.

## د مجهول جزء د وصیت کولو په صورت کي د تعیین کولو حق وارثانو لره دی

قَالَ: وَلَوْ أَوْصَى بِجُزْءٍ مِنْ مَالِهِ فرمایي: او که له خپل مال څخه د یوه جزء وصیت وکړي قِيْلَ لِلْوَرَثَةِ: أَعْطُوْهُ مَا شِئْتُمْ نو وارثانو ته به ویل کیږي: چې موصی لهٔ ته دومره ورکړئ! کوم چې ستاسي خوښه وي لِأَنَّهُ مَجْهُوْلٌ يَتَنَاوَلُ الْقَلِيْلَ وَالْكَثِيْرَ ځکه چې "جزء" مجهول دی کوم چې لږ

او ډېر [تولو] لره شامل دی غَيْرَ أَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْوَصِيَّةِ خو جهالت د وصيت صحيح والی نه منع کوي [د جزء مجهول کېدل د وصيت له صحت څخه مانع نه دی] وَالْوَرَثَةُ قَائِمُوْنَ مُقَامَ الْمُوصِيْ او وارثان د موصي قائم مقام دي فَإِلَيْهِمُ الْبَيَانُ نو وضاحت [او تعيين] به همدي وارثانو لره وي.

**اللغات**: ﴿يتناول﴾ د تفاعل د باب مضارع ده، د دې له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: شاملېدل. ﴿موصی﴾ د افعال د باب فاعل دی: وصيت کونکی. ﴿البيان﴾ د ضرب د باب اسم مصدر دی: وضاحت (څرګندونه). وضاحت کول (څرګندول او ښکاره کول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: خو بالکل ښکاره دی چې که موصي د يو سړي لپاره د خپل مال د يوه "جزء" وصيت کړی وي، نو څرنګه چې د "سهم" د وصيت په صورت کي وارثان د خپلي خوښی مطابق موصی لهٗ ته حصه ورکوي. نو همداسي د "جزء" د وصيت په صورت کي هم د ورکولو معامله د وارثانو په خوښی او رايه باندي موقوفه ده. او څرنګه چې وارثان د مورث قائم مقام او ځای ناستي دي، لهذا کوم مقدار چې دوی مناسب وګڼي، هغه به موصی لهٗ ته ورکوي.

**د يوه کس لپاره د دوو وصيتونو د کولو طريقه او تفصيل**

قَالَ: وَمَنْ قَالَ: سُدُسُ مَالِيْ لِفُلَانٍ فرمايي: او څوک چي ووايي: چي زما د مال سدس [شپږمه حصه] د فلانکي لپاره ده ثُمَّ قَالَ فِيْ ذٰلِكَ الْمَجْلِسِ أَوْ فِيْ مَجْلِسٍ آخَرَ بيا په هاغه مجلس کي يا په بل مجلس کي ووايي لَهٗ ثُلُثُ مَالِيْ چي د هغه [فلانکي] لپاره زما د مال ثلث [دريمه حصه] ده وَأَجَازَتِ الْوَرَثَةُ او وارثان اجازه ورکړي فَلَهٗ ثُلُثُ الْمَالِ نو د هغه لپاره د مال ثلث [دريمه حصه] ده وَيَدْخُلُ السُّدُسُ فِيْهِ او سدس په دې ثلث کي داخلېږي وَمَنْ قَالَ: سُدُسُ مَالِيْ لِفُلَانٍ او څوک چي ووايي: چي زما د مال سدس د فلانکي لپاره دی ثُمَّ قَالَ فِيْ ذٰلِكَ الْمَجْلِسِ أَوْ فِيْ غَيْرِهٖ بيا په هاغه مجلس کي يا په بل مجلس کي ووايي سُدُسُ مَالِيْ لِفُلَانٍ چي زما د مال سدس د فلانکي لپاره دی فَلَهٗ سُدُسٌ وَاحِدٌ نو د هغه لپاره يو سدس دی لِأَنَّ السُّدُسَ ذُكِرَ مُعَرَّفًا بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْمَالِ ځکه سدس [دلته] معرفه ذکر شوی دی د مال وطرف ته په اضافت کولو سره وَالْمَعْرِفَةُ إِذَا أُعِيْدَتْ يُرَادُ بِالثَّانِيْ عَيْنُ الْأَوَّلِ او معرفه لفظ چي کله راوګرځول سي [دوباره ذکر کړی سي] نو په دويم يوه سره عين اول

مرادول کیږي هُوَالْمَعْهُوْدُ فِي اللُّغَةِ همدا په لغت کي پېژندل سوی ده.

**اللغات** ﴿أعیدت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صیغه ده: راګرځول، یو څه دویم وار کول. ﴿المعهود﴾ د سمع له بابه اسم مفعول دی: معروف او پېژندل سوی، معلوم، په اذهانو کي متعین، مشهوره. ﴿یراد﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: مرادول، مراد اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک مثلاً زید ووایي چي د خالد لپاره زما د مال سدس دی. بیا په هاغه مجلس کي یا په بل مجلس کي دوباره ووایي چي د هغه (خالد) لپاره زما د مال ثلث دی. نو په دې صورت کي موصیٰ لهٗ (خالد) ته فقط ثلث حاصلیږي او د ثلث او سدس مجموعه یعني نصف نه ورته حاصلیږي. نو صرف ثلث به موصیٰ لهٗ ته ورکول کیږي او مخکي والا سدس په همدې ثلث کي داخلیږي. همدارنګه که څوک ووایي چي د خالد لپاره زما د مال سدس دی بیا په هاغه مجلس کي یا په بل مجلس کي ووایي چي د هغه (خالد) لپاره زما د مال سدس دی. یعني په دواړو صورتونو کي موصیٰ به یو شی (سدس) وي، نو په دې صورت کي موصیٰ لهٗ (خالد) ته صرف یو سدس حاصلیږي او هغه ته به دوه سدسه نه ورکول کیږي که څه هم موصي دلته دوه ځله د سدس یادونه کړې ده. د دې مثال داسي دی لکه څوک چي خپل ملګري وغیره ته ووایي چي فلانکي ته زر درهمه ورکړه!. بیا څه وخت یا څو ورځي وروسته ده ته ووایي چي یاره! تا خو نه دي ورکړي. هغه ته زر درهمه ورکړه. نو ښکاره خبره ده چي دلته صرف زر درهمه ورکول کیږي. نه دوزه درهمه. همداسي به په مذکوره مسئله کي هم موصیٰ لهٗ ته صرف سدس ورکول کیږي: د دې دلیل دا دی چي دلته سدس معرفه دی ځکه سدس د مال صفت دی. او مال (مَالِيْ) دلته متکلم ته د مضاف کېدلو په وجه معرفه دی. نو ځکه سدس به هم معرفه وي او د معرفه قاعده دا ده چي کله هغه مکرر ذکر کړی سي. نو له هغه څخه د اول عین یعني بعینه اول مرادیږي، نو ګواکي موصي چي دلته دویم ځل "سدس مالي لفلان" ویلي دي. په هغه سره یې د اول یوه تأکید او یادښت کړی دی او اول هغه د سدس وصیت کړی دی. نو ځکه موصیٰ لهٗ به ته صرف سدس ورکول کیږي.

## د ثلث له وصیت کولو څخه وروسته د دوه ثلثه مال ضایع کېدلو حکم او تفصیل

قَالَ وَمَنْ أَوْصٰى بِثُلُثِ دَرَاهِمِهِ فرمایي: او څوک چي د خپلو دراهمو د ثلث (دریمي حصې) وصیت وکړي أَوْ بِثُلُثِ غَنَمِهِ یا د خپلو پسونو د ثلث وصیت وکړي فَهَلَكَ ثُلُثَا ذٰلِكَ بیا د هغه (دراهمو یا

پسونو] دوه ثلثه هلاک سي وَبَقِيَ ثُلُثُهُ او یو ثلث یې باقي پاته سي وَهُوَيَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنْ مَالِهِ او هغه پاته سوی ثلث د موصي د ما بقي مال له ثلث څخه وځي فَلَهُ جَمِيْعُ مَا بَقِيَ نو د موصیٰ لهٗ لپاره ټوله مابقي مقدار [ثلث] دی وَقَالَ زُفَرُ ❁ : لَهُ ثُلُثُ مَا بَقِيَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د هغه لپاره د ما بقي مقدار ثلث دی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمْ ځکه له دې دواړو څخه هر یو د دوی تر مینځ مشترک دی وَالْمَالُ الْمُشْتَرَكُ يُتْوٰى مَا تُوِيَ مِنْهُ عَلَى الشَّرِكَةِ او له مشترک مال څخه چي کوم مقدار هلاک سي هغه پر شرکت [مشترک] هلاکیږي وَيَبْقٰى مَا بَقِيَ عَلَيْهَا او کوم مقدار چي پاته سي هغه هم پر شرکت [مشترک] پاتیږي وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَتِ التَّرِكَةُ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً او دا داسي سوه لکه کله چي میراث مختلفه جنسونه وي [مثلاً څه پسونه وي. څه اوښان وغیره وي...] وَلَنَا: أَنَّ فِي الْجِنْسِ الْوَاحِدِ يُمْكِنُ جَمِيْعُ حَقِّ أَحَدِهِمْ فِي الْوَاحِدِ او زموږ دلیل دا دی: چي په یوه جنس کي له دوی څخه د هر یوه حق په یوه کي جمع کول ممکن دي وَلِهٰذَا يَجْرِيْ فِيهِ الْجَبْرُ عَلَى الْقِسْمَةِ او په همدې وجه په یوه جنس کي پر تقسیم مجبوره کول جاري کېدلای سي وَفِيهِ جَمْعٌ او په تقسیم کي جمع کول سته وَالْوَصِيَّةُ مُقَدَّمَةٌ او وصیت مخکي دی فَجَمَعْنَاهَا فِي الْوَاحِدِ الْبَاقِي لهذا موږ هغه په باقي یوه کي جمع کړی وَصَارَتِ الدَّرَاهِمُ كَالدِّرْهَمِ او دراهم د درهم په څېر وګرځېده [لکه موصي چي د یوه درهم وصیت کړی وي] بِخِلَافِ الْأَجْنَاسِ الْمُخْتَلِفَةِ په خلاف د مختلفه جنسونو لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ الْجَمْعُ فِيهَا جَبْرًا ځکه په هغوی کي جبراً جمع کول ممکن نه دي [یعني په مختلفه جنسونو کي پر تقسیم د مجبوره کولو په اعتبار سره جمع کول ممکن نه دي] فَكَذَا تَقْدِيْمًا نو همداسي به د مقدم کولو په اعتبار سره هم [جمع کول ممکن نه] وي.

**اللغات:** ﴿غنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسمِ جنس دی، واحد یې من غیر لفظه شَاةٌ دی: مذکر او مؤنث دواړو لره شاملیږي، همدارنګه پسونه او وزې ټوله په دې لفظ کي داخل دي (موږ د آسانۍ او کثرت په خاطر د دې ترجمه په پسونو سره کوو) او دې ته د "غَنَم" ویلو وجه دا ده چي پسونه او وزې خو نه د جهاد آلې دي او

❁ القول الراجح: قول زفر رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح، ج:٢، ص:٢٧٦]

نه د دفاع آلې دي بلکي د هر چا لپاره غنيمت دي. ﴿يُتوٰى﴾ د سمع د باب مضارع مجهوله ده او تُوِيَ له همدې باب څخه ماضي مجهوله ده: هلاکېدل، ضايع کېدل او بربادېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د يو سړي سره دراهم يا پسونه دي او له هغه څخه بغير د ده سره دومره مال هم سته کوم چي د دراهمو يا پسونو دوه ثلثه دي (يعني د دراهمو يا پسونو د ثلث دوه چنده دي). بيا دې سړي وصيت وکړی چي زما له دراهمو څخه يا زما له پسونو څخه يو ثلث د فلانکي کس (مثلاً د خالد) لپاره دی، او تر وصيت وروسته دا پېښه سوه چي له ټولو دراهمو يا له ټولو پسونو څخه دوه ثلثه هلاک سوه او صرف يو ثلث باقي پاته سو، مثلاً نهه سوه ۹۰۰ پسونه وه يا نهه سوه ۹۰۰ درهمه وه او له هغوی څخه دوه ثلثه يعني ۶۰۰ هلاک سوه او صرف ۳۰۰ درهمه پاته سوه او موصي د همدې ۳۰۰ درهمو وصيت کړی وو، نو زموږ په نېز حکم دا دی چي دا ثلث به ټوله موصیٰ لهٗ ته ورکول کيږي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي موصیٰ لهٗ ته به د ما بقی يعني د ۳۰۰ درهمو ثلث ورکول کيږي کوم چي ۱۰۰ درهمه دي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د موصي ټوله مال د موصیٰ لهٗ او وارثانو تر مينځ مشترک دی او د مشترک مال په هکله اُصول دا دی چي د هغه بقاء او هلاکت دواړه مشترک کيږي. لهذا څرنګه چي تر هلاکېدلو مخکي نهه سوه ۹۰۰ درهمه د موصیٰ لهٗ او وارثانو تر مينځ مشترک وه او موصیٰ لهٗ له هغه څخه د دريو سوه ۳۰۰ درهمو حقداره وو، نو همداسي له دغه مشترک مال څخه چي کوم مقدار هلاک سوی دی او کوم مقدار چي پاته دی هغه به هم مشترک وي، او څرنګه چي ما بقي مقدار ۳۰۰ درهمه دی، نو ځکه دا مقدار به د موصیٰ لهٗ او وارثانو تر مينځ مشترک وي او د هغه چي کوم ثلث دی يعني ۱۰۰ درهمه، هغه به موصیٰ لهٗ ته ورکول کيږي. د دې مثال داسي دی لکه د مړي (ميت) ميراث که چيري مختلفه اجناس وي، مثلاً څه پسونه وي، څه اوښان وي او څه آسونه وي او موصي د هغوی د ثلث وصيت وکړي او بيا له هغوی څخه دوه ثلثه هلاک سي، نو په دې صورت کي به موصیٰ لهٗ ته له هر جنس څخه ثلث ورکول کيږي، نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم هغه ته د ما بقی مقدار ثلث ورکول کيږي.

ولنا أن في إلخ: دا زمونږ دلیل هم دی او دامام زفر رَحِمَهُ الله د قیاس جواب هم دی. زمونږ دلیل خو په دې توګه دی چې مذکوره مسئله د جنسِ واحد سره متعلق ده. برابره ده هغه پسونه دي او که دراهم دي. او په جنسِ واحد کې څو شریکان سره جمع کول کېدای سي، او په هغه کې که یو شریک د تقسیم غوښتنه وکړي نو د هغه پر غوښتنه قاضي جبراً تقسیم هم کولای سي (یعني نور شریکان پر تقسیم مجبوره کولای سي). لهذا دلته په مذکوره مسئله کې ټوله شریکان یعني موصیٰ لهٗ او وارثان په ۹۰۰ درهمو یا په ۹۰۰ پسونو کې سره شریک دي. خو د موصیٰ لهٗ حق د اصل په توګه (اصلاً) ثابت دی او د وارثانو حق د تابع په توګه (متابعتا) ثابت دی او قاعده دا ده چې که یو مال د اصل او تابع ترمینځ مشترک وي او بیا له هغه څخه څه مال هلاک سي، نو هلاک سوی مقدار د تابع وطرف ته ګرځول کیږي، لهذا په مذکوره مسئله کې چې کوم دوه ثلثه مال هلاک سوی دی، هغه ګواکي د وارثانو حصه هلاکه سوې ده او مابقي یو ثلث د موصیٰ لهٗ دی. لهذا هغه به موصیٰ له ته سپارل کیږي.

د دې مثال داسي دی لکه موصي چې د دراهمو پر ځای دیوه درهم وصیت کړی وي چې ما فلانکي ته یو درهم ورکړی دی، او د هغه سره ټوله درې درهمه وي. نو په دې صورت کې که دوه درهمه هلاک سي او فقط یو درهم پاته سي، نو هغه یو درهم به ټوله موصیٰ لهٗ ته ورکول کیږي او له هغه څخه به څه نه را ګرځول کیږي چې صرف د درهم ثلث ورکول سي. نو همداسي به په مذکوره مسئله کې هم موصیٰ لهٗ ته مابقي ثلث ټوله ورکول کیږي.

د دې په خلاف د اجناسِ مختلفه وو مسئله ده. نو په اجناسِ مختلفه وو کې خو نه جبر کېدلای سي او نه په هغوی کې موصیٰ لهٗ ته پر وارثانو تقدم حاصلیږي. لهذا دلته د اصل او تابع والا مسئله نه جاري کیږي نو کوم مقدار چې هلاک سي هغه به مشترک هلاکیږي (یعني د وارثانو او موصیٰ لهٗ دواړو له حصې څخه به هلاک شمېرل کیږي) او کوم چې باقي پاته سي هغه به هم مشترک وي. نو ځکه د اجناسِ مختلفه په صورت کې موصیٰ لهٗ ته د مابقي مقدار ثلث ورکول کیږي.

## د پورتنۍ مسئلي بل صورت

قَالَ: وَلَوْ أَوْصٰى بِثُلُثِ ثِيَابِهِ فرمایي: او که څوک د خپلو کپړو د ثلث (دریمي حصې) وصیت وکړي فَهَلَكَ ثُلُثَاهَا وَبَقِيَ ثُلُثُهَا بیا د هغه کپړو دوه ثلثه هلاک سي او ثلث یې باقي پاته سي وَهُوَ يَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنْ مَالِهِ او هغه پاته سوی ثلث د مابقي مال له ثلث څخه وځي لَمْ يَسْتَحِقَّ

إِلَّا ثُلُثَ مَا بَقِيَ مِنَ الثِّيَابِ نو موصیٰ لهٔ صرف د ما بقي کپړو د ثلث مستحق کيږي قَالُوا: هٰذَا إِذَا كَانَتِ الثِّيَابُ مِنْ أَجْنَاسٍ مُخْتَلِفَةٍ مشايخو فرمايلي دي: چي دا [حکم] هغه وخت دی کله چي کپړې مختلفه جنسونو والا وي وَلَوْكَانَتْ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ او که کپړې يوه جنس والا وي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الدَّرَاهِمِ نو بيا کپړې د دراهمو په درجه کي دي وَكَذٰلِكَ الْمَكِيْلُ وَالْمَوْزُوْنُ بِمَنْزِلَتِهَا او همدارنګه کَيلي او وزني شی هم د دراهمو په درجه کي دی لِأَنَّهُ يَجْرِيْ فِيهِ الْجَمْعُ جَبْرًا بِالْقِسْمَةِ ځکه چي په هغه [کَيلي او وزني شي] کي د جبر بالتقسيم په اعتبار سره جمع کول جاري کيږي [يعني په هغوی کي پر تقسيم د مجبوره کولو په اعتبار سره جمع کول ممکن دي].

**اللغات:** ﴿ثياب﴾ جمع د ثَوْبٌ ده: کپړې. ﴿مکيل﴾ پيمانه کېدونکی شی. يعني هغه شی کوم چي په پيمانه (لوښي) سره اندازه کيږي او په پيمانه خرڅيږي. لکه غنم. اوربشي وريجي او داسي نور (ځکه پخوا به دا شيان په پيمانه سره اندازه کېدل او خرڅېدل). ﴿موزون﴾ وزن کېدونکی شی (تلل کېدونکی شی). يعني هغه شی کوم چي په وزن (تول) سره اندازه کيږي او خرڅيږي. ﴿يجری﴾ د ضرب د باب مضارع ده: جاري کېدل. چلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د خالد سره مثلاً ډېري کپړې يا ډېر تانونه پراته دي او خالد د يو سړي (مثلاً د حامد) لپاره د هغه کپړو د يوه ثلث وصيت وکړی. بيا د هغه کپړو دوه ثلثه هلاک او ضايع سول او صرف يو ثلث يې باقي پاته سو. ليکن له هغوی څخه بغير د موصي (خالد) سره نور مال هم سته او هغه مال له باقي مانده کپړو څخه دوچنده زيات دی. نو موصیٰ لهٔ (حامد) ته به څومره حصه ورکول کيږي؟ په دې صورت کي د مشايخو رَحِمَهُمُ الله قول دا دی چي که کپړې مختلفُ الاجناس وي. نوموصیٰ لهٔ ته به د ما بقي کپړو ثلث ورکول کيږي. او که کپړې متحدُ الجنس وي. نو هغوی د دراهمو په درجه کي دي يعني په دې صورت کي به موصیٰ لهٔ ته ما بقی کپړه ټوله ورکول کيږي. همدارنګه که موصیٰ بهٖ کَيلي يا وزني شی وي نو هغه هم په دې صورت کي د دراهمو په درجه کي دی. يعني په دې صورت کي به هم موصیٰ لهٔ ته ما بقي شی ټوله ورکول کيږي؛ ځکه څرنګه چي په دراهمو وغيره کي جبراً تقسيم جائز دي چي د وارثانو او موصیٰ لهٔ حصې سره جمع کول ممکن دي. همدغسي په کَيلي او وزني شيانو کي هم جبراً تقسيم جائز دی او د وارثانو او موصیٰ لهٔ حصې سره جمع کول ممکن دي.

وَلَوْ أَوْصَىٰ بِثُلُثِ ثَلَاثَةٍ مِنْ رَقِيقِهِ او كه څوک د خپلو دريو غلامانو د ثلث [درېيمي حصې] وصيت وكړي فَمَاتَ اِثْنَانِ بيا دوه غلامان مړه سي لَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا ثُلُثُ الْبَاقِيْ نو د موصى له لپاره صرف د ما بقى غلام ثلث دى. وَكَذَا الدُّوْرُ الْمُخْتَلِفَةُ او همدارنګه مختلفه کورونه [يعني همدا حكم د مختلفه كورونو دى] وَقِيْلَ: هٰذَا عَلٰى قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَحْدَهُ او ويل سوي دي: چي دا يوازي د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول دي [يعني په دې مسئله كي د امام او صاحبينو تر مينځ اختلاف دى] لِأَنَّهُ لَا يُجْبَرُ عَلَى الْقِسْمَةِ فِيْهَا ځكه هغه په دوى [مختلفه كورونو او غلامانو كي] پر تقسيم جبر جائز نه ګڼي وَقِيْلَ: هُوَ قَوْلُ الْكُلِّ او ويل سوي دي: چي دا د ټولو قول دى لِأَنَّ عِنْدَهُمَا لِلْقَاضِيْ أَنْ يَجْتَهِدَ وَيَجْمَعَ ځكه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز قاضي ته دا اختيار سته چي هغه داسي اجتهاد وكړي او جمع وكړي وَبِدُوْنِ ذٰلِكَ يَتَعَذَّرُ الْجَمْعُ او د قاضي له اجتهاد څخه بغير جمع كول ناممكن دي وَالْأَوَّلُ أَشْبَهُ بِالْفِقْهِ الْمَذْكُوْرِ او اول قول [چي په دې مسئله كي اختلاف دى] د مذكوره فقه زيات مشابه دى.

**اللغات:** ﴿رقيق﴾ خالص غلام، مملوک. ﴿دُوْر﴾ جمع د دَار ده: كور، مكان، د اوسېدلو ځاى. ﴿يتعذر﴾ د تفعل د باب مضارع ده: مشكل كېدل، ناممكن كېدل. ﴿فقه﴾ إدراك دقائق الأمور، عقلي دليل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي د خالد درې غلامان دي او خالد له دغوى څخه د يوه ثلث يعني د يوه غلام وصيت د حامد لپاره وكړى بيا دوه غلامان مړه سول. يا مثلاً د خالد څو كورونه دي او خالد د حامد لپاره د هغه وصيت وكړى او بيا هغه كورونه خراب او ويجاړ سول او د ثلث په اندازه كورونه پاته سول. نو په دې دواړو صورتونو كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز موصى له (حامد) ته به د ما بقي حصې ثلث وركول كيږي او ټوله ما بقي به نه وركول كيږي. خو له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه په دې سلسله كي دوه قوله نقل سوي دي: ① اول قول دا دى چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حكم دا دى چي موصى له ته به ما بقى ټوله وركول كيږي (نو دا اول قول مطابق مذكور د مسئله د امام صاحب او صاحبينو تر مينځ مختلف فيها ده). ② دويم قول دا دى چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مسلک موافق دى يعني موصى له ته به د ما بقى ثلث وركول كيږي (يعني دا مسئله متفق عليها ده).

د اول قول په صورت کي د امام صاحب دليل دا دی چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د غلامانو او د کورنو اجناس مختلفه گڼي او په هغوی کي جبراً تقسيم صحيح نه مني، او د اجناسِ مختلفه په صورت کي موصیٰ لهٗ ته د ما بقی ثلث ور کول کيږي. نو ځکه دلته به هم موصیٰ لهٗ ته د ما بقي ثلث ور کول کيږي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دادی چي دا جنسِ واحد دي او په جنسِ واحد کي جبراً تقسيم کېدلای سي او چيري چي جبراً تقسيم کېدلای سي. هلته موصیٰ لهٗ ته ټوله ما بقي حاصليږي. نو ځکه دلته به هم موصیٰ لهٗ ته ټوله حق حاصليږي.

او د دويم قول په صورت کي (يعني که دا مسئله متفق عليها ومنل سي نو) پر صاحبينو اعتراض واردېږي. نو د دويم قول په صورت کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د دوی په نيز قاضي ته دا اختيار سته چي هغه په خپل اجتهاد سره د شريکانو حصې سره جمع کړي او تر څو چي قاضي اجتهاد نه وکړي تر هغه وخته به جمع ممکنه نه وي. لنډه دا چي د قاضي په اجتهاد سره دلته جمع ممکنه ده. حال دا چي دلته بدون جمع دا مال (غلامان يا کورونه) هلاک سوی دی. نو ځکه په هلاکت او بقاء دواړو کي به شرکت کيږي او موصیٰ لهٗ ته به د ما بقی ثلث ور کول کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي اول قول (چي دا مذکوره مسئله مختلف فيها ده) زيات صحيح او د فقه زيات مشابه دی.

## د معيّن عدد وصيت کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِرَجُلٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فرمايي: او څوک چي د يو سړي لپاره د زرو درهمو وصيت وکړي وَلَهٗ مَالٌ عَيْنٌ وَدَيْنٌ او د هغه [وصيت کونکي] سره نغد مال [هم] وي او قرض [هم] وي فَإِنْ خَرَجَ الْأَلْفُ مِنْ ثُلُثِ الْعَيْنِ نو که زر درهمه د نغد مال له ثلث څخه وځي دُفِعَ إِلَى الْمُوْصٰى لَهٗ نو زر درهمه به موصیٰ لهٗ ته ور کول کيږي لِأَنَّهٗ أَمْكَنَ إِيْفَاءُ كُلِّ ذِيْ حَقٍّ حَقَّهٗ مِنْ غَيْرِ بَخْسٍ ځکه [په دې صورت کي] هر حق والا ته د هغه حق ور کول ممکن دي بغير له څه کمی څخه فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځکه د هغه وطرف ته به رجوع کول کيږي وَإِنْ لَمْ يَخْرُجْ او که زر درهمه [د نغد مال له ثلث څخه] نه وځي دُفِعَ إِلَيْهِ ثُلُثُ الْعَيْنِ نو موصیٰ لهٗ ته به د نغد مال ثلث ور کول کيږي وَكُلَّمَا خَرَجَ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ او هر

کله چې د قرض کوم څه مقدار را وځي [يعني د موصي کوم قرض چې خېږي او ترلاسه کول کيږي] أَخَذَ ثُلُثَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْأَلْفَ نو موصیٰ لهٔ به د هغه ثلث اخلي تر دې چې هغه [موصیٰ لهٔ] زر درهمه ترلاسه کړي لِأَنَّ الْمُوصَى لَهُ شَرِيكُ الْوَارِثِ ځکه چې موصیٰ لهٔ د وارث شریک دی وَفِي تَخْصِيصِهِ بِالْعَيْنِ بَخْسٌ فِي حَقِّ الْوَرَثَةِ او په نغد مال سره د موصیٰ لهٔ په خاص کولو کې د وارثانو په حق کې کمي کول دي لِأَنَّ لِلْعَيْنِ فَضْلًا عَلَى الدَّيْنِ ځکه چې نغد مال لره پر قرض فضيلت [فوقيت] حاصل دی وَلِأَنَّ الدَّيْنَ لَيْسَ بِمَالٍ فِي مُطْلَقِ الْحَالِ او ځکه چې قرض په مطلق حال کې [فی الحاله] مال نه دی وَإِنَّمَا يَصِيرُ مَالًا عِنْدَ الِاسْتِيفَاءِ [ځکه] قرض خو د اخيستلو په وخت کې مال ګرځي فَإِنَّمَا يَعْتَدِلُ النَّظَرُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ نو [د موصیٰ لهٔ او د وارثانو ترمنځ] نظر په هغه صورت کې معتدل کيږي کوم چې موږ ذکر کړی دی.

**اللغات:** ﴿مُوصیٰ لهٔ﴾ افعال د باب مفعول دی: د چا لپاره چې وصيت سوی وي (د چا په حق کې چې وصيت سوی وي). ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) پوره ورکول، اداء کول. ﴿يستوفی﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پوره اخيستل. ترلاسه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد دا وصيت وکړی چې زما له مال څخه دې خالد ته زر درهمه ورکول سي او له دغه موصیٰ به يعني له زرو درهمو (ألف) څخه بغير د زيد سره نور مال هم سته چې هغه څه نغد مال دی او څه قرض دی. نو اوس به دې ته کتل کيږي چې د هغه سره نغد مال څومره دی؟ که نغد مال دومره وي چې موصیٰ به (زر درهمه) د هغه ثلث وي (يعني نغد درې زره درهمه وي). نو په دې صورت کې به موصیٰ لهٔ (خالد) ته زر درهمه نغد ورکول کيږي: ځکه له هغه څخه بغير د موصي (زيد) سره داسې نور دوچنده مال سته او له څه کمې څخه بغير وارثانو ته له هغه څخه حق ورکول کېدای سي.

او که له موصیٰ به څخه بغير د موصي سره نغد مال زيات نه وي. بلکې صرف همدا زر درهمه ور سره وي. نو په دې صورت کې به موصیٰ لهٔ (خالد) ته پوره زر درهمه نه ورکول کيږي. بلکې کوم زر درهمه چې نغد موجود دي. فی الحاله به د هغه ثلث ورکول کيږي او په باقي مقدار کې به د موصي

لهٔ(خالد) سره د قرض معامله کیږي او هغه ته به دا ویل کیږي چې هر کله هم د موصي قرض خپږي.نو ته له هغه څخه ثلث اخله! او په دې توګه خپل زر درهمه پوره ترلاسه کړه!.

په مذکوره صورت کې موصیٰ لهٔ ته د پوره زرو درهمو د نه ورکولو وجه دا ده چې موصیٰ لهٔ او وارثان دواړه د مړي (موصي) په میراث کې شریکان دي او څرنګه چې نغد مال له قرض څخه افضل او غوره دی. نو ځکه که نغد مال (زر درهمه) ټوله موصیٰ لهٔ ته ورکول سي. نو دا به د وارثانو سره ظلم و زیاتوب وي او د دوی په حق کې به کمي او قصور لازم سي. لهذا وارثان او موصیٰ لهٔ چې څرنګه په استحقاق کې شریکان دي. همداسې به په مال اخیستلو کې هم شریکان وي. او شرکت په همغه صورت کې متحقق کیږي کله چې موصیٰ لهٔ ته فی الحاله د نغد مال ثلث ورکول سي.

**د دوو کسانو لپاره د ثلث مال تر وصیت کولو وروسته که معلومه سوه چې یو کس مړ دی؟**

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو بِثُلُثِ مَالِهِ فرمایي: او څوک چې د زید او عمرو لپاره د خپل مال د ثلث وصیت وکړي فَإِذَا عَمْرٌو مَيِّتٌ خو عمرو مړ سوی وي فَالثُّلُثُ كُلُّهُ لِزَيْدٍ نو ثلث ټوله د زید لپاره دی لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْوَصِيَّةِ ځکه مړی د وصیت اهل نه دی فَلَا يُزَاحِمُ الْحَيَّ الَّذِيْ هُوَ مِنْ أَهْلِهَا نو مړی [عمرو] د هغه ژوندي [زید] نه مزاحم کیږي کوم چې د وصیت اهل دی كَمَا إِذَا أَوْصٰى لِزَيْدٍ وَجِدَارٍ لکه کله چې څوک د زید او دېوال لپاره وصیت وکړي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِمَوْتِهِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې کله موصي د عمرو په مرګ خبر نه وي فَلَهُ نِصْفُ الثُّلُثِ نو د زید لپاره د ثلث نصف دی لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ عِنْدَهُ صَحِيْحَةٌ لِعَمْرٍو ځکه د وصي په نېز [د وصي په ګومان] د عمرو لپاره وصیت صحیح دی فَلَمْ يَرْضَ لِلْحَيِّ إِلَّا نِصْفَ الثُّلُثِ نو موصي به د ژوندي [زید] لپاره صرف د ثلث په نصف راضي وي بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ بِمَوْتِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي د عمرو په مرګ خبر وي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لِلْمَيِّتِ لَغْوٌ ځکه د مړي لپاره وصیت کول بې ځایه دي فَكَانَ رَاضِيًا بِكُلِّ الثُّلُثِ لِلْحَيِّ نو هغه به د ژوندي [زید] لپاره په ټوله ثلث راضي وي.

**اللغات**: ﴿لايزاحم﴾ د افعال له بابه د نفي صیغه ده: مزاحم کېدل. مقابل کېدل. تنګي کول. ﴿لغو﴾ بې ځایه او بېکاره. بې نتیجې.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که یو سړي د زید او عَمرو دواړو لپاره د خپل مال د ثلث (دریمې حصې) وصیت وکړی، لېکن تر وصیت وروسته خبر سو چې عَمرو خو مړ سوی دی، نو په دې صورت کې ټوله موصیٰ بهٖ (ثلث) خالد ته حاصلیږي او یوازې هغه د ټوله ثلث مستحق کیږي. ځکه چې مړی د وصیت قبلولو اهل نه دی، لهذا مړی (عَمرو) د هغه ژوندي کس مزاحم او مقابل نه سي کېدلای کوم چې د وصیت قبلولو اهل دی. د دې مثال داسې دی لکه څوک چې د خالد او دېوال لپاره وصیت وکړي، نو ښکاره خبره ده چې په دېوال کې د وصیت قبلولو هیڅ اهلیت او صلاحیت نه سته، لهذا ټوله وصیت به د زید لپاره وي، نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم څرنګه چې حامد مړ سوی دی او په هغه کې د وصیت قبلولو صلاحیت نسته، نو ځکه صرف همدا خالد به د ټوله ثلث مستحق وي.

وعن أبي یوسف إلخ: له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې که موصي د حامد په مرګ خبر نه وي او وروسته په خبر سي، نو په دې صورت کې خالد ته صرف نصف ثلث (نیمایي ثلث) حاصلیږي او ټوله ثلث به نه ورکول کیږي؛ ځکه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د حامد (مړي) لپاره وصیت صحیح دی، لهذا هغه به خالد ته صرف د نصف ثلث په ورکولو راضي وي نو صرف هغه به ورکول کیږي.

بخلاف إلخ: ها! که موصي د حامد په مرګ خبر وي، نو په دې صورت کې ژوندي کس (خالد) ته ټوله موصیٰ بهٖ (ثلث) حاصلیږي، ځکه د مړه کس لپاره وصیت کول لغو او بې ځایه دي، نو ګواکې دلته موصي فقط ژوندي کس ته د ټوله موصیٰ بهٖ په ورکولو راضي دی، نو ځکه دلته به صرف همدې ژوندي کس یعني خالد ته ټوله موصیٰ بهٖ ورکول کیږي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَإِنْ قَالَ: ثُلُثُ مَالِي بَيْنَ زَيْدٍ وَعَمْرٍو او که موصي ووایي: چې زما د مال ثلث [دریمه حصه] د زید او عمرو تر مینځ ده وَزَيْدٌ مَيِّتٌ حال دا چې زید مړ سوی وي كَانَ لِعَمْرٍو نِصْفُ الثُّلُثِ نو د عمرو لپاره د ثلث نصف [نیمایي ثلث] دی لِأَنَّ قَضِيَّةَ هٰذَا اللَّفْظِ أَنْ يَكُونَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ الثُّلُثِ ځکه د دې لفظ [یعني د "بَيْنَ"] تقاضا دا ده چې له دوی دواړو څخه د هر یوه لپاره د ثلث نصف وي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنۍ مسئلې أَلَا تَرَىٰ أَنَّ مَنْ قَالَ: ثُلُثُ مَالِي لِزَيْدٍ وَسَكَتَ آیا ته نه ګورې!

چي که څوک ووايي: زما د مال ثلث د زيد لپاره دی او چپ پاته سي كَانَ لَهُ كُلُّ الثُّلُثِ نو د هغه [زيد] لپاره ټوله ثلث دی وَلَوْقَالَ: ثُلُثُ مَالِي بَيْنَ فُلَانٍ وَسَكَتَ او که داسي ووايي: زما د مال ثلث د فلانکي تر مينځ دی او چپ پاته سي لَمْ يَسْتَحِقَّ الثُّلُثَ نو هغه [فلانکی] د ثلث نه مستحق کيږي.

**اللغات:** ﴿قضية﴾ تقاضا، مقتضا، حکم او فيصله. ﴿سکت﴾ د نصر د باب ماضي ده: چپ کېدل، خاموش کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو څوک داسي ووايي چي زما د مال ثُلث د زيد او عَمرو تر مينځ (مشترک) دی يعني د "لزيدٍ وعمرٍو" پر ځای "بين زيدٍ وعمرٍو" ووايي. حال دا چي عَمرو مړ سوی دی، نو په دې صورت کي ژوندي يعني زيد ته د ثلث نصف حاصليږي او ټوله ثلث نه ورته حاصليږي: ځکه د "بَيْن" لفظ د شرکت تقاضا کوي او شرکت په همغه صورت کي متحقق کيږي کله چي ژوندي کس (زيد) ته د ثلث نصف حاصل سي. د دې په خلاف په مخکني مسئله کي يعني کله چي موصی "لزيدٍ وعمرٍو" ويلي وي.نو هلته "ل" صرف پر استحقاق دلالت کوي، پر شرکت دلالت نه کوي. نو ځکه هلته د عَمرو د مړ کېدلو په صورت کي زيد د ټوله ثلث مستحق کيږي، لېکن په مذکوره مسئله کي به زيد صرف په نصف ثلث اکتفا کوي او د ټوله ثلث نه مستحق کيږي.

د دې مثال دا دی لکه څوک چي ووايي "ثلث مالي لزيدٍ" بيا چپ پاته سي او هيڅ نه ووايي، نو زيد د ټوله ثلث مستحق کيږي او که داسي ووايي "ثلث مالي بين زيدٍ" نو زيد د ټوله ثلث نه مستحق کيږي: ځکه لفظ د "بَيْن" په استحقاق مع الشرکة باندي دلالت کوي، حال دا چي "ل" صرف په استحقاق باندي دلالت کوي.

## که د يو چا سره هيڅ مال نه وي او هغه د ثلث مال وصيت وکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى بِثُلُثِ مَالِهِ فرمايي: او که څوک د خپل مال د ثلث [دريمي حصې] وصيت وکړي وَلَا مَالَ لَهُ حال دا چي د هغه لپاره مال نه وي وَاكْتَسَبَ مَالًا او بيا هغه [موصي] مال وګټي اِسْتَحَقَّ الْمُوْصٰى لَهُ ثُلُثَ مَا يَمْلِكُهُ عِنْدَ الْمَوْتِ نو موصیٰ لهٗ د هغه مال د ثلث مستحق کيږي چي موصي د مرګ په وخت کي د هغه مالک وي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ عَقْدُ اِسْتِخْلَافٍ مُضَافٌ إِلٰى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه وصيت د خليفه جوړولو يو عقد دی کوم چي تر مرګ وروسته [حالت] ته مضاف دی وَيَثْبُتُ

حُكْمُهُ بَعْدُ او د هغه [وصيت] حکم تر مرګ وروسته ثابتیږي فَيُشْتَرَطُ وُجُوْدُ الْمَالِ عِنْدَ الْمَوْتِ لَا قَبْلَهُ نو ځکه د مرګ په وخت کې د مال موجودېدل شرط دي نه تر هغه مخکې وَكَذٰلِكَ إِذَا كَانَ لَهُ مَالٌ فَهَلَكَ او همدارنګه کله چې د موصي لپاره مال وي بيا هغه هلاک سي ثُمَّ اكْتَسَبَ مَالًا بيا موصي [نور] مال حاصل کړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿اكتسب﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ګټل. ﴿استخلاف﴾ د استفعال د باب مصدر دی: خليفه جوړول. نائب/قائم مقام جوړول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زيد مثلاً د حامد لپاره د خپل مال د درېيمي حصې (ثلث المال) وصيت وکړي. لېکن د وصيت په وخت کې د ده سره مال نه وي او بيا وروسته څه مال وګټي. نو دئ (زيد) چې د مړ کېدلو په وخت کې د څومره مال مالک وي يعني د مرګ په وخت کې چې د ده سره خپل څومره مال وي. د هغه ټوله مال ثلث موصیٰ لهٔ (حامد) ته حاصليږي او د وصيت په وخت کې د موصي سره د مال نشتوالی د وصيت پر صحت هيڅ اثر نه کوي؛ ځکه وصيت عقد استخلاف دی کوم چې تر مرګ وروسته حالت ته مضاف او منسوب دی او د هغه حکم هم تر مرګ وروسته ثابتيږي. لهذا د مرګ په وخت کې که د موصي سره مال وي نو د هغه وصيت صحيح دی. کنې صحيح نه دی.

وكذالك إلخ: يعني که د موصي سره مال موجود وي او هغه له دې مال څخه د يو چا (مثلاً د حامد) لپاره د ثلث وصيت کړی وي. بيا دا مال هلاک سي. لېکن تر مړ کېدلو مخکې موصي مال وګټي. نو په دې صورت کې هم ذ هغه وصيت صحيح او جائز دی: ځکه د وصيت د صحت لپاره د مرګ په وخت کې د موصي سره د مال موجودېدل شرط دي او دلته د مرګ په وخت کې د هغه سره مال سته. نو ځکه د هغه وصيت هم صحيح دی.

## د پسونو د وصيت کولو په صورت کې که ټوله پسونه ضايع سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَوْصٰى لَهُ بِثُلُثِ غَنَمِهِ او که موصي د يو چا لپاره د خپلو پسونو د ثلث [درېيمي حصې] وصيت وکړي فَهَلَكَ الْغَنَمُ قَبْلَ مَوْتِهِ بيا د موصي تر مرګ مخکې پسونه هلاک سي أَوْ لَمْ يَكُنْ لَهُ غَنَمٌ فِي الْأَصْلِ يا په اصل کې د موصي سره هيڅ پسونه نه وي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصيت باطل دی لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ إِيجَابٌ بَعْدَ الْمَوْتِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی چې دا تر مرګ وروسته وصيت واجبول دي فَيُعْتَبَرُ قِيَامُهُ حِينَئِذٍ نو ځکه په هغه وخت [د مرګ په وخت کې] به د موصیٰ به

[پسونو] د موجودېدلو اعتبار کیږي وَهٰذِهِ الْوَصِيَّةُ تَعَلَّقَتْ بِالْعَيْنِ او دغه وصیت د عین [پسونو] سره متعلق دی فَتَبْطُلُ بِفَوَاتِهِ عِنْدَ الْمَوْتِ نو ځکه د مرګ په وخت کي د دې عین د فوتوالي [نشتوالي] په وجه به وصیت باطلیږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ غَنَمٌ او که د موصي سره پسونه نه وي فَاسْتَفَادَ بیا موصي پسونه ترلاسه کړي ثُمَّ مَاتَ بیا موصي مړ سي فَالصَّحِيحُ أَنَّ الْوَصِيَّةَ تَصِحُّ نو صحیح دا ده چي [په دې صورت کي] وصیت صحیح کیږي لِأَنَّهَا لَوْ كَانَتْ بِلَفْظِ الْمَالِ ځکه که وصیت د مال په لفظ سره وای تَصِحُّ نو [په مذکوره صورت کي] به وصیت صحیح کېدلای فَكَذَا إِذَا كَانَتْ بِاسْمِ نَوْعِهِ نو همداسي [په هغه صورت کي به هم صحیح کیږي] کله چي وصیت د مال د یو قسم په نوم سره وي [ځکه پسونه د مال یو نوع ده] وَهٰذَا لِأَنَّ وُجُودَهُ قَبْلَ الْمَوْتِ فَضْلٌ او دا ځکه چي تر مرګ مخکي د موصیٰ بِهٖ موجودېدل فضول دي وَالْمُعْتَبَرُ قِيَامُهُ عِنْدَ الْمَوْتِ او معتبر د مرګ په وخت کي د موصیٰ بهٖ موجودېدل دي.

**اللغات**: ﴿غنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسمِ جنس دی، واحد يې من غير لفظه شَاةٌ دی: مذکر او مؤنث دواړو لره شاملیږي. همدارنګه پسونه او وزې ټوله په دې لفظ کي داخل دي (مورږ د آساني او کثرت په خاطر د دې ترجمه په پسونو سره کوو). ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول او لازمول. ثابتول. ﴿فوات﴾ د نصر د باب مصدر دی: فوتېدل. ضایع کېدل. ﴿استفاد﴾ د استفعال د باب ماضي ده: حاصلول (ترلاسه کول). فایده حاصلول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د خپلو پسونو ثلث یو چا ته په وصیت کي ورکړي چي زما تر مرګ وروسته د پسونو دریمه حصه ستا ده او بیا دهغه (موصي) تر مرګ مخکي ټوله پسونه هلاک سي، یا د هغه سره په هیڅ وخت کي هم پسونه نه وي، نه د وصیت په وخت کي او نه د مرګ په وخت، نو د هغه دا وصیت صحیح نه دی: ځکه مخکي دا خبره تېره سوې ده چي د وصیت صحیح کېدلو لپاره (د موصي) د مرګ په وخت کي د مال او موصیٰ بهٖ موجودېدل شرط دي. او دلته په دواړو صورتونو کي موصیٰ بهٖ معدوم دی. نو ځکه وصیت صحیح نه دی. او بل دا چي دلته موصیٰ بهٖ عَین یعني پسونه دي او وصیت د عَین سره متعلق دی. او د مرګ په وخت کي دا عَین معدوم او مفقود دی. حال دا چي د وصیت صحیح کېدلو لپاره د مرګ په وخت کي د عَین قیام او وجود ضروري دی. نو ځکه دلته وصیت باطل دی.

وإن لم يكن له غنم إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د وصيت په وخت کې د موصي (وصيت کونکي) سره موصیٰ به يعني غنم (پسونه) نه وي، ليکن د مرګ په وخت کې هغه ته دا حاصل سي، نو په دې صورت کې وصيت جائز دی؛ ځکه که وصيت د مال په لفظ سره وای او د مرګ وخت کې د موصي سره مال موجود وای، نو وصيت صحيح کېدی، او غنم (پسونه) د مال يو نوع او قسم دی، لهذا که د مرګ په وخت کې د مال دا قسم موجود وي، نو د هغه وصيت به هم صحيح وي؛ ځکه (د وصيت په باب کې) تر مرګ مخکې د مال موجودېدل او نه موجودېدل سره برابر دي او صرف د مرګ په وخت کې د هغه موجودېدل ضروري دي.

## که د يوه پسه وصيت وکړي او پسه نه وي نو د هغه قيمت لازميږي

وَلَوْقَالَ: لَهُ شَاةٌ مِنْ مَالِيْ او که موصي ووايي: چې د هغه [موصیٰ لهٗ] لپاره زما له مال څخه يو پسه دی وَلَيْسَ لَهُ غَنَمٌ حال دا چې د هغه سره پسونه نه وي يُعْطٰى قِيْمَةُ شَاةٍ نو موصیٰ لهٗ ته به د يوه پسه قيمت ورکول کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا أَضَافَهُ إِلَى الْمَالِ ځکه کله چې موصي د شاة [پسه] اضافت د مال وطرف ته وکړی عَلِمْنَا أَنَّ مُرَادَهُ الْوَصِيَّةُ بِمَالِيَّةِ الشَّاةِ نو موږ پوه سو چې د موصي مراد د پسه د ماليت وصيت کول دي إِذْ مَالِيَّتُهَا تُوجَدُ فِيْ مُطْلَقِ الْمَالِ ځکه د پسه ماليت په مطلق مال کې موجود وي وَلَوْ أَوْصٰى بِشَاةٍ او که موصي [فقط] د پسه وصيت وکړي وَلَمْ يُضِفْهُ إِلٰى مَالِهِ او د هغه اضافت خپل مال ته نه وکړي [يعني د پسه وصيت د خپل مال وطرف ته منسوب نه کړي] وَلَا غَنَمَ لَهُ او نه د هغه سره پسونه وي قِيْلَ: لَا يَصِحُّ نو ويل سوي ده: چې دا وصيت نه صحيح کيږي لِأَنَّ الْمُصَحِّحَ إِضَافَتُهُ إِلَى الْمَالِ ځکه د وصيت صحيح کونکی شی د مال وطرف ته د موصیٰ به [پسه] اضافت کول دي وَبِدُوْنِهَا تُعْتَبَرُ صُوْرَةُ الشَّاةِ وَمَعْنَاهَا او بغير له اضافت څخه به د پسه د صورت او معنیٰ اعتبار کول کيږي وَقِيْلَ: تَصِحُّ او ويل سوي دي: چې دا وصيت صحيح کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا ذَكَرَ الشَّاةَ وَلَيْسَ فِيْ مِلْكِهٖ شَاةٌ ځکه کله چې موصي [په خپل وصيت کې] پسه ذکر کړی دی او د هغه په ملکيت کې پسه نسته عُلِمَ أَنَّ مُرَادَهُ الْمَالِيَّةُ نو [له دې څخه] معلومه سوه چې د موصي مراد ماليت دی.

**اللغات**: ﴿شاة﴾ او غَنَم: د تېر عبارت په لغاتو کې يې وضاحت وسو. ﴿مصحّح﴾ د افعال د باب فاعل دی: صحيح ګرځونکی، سمونکی.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي که موصي داسي ووايي: چي فلانکي (مثلاً خالد) ته دي "زما له مال" څخه یو پسه ورکول سي، حال دا چي د هغه سره یو پسه هم نسته، نو د هغه دا وصیت صحیح دی او موصیٰ لهٗ (خالد) ته به د هغه له مال څخه د یوه پسه قیمت ورکول کیږي؛ ځکه دلته موصي موصیٰ بهٖ (پسه) متعیّن کړی دی او د خپل مال وطرف ته يې د هغه اضافت هم کړی دی او دغه اضافت دا ښيي چي د موصي مقصد د پسه مالیت او قیمت ورکول دي او مالیت په هر قسم مال کي وي او د پسه د مالیت اندازه په هر حال کي کېدلای سي، نو ځکه موصیٰ لهٗ ته به د یوه پسه مالیت ورکول کیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده چي که موصي یوازي د پسه وصیت وکړي او داسي ووايي "له شاةٌ" یا "أُوصِيْ لفلانٍ بشاةٍ" او خپل مال ته د پسه اضافت نه وکړي، نو په دې صورت کي د مشایخو رَحِمَهُمُ الله دوه قوله دي:

① اول قول دا دی چي دا وصیت صحیح نه دی؛ ځکه د وصیت صحیح کېدلو لپاره د مال وطرف ته د موصیٰ بهٖ (شاة) مضاف کول ضروري وه یعني دا وصیت به هغه وخت وصیت صحیح کېدای کله چي د مال وطرف ته د شاة اضافت او نسبت سوي وای، کنې کله چي د مال وطرف ته د شاة اضافت نه وسي نو هلته عین پسه مقصود وي او د هغه مالیت مقصود نه وي، د عینِ پسه د ښودلو لپاره مصنف رَحِمَهُ الله "صورة الشاة ومعناها" ویلي دي، لنډه دا چي دلته موصیٰ بهٖ عینِ پسه دی او هغه مفقود دی، نو ځکه دا وصیت باطل دی..

② دویم قول دا دی چي وصیت صحیح دی؛ ځکه کله چي دلته موصي په خپل وصیت کي پسه یاد کړی دی او د هغه سره پسه نسته، نو دا څرګنده سوه چي موصي د پسه د مالیت وصیت کول غواړي او مالیت په هر مال کي ترلاسه کېدلای سي، نو ځکه د مخکنۍ مسئلې په څېر دلته هم وصیت صحیح دی.

### د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْقَالَ: شَاةٌ مِنْ غَنَمِيْ او که موصي ووايي: چي زما له پسونو څخه یو پسه [د فلانکي لپاره دی] وَلَا غَنَمَ لَهُ حال دا چي د هغه سره پسونه نه وي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصیت باطل دی لِأَنَّهُ لَمَّا أَضَافَهُ إِلَى

غَنَمِ ځکه کله چې موصي د موصىٰ به [شاة] اضافت د غنم وطرف ته وکړی عَلِمْنَا أَنَّ مُرَادَهُ عَيْنُ الشَّاةِ نو موږ پوه سو چې د موصي مراد عين پسه دی حَيْثُ جَعَلَهَا جُزْءًا مِنَ الْغَنَمِ په دې حيثيت سره چې موصي شاة د غنم يو جزء ګرځولی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَضَافَهُ إِلَى الْمَالِ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي د موصىٰ به [شاة] اضافت د مال وطرف ته وکړي وَعَلَى هٰذَا يُخَرَّجُ كَثِيرٌ مِنَ الْمَسَائِلِ او پر همدې قاعده د ډېرو مسئلو تخريج کيږي.

**اللغات**: ﴿عين﴾ متعيّن. ﴿يخرج﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: تخريج کېدل.

**تشريح**: **مسئله:** دا ده که موصي داسي ووايي "له شاةٌ من غنمي" چې د فلانکي لپاره زما له پسونو څخه يو پسه دی، حال دا چې د هغه سره يو پسه هم نسته، نو دا وصيت باطل دی؛ ځکه موصي چې د غنم وطرف ته د شاة نسبت وکړی نو دا يې څرګنده کړه چې زما مراد ماليت نه دی بلکي عين پسه دی؛ ځکه هغه دلته شاة د غنم يو جزء ګرځولی دی چې "شاةٌ من غنمي" نو دا د معدوم شي وصيت سو کوم چې د وصيت او مرګ په دواړو وختونو کي معدوم دی. نو ځکه دا وصيت باطليږي.

خو که د مال وطرف ته د شاة اضافت وسي (لکه په مخکيني صورت کي)، نو هلته ماليت مقصود وي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا داسي اصل دی چې پر هغه ډېري مسئلي متفرّع کيږي، چې له هغوی څخه ځيني مسئلې په حاشيو او شروحو کي مذکوره دي.

## که څوک وصيت وکړي چې زما د مال ثلث د ام ولد مينځو او د فقراؤ او مساکينو لپاره دی؟

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ مَالِهِ لِأُمَّهَاتِ أَوْلَادِهِ فرمايي: او څوک چې د خپل اُمِ ولد مينځو لپاره د خپل مال د ثلث وصيت وکړي وَهُنَّ ثَلَاثٌ او هغوی [اُم ولد مينځې] درې وي وَلِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ او د فقيرانو او مسکينانو لپاره [هم وصيت وکړي] فَلَهُنَّ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ مِنْ خَمْسَةِ أَسْهُمٍ نو د اُم ولد مينځو لپاره له پنځو حصو څخه درې حصې دي قَالَ ﷺ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ ۞ أَنَّهُ يُقْسَمُ عَلَى سَبْعَةِ أَسْهُمٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي: چې ثلث به پر اوو حصو

۞ القول الراجح: قول الشيخين رحمهما الله، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:٢، ص:٣٧٧]

تقسیمول کیږي نَهُنَّ ثَلَاثَةٌ د أم ولد مینځو لپاره به درې حصې وي وَلِكُلِّ فَرِيقٍ سَهْمَانِ او د هر فریق لپاره به دوې حصې وي وَأَصْلُهُ أَنَّ الْوَصِيَّةَ لِأُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ جَائِزَةٌ او د دې اصل دا دی چې د أم ولد مینځو لپاره وصیت جائز دی وَالْفُقَرَاءُ وَالْمَسَاكِينُ جِنْسَانِ او فقیران او مسکینان دوه اجلا جنسونه دي وَفَسَّرْنَاهُمَا فِي الزَّكَاةِ او موږ په کتاب الزکاة کي د دې دواړو وضاحت کړی دی.

**اللغات**: ﴿أسهم﴾ جمع د سَهْمٌ ده: حصه. برخه. ﴿فسرنا﴾ د تفعیل له بابه د جمع متکلم صیغه ده: تفسیر کول. وضاحت او تشریح کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې د یو سړي (مثلاً د زید) درې أم ولد مینځې دي او هغه داسې وصیت وکړی چې زما د مال ثلث (درېیمه حصه) زما د أم ولد مینځو (امهات اولاد) لپاره او د فقراؤ او مسکینانو لپاره دی، نو په دې صورت کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز ثلث به پنځه حصې کول کیږي. چې له هغه څخه به درې حصې أمهات اولاد ته ورکول کیږي او دوې حصې به فقراؤ او مسکینانو ته ورکول کیږي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز ثلث به پر اوو (۷) حصو تقسیمول کیږي چې له هغه څخه به درې حصې امهات اولاد ته ورکول کیږي. دوې حصې به فقراؤ ته او دوې حصې به مسکینانو ته ورکول کیږي. له همدې څخه دا خبره هم څرګنده سوه چې د أمهات اولاد (أم ولد مینځو) لپاره وصیت جائز دی. حال دا چې قیاس له دې څخه انکار کوي چې د دوی لپاره دې وصیت جائز سي؛ ځکه چې وصیت تر مرګ وروسته وخت ته مضاف کیږي او په دې حالت کي په أم ولد کي عتق حلول کوي (ځکه أم ولد د مالک تر مرګ وروسته آزادیږي) نو په همدې حالت کي د هغې لپاره وصیت هم ثابتیږي. لهذا د وصیت ثابتېدلو په وخت کي هغه په یوه درجه کي مینځه پاتیږي او د مینځې لپاره وصیت باطل دی، نو ځکه قیاساً د أم ولد لپاره وصیت باطل دی. خو استحساناً د هغې لپاره وصیت په دې وجه جائز ګرځول سوی دی چې هغه تر عتق وروسته د وصیت مستحق کیږي. نه د عتق د حلول په وخت کي؛ ځکه کله چې مالک د هغې لپاره وصیت کوي نو نبکاره همدا ده چې هغه صحیح وصیت کوي. نو د مالک کلام به حتی الامکان پر صحت حمل کول کیږي او استحساناً به د هغه وصیت د أم ولد په حق کي جائز وي

دويمه خبره دا ده چې فقراء او مساکين دوه جلا جنسونه دي، په همدې وجه د دوی لپاره حصې هم جلا، جلا تاکل سوي دي، لکه څرنګه چې په کتاب الزکاة، باب من يجوز دفع الصدقة إليه کې د دې وضاحت سوی دی (حيث قال هناك: الفقير من له أدنى شيء، والمسكين من لا شيء له، وهذا مروی عن أبي حنيفة، وقد قيل: على العكس...).

## د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله دلائل

لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْمَذْكُورَ لَفْظُ الْجَمْعِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې کوم [لفظ] ذکر سوی دی [يعني فقراء او مساکين] هغه لفظ د جمع دی وَأَدْنَاهُ فِي الْمِيرَاثِ اِثْنَانِ او په ميراث کې د جمع ادنیٰ [اقل فرد] دوه دي نَجِد ذٰلِكَ فِي الْقُرْآنِ همدا مورږ په قرآن کې مونږ فَكَانَ مِنْ كُلِّ فَرِيقٍ اِثْنَانِ نو ځکه له هر فريق [فقراء او مساکين] څخه به دوه وي وَأُمَّهَاتُ الْأَوْلَادِ ثَلَاثٌ او اُم ولد مينځې درې دي فَلِهٰذَا يُقْسَمُ عَلَى سَبْعَةٍ نو ځکه ثلث به پر اُوو حصو تقسيمول کيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْجَمْعَ الْمُحَلّٰى بِالْأَلِفِ وَاللَّامِ يُرَادُ بِهِ الْجِنْسُ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې هغه جمع کوم چې په الف او لام سره مزين وي [الف لام پرې داخل وي يعني "الفقراء والمساکين"] په هغه سره جنس مراديږي وَأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ الْأَدْنٰى مَعَ احْتِمَالِ الْكُلِّ او جنس د کُل د احتمال سره ادنیٰ لره شامليږي لَا سِيَّمَا عِنْدَ تَعَذُّرِ صَرْفِهِ إِلَى الْكُلِّ خصوصاً د کُل وطرف ته د جنس ګرځولو د متعذر کېدلو په وخت کې [يعني خصوصاً منه وخت جنس ادنیٰ لره شامليږي کله چې د کُل وطرف ته د جنس ګرځول (راجع کول) ناممکن وي] فَيُعْتَبَرُ مِنْ كُلِّ فَرِيقٍ وَاحِدٌ نو ځکه له هر فريق څخه به د يوه اعتبار کول کيږي فَبَلَغَ الْحِسَابُ خَمْسَةً نو حساب به پنځو ته ورسيږي وَالثَّلَاثَةُ لِلثَّلَاثِ او درې حصې به د دريو اُمهات اولاد لپاره وي.

**اللغات**: ﴿أدنىٰ﴾ کمتر، کمې درجې والا. ﴿مُحلّى﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: ښايسته کړی سوی. مزيّن. ﴿لاسيّما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه. ﴿صرف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوي دي: ګرځول، راجع کول، صرفول، خرچ کول.

**تشریح**: په دې عبارت کې د پورتنۍ مسئلې په هکله د امامانو دليلونه بيان سوي دي: د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې موصي (زيد) دلته فقراء او مساکين د جمع په لفظ سره ذکر کړي دي او د ميراث په باب کې د جمع ادنیٰ مقدار (اقل فرد) دوه وي، لکه څرنګه چې په دې آيت ﴿فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ﴾ کې هم له "إِخْوَةٌ" څخه کم از کم دوه کسان مراد دي. نو ځکه د فقراء او مساکين له هر فريق څخه به دوه فرده وي چې د هغوی مجموعه څلور کيږي او درې اُمهاتِ اولاد (ام ولد مينځې) دي. نو ټوله اووه افراد سول چې د هغو لپاره به اووه حصې وي. په همدې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله ثلث پر اُوو حصو تقسيم کړی دی.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې موصي دلته "الفقراء والمساكين" دواړه په "الف لام" سره جمع ذکر کړي دي او په داسې جمع سره جنس مرادیږي، لهذا له فقراؤ او مساکينو څخه به د دوی جنس مراديږي او دا جنس به د کُل دا احتمال سره ادنیٰ لره شامليږي. لېکن څرنګه چې دلته د کُل وطرف ته دا جنس او جمع ګرځول يعني ټولو فقراؤ او مسکينانو ته له وصيت څخه حصه ورکول نا ممکن دي، نو ځکه له فقراء او مساکينو څخه به ادنیٰ يعني واحد مرادول کيږي او د دواړو لپاره به دوې حصې وي او اُمهاتِ اولاد درې دي، نو ځکه ټوله ثلث به پنځه حصې کول کيږي او د پنځو په حساب سره به تقسيمول کيږي.

## که څوک ووايي زما د مال يو ثلث د فلانکي او د مساکينو لپاره دی؟ (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوْ أَوْصٰى بِثُلُثِهِ لِفُلَانٍ وَلِلْمَسَاكِيْنِ فرمايي: او که موصي د فلانکي لپاره او د مسکينانو لپاره د خپل مال د ثلث [دريمي حصې] وصيت وکړي فَنِصْفُهُ لِفُلَانٍ وَنِصْفُهُ لِلْمَسَاكِيْنِ عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه [يو] نصف د فلانکي لپاره دی او د هغه [بل] نصف د مسکينانو لپاره دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ثُلُثُهُ لِفُلَانٍ وَثُلُثَاهُ لِلْمَسَاكِيْنِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه يو ثلث د فلانکي لپاره دی او د هغه دوه ثلثه د مسکينانو لپاره دي وَلَوْ أَوْصٰى لِلْمَسَاكِيْنِ او که موصي د مسکينانو لپاره وصيت وکړي لَهُ صَرْفُهُ إِلٰى مِسْكِيْنٍ وَاحِدٍ عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز موصي ته فقط پر يوه مسکين د هغه د صرف کولو حق [هم] سته وَعِنْدَهُ لَا يَصْرِفُ إِلَّا إِلٰى مِسْكِيْنَيْنِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز موصي هغه نه سي صرف کولای مګر پر دوو مسکينانو بِنَاءً عَلٰى

مَا بَيَّنَّاهُ پر هغه قاعدې په بناء کولو سره کوم چې موږ [لږ څه مخکې] بیان کړه.

**اللغات**: ﴿نصف﴾ نیمه حصه، نیمایي، ﴿صرف﴾ د ضرب د باب مصدر دی، مخکې موږ ذکر کړه چې د دې باب څو معناوي دي: ګرځول، راجع کول، صرفول، خرچ کول.

**تشريح**: دا مسئله د شیخینو او د امام محمد رَحِمَهُمُ الله پر مخکیني اختلاف مبني ده، حاصل یې دا دی چې که څوک ووایي چې زما د مال ثلث د فلانکي (مثلاً د خالد) لپاره دی او د مساکینو لپاره دی. نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا ثلث به دوې حصې کول کیږي، یوه به فلانکي (خالد) ته ورکول کیږي او بله حصه به مسکینانو ته ورکول کیږي: ځکه مخکې ذکر سوه چې د دوی په نېز د المساکین الف لام د جنس لپاره دی چې د هغه ادنیٰ واحد دی، نو ځکه د ثلث یوه حصه (نصف) به د مساکینو لپاره وي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ثلث به درې حصې کول کیږي چې یوه حصه به فلانکي (خالد) ته ورکول کیږي او دوې حصې مسکینانو ته؛ د هغه دلیل دا دی چې د میراث په جمع کې د جمع ادنیٰ (اقل فرد) دوه دي، نو ځکه د مساکینو لپاره به دوې حصې وي او یوه حصۀ به د فلانکي (خالد) لپاره وي.

ولو أوصى إلخ: د دې حاصل دا دی چې که موصی یوازې د مساکینو لپاره د ثلث مال وصیت وکړي، نو څرنګه چې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د المساکین ادنیٰ مقدار واحد دی. نو ځکه د دوی په نېز موصي ټوله ثلث یوه مسکین ته ورکولای سي، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله د المساکین ادنیٰ مقدار دوه دي (لکه څرنګه چې مخکې د دې وضاحت وسو)، نو ځکه موصي لره ضروري ده چې کم از کم دوو مسکینانو ته به دا مال ورکوي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ فرمايي: او څوک چې د يو سړي لپاره د سلو درهمو وصيت وکړي وَلِآخَرَ بِمِائَةٍ او د بل سړي لپاره [هم] د سلو درهمو وصيت وکړي ثُمَّ قَالَ لِآخَرَ: قَدْ أَشْرَكْتُكَ مَعَهُمَا بيا موصي بل [دريم] سړي ته ووايي: چې ما ته د دوی دواړو سره شريک کړې! فَلَهُ ثُلُثُ

كُلِّ مِائَةٍ نو د هغه درېیم کس لپاره د هرو سلو درهمو ثلث دی لِأَنَّ الشَّرِكَةَ لِلْمُسَاوَاةِ لُغَةً ځکه شرکت په لغوي اعتبار سره د مساوات لپاره دی وَقَدْ أَمْكَنَ إِثْبَاتُهُ بَيْنَ الْكُلِّ بِمَا قُلْنَاهُ او د دوی ټولو [دريو] تر مینځ مساوات ثابتول په هغه طریقه سره ممکن دی کوم چي موږ ذکر کړې ده لِاتِّحَادِ الْمَالِ ځکه مال متحد [یو] دی لِأَنَّهُ يُصِيبُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ ثُلُثَا مِائَةٍ ځکه له دوی ځخه هر یوه ته د سلو درهمو دوه ثلث رسیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى لِرَجُلٍ بِأَرْبَعِمِائَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چي موصي د یوه سړي لپاره د څلور سوو درهمو وصیت وکړي وَلِآخَرَ بِمِائَتَيْنِ او د بل سړي لپاره د دوو سوو درهمو وصیت وکړي ثُمَّ كَانَ الْإِشْرَاكُ بیا شریک کول واقع سي [یعني موصي د هغوی دواړو سره درېیم کس شریک کړي] لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَحْقِيقُ الْمُسَاوَاةِ بَيْنَ الْكُلِّ لِتَفَاوُتِ الْمَالَيْنِ ځکه [په دې صورت کي] د دواړو مالونو د توپیر په وجه د ټولو [دريو کسانو] تر مینځ مساوات ثابتول نا ممکن دي فَحَمَلْنَاهُ عَلَى مُسَاوَاتِهِ كُلَّ وَاحِدٍ بِتَنْصِيفِ نَصِيبِهِ نو ځکه موږ هغه د درېیم کس پر مساوات حمل کړی د هر یوه د حصې په نیمایي کولو سره [یعني د نورو دوو کسانو د حصو په نیمولو سره موږ هغه د درېیم کس پر مساوات محمول کړی] عَمَلًا بِاللَّفْظِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ په عمل کولو سره په لفظ [د إشراك] باندي د امکان په اندازه [یعني چي حتی الامکان په لفظ د "أشركتك" باندي عمل وسي].

**اللغات**: ﴿أشركت﴾ د افعال له بابه د واحد متکلم صیغه ده: شریک کول (شریکول). ﴿مساواة﴾ برابري. یو د بل سره برابرېدل. ﴿تفاوت﴾ فرق او توپیر. یو له بل ځخه جلا کېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که زید مثلاً د خالد لپاره د سلو درهمو وصیت وکړي، بیا د حامد لپاره هم د سلو درهمو وصیت وکړي، تر دې وروسته شاکر ته ووایي چي ما د خالد او حامد سره په وصیت کي ته هم شریک کړې!، نو په دې صورت کي دا درې سره کسان په دوه سوه درهمو کي شریک کیږي او هر یوه ته به د هرو سلو درهمو یو ثلث یا په بله وینا دوه ثلثه ورکول کیږي چي په دې توګه د هر یوه حصه تقریباً ۶۶ درهمه کیږي او د شریک (شاکر) حصه به له دې ځخه نه کمول کیږي بلکي د نورو دواړو سره به برابرول کیږي: ځکه د شرکت لغوي معنیٰ ده "مساوات" او مال هم متحد دی. یعني د دواړو موصیٰ لهٗ لپاره د سلو. سلو درهمو وصیت سوی دی. نو ځکه په دې مقدار کي به درې سره کسان شریکول کیږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي زيد مثلاً د خالد لپاره د څلور سوه درهمو وصت وكړى او د حامد لپاره يې د دوه سوه درهمو وصيت وكړى. بيا يې شاكر ته وويل چي ما د دوى دواړو سره ته هم په وصيت كي شريک كړې. نو په دې صورت كي د دوى درېو تر مينځ برابري نه سي كېدلاى، ځكه د خالد او حامد لپاره چي موصي د كوم مقدار وصيت كړى دى، هغه له يو بل څخه متفاوت دي، نو ځكه په دې صورت كي به د شريک (شاكر) پر مساوات عمل كيږي او هغه ته به د دواړو موصىٰ لهٗ (خالد او حامد) له حصو څخه نصف، نصف وركول كيږي، نو شريک (شاكر) به د موصىٰ لهٗ بالأربع (خالد) څخه دوه سوه درهمه اخلي د دې لپاره چي د هغه سره شركت او مساوات راسي او د موصىٰ لهٗ بمائتين (حامد) څخه به سل درهمه اخلي د دې لپاره چي د هغه سره مساوات او شركت ثابت سي او ... لفظ د "أشركتك" باندي حتى الامكان عمل وسي.

**كه څوک خپلو وارثانو ته ووايي چي د فلانكي پر ما قرض (باندي) دى**
**نو تاسي د هغه تصديق وكړئ! (د مجهول اقرار حكم او تفصيل)**

قَالَ: وَمَنْ قَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ دَيْنٌ فرمايي: او څوک چي ووايي: د فلانكي په ما قرض باندي دى فَصَدِّقُوْهُ نو تاسي د هغه تصديق وكړئ! مَعْنَاهُ قَالَ ذٰلِكَ لِوَرَثَتِهِ د دې معنىٰ دا ده چي هغه [موصي] دا خپلو وارثانو ته ووايي [چي تاسي د هغه تصديق وكړئ!] فَإِنَّهُ يُصَدَّقُ إِلَى الثُّلُثِ نو تر ثلث پوري به د هغه [فلانكي] تصديق كيږي وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دى وَفِي الْقِيَاسِ لَا يُصَدَّقُ او په قياس كي به د هغه تصديق نه كيږي [يعني د قياس تقاضا دا ده چي د هغه فلانكي خبره به نه منل كيږي] لِأَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْمَجْهُوْلِ وَإِنْ كَانَ صَحِيْحًا ځكه د مجهول اقرار كه څه هم صحيح دى لٰكِنَّهُ لَا يُحْكَمُ بِهِ إِلَّا بِالْبَيَانِ لېكن له بيان [وضاحت كولو] څخه بغير پر مجهول اقرار حكم نه لګول كيږي وَقَوْلُهُ "فَصَدِّقُوْهُ" صَدَرَ مُخَالِفًا لِلشَّرْعِ او د هغه دا قول چي "تاسي د هغه تصديق وكړئ!" د شريعت مخالف صادر سوى دى لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ لَا يُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ ځكه چي له حجت څخه بغير د مدعي تصديق نه كيږي فَتَعَذَّرَ إِثْبَاتُهُ إِقْرَارًا مُطْلَقًا لهذا د مطلق اقرار په توګه د هغه [مجهول اقرار] ثابتول نا ممكن دي فَلَا يُعْتَبَرُ نو ځكه هغه به معتبر نه وي وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّا نَعْلَمُ أَنَّ مِنْ قَصْدِهِ تَقْدِيْمَهُ عَلَى الْوَرَثَةِ د استحسان دليل دا دى چي مونږ دا پېژنو چي د هغه [موصي] اراده پر وارثانو د

فلانکي[فلان] مخکې کول دي وَقَدْ أَمْكَنَ تَنْفِيْذُ قَصْدِهٖ بِطَرِيْقِ الْوَصِيَّةِ او د هغه دا اراده نافذول د وصیت په طریقه سره ممکن دي وَقَدْ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ مَنْ يَعْلَمُ بِأَصْلِ الْحَقِّ عَلَيْهِ دُوْنَ مِقْدَارِهٖ او داسې مجهول اقرار ته هغه کس محتاجه کیږي کوم چې پر خپل ځان په اصل حق خبر وي، نه د هغه په مقدار [یعني په دې خو خبر وي چې په ما د فلانکي حق (قرض) باندې دی خو په مقدار یې خبر نه وي نو داسې کس مذکوره اقرار ته مجبوره وي] سَعْيًا مِنْهُ فِيْ تَفْرِيْغِ ذِمَّتِهٖ د خپلې ذمې [غاړې] په فارغولو کې له خپل طرفه په کوشش کولو سره [یعني هغه ځکه دې اقرار ته مجبوره وي چې هغه په دې سره د خپلې غاړې خلاصولو کوشش کوي] فَيَجْعَلُهَا وَصِيَّةً جُعِلَ التَّقْدِيْرُ فِيْهَا إِلَى الْمُوْصٰى لَهٗ نو ځکه هغه [موصي] دا داسې وصیت ګرځوي چې په هغه کې [د قرض] مقدار ټاکل موصیٰ لهٗ لره ګرځول سوي [سپارل سوي] وي [چې د قرض مقدار دې موصیٰ لهٗ (فلانکی) وټاکي، ځکه چې موصي د قرض په مقدار خبر نه وي] كَأَنَّهٗ قَالَ: إِذَا جَاءَكُمْ فُلَانٌ وَادَّعٰى شَيْئًا نو ګواکې موصي داسې وویل: چې کله تاسو ته فلانکی راسی او د څه شي دعویٰ وکړي فَأَعْطُوْهُ مِنْ مَالِيْ مَا شَاءَ نو زما له مال څخه هغه ته دومره ورکړئ! څومره چې هغه وغواړي وَهٰذِهٖ مُعْتَبَرَةٌ مِنَ الثُّلُثِ خو دغه وصیت له ثلث [دریمې حصې] څخه معتبر دی فَلِهٰذَا يُصَدَّقُ عَلَى الثُّلُثِ دُوْنَ الزِّيَادَةِ په همدې وجه د فلانکي تصدیق به صرف پر ثلث کیږي، نه پر زیاتوب [یعني نه له ثلث څخه په زائد مقدار کې].

**اللغات**: ﴿دين﴾ قرض، پور. ﴿صدّقوه﴾ د تفعيل له بابه د جمع مذکر امر حاضر صيغه ده: تصديق کول. څوک په خپل قول کې رښتونی ګڼل. ﴿حجّة﴾ دليل، ثبوت. ﴿قصد﴾ د ضرب د باب مصدر دی. له دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: اراده کول، توجه کول. ﴿تقديم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مخکې کول. ﴿تنفيذ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نافذول او جاري کول. پوره کول. ﴿سعي﴾ د فتح له بابه مصدر دی: کوشش او هڅه کول. ﴿تفريغ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فارغول. خالي کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که څوک خپلو وارثانو ته داسې ووايي چې د فلانکي (مثلاً خالد) په ما قرض باندې دی، لهذا کله چې هغه راسي او د قرض دعویٰ او مطالبه وکړي، نو د کوم مقدار چې هغه مطالبه وکړي، تاسې د هغه تصديق وکړئ! او هغومره مال ورکړئ!. اوس که هغه راسي او له

وارثانو څخه د قرض مطالبه وکړي. نو قیاس دا دی چي د هغه تصدیق به نه کیږي. لیکن استحسان دا دی چي تر ثلث المال پوري به د هغه تصدیق کیږي.

د قیاس دلیل دا دی چي دلته د قرض هیڅ مقدار نه دی بیان کړی سوی. نو هغه مجهول دی او د مجهول اقرار که څه هم صحیح دی. لیکن له وضاحت کولو څخه بغیر پر هغه هیڅ حکم نه لګول کیږي او په مذکوره مسئله کي موصي د مجهول مقدار له وضاحت کولو څخه بغیر مړ سوی دی. نو دا اقرار مجهول پاته سو. نو ځکه پر هغه به هیڅ حکم نه مرتب کیږي.

وقوله فصدقوه إلخ: یعني موصي چي کوم دا خبره کړې ده چي تاسي د هغه تصدیق وکړئ!. دا هم د مذکوره اقرار لپاره وضاحت او بیان نه سي کېدلای: ځکه د هغه صدور د شریعت خلاف دی: ځکه د شریعت قاعده دا ده چي کله مدعي دعویٰ وکړي نو له حجت او دلیل څخه بغیر به د هغه تصدیق نه کیږي. حال دا چي دلته موصي وایي چي بغیر له حجت څخه تاسي د هغه تصدیق وکړئ!. نو دا خلاف شرع دي. لهذا دا اقرار مطلق اقرار نه سو چي پر هغه د اقرار احکام جاري کړل سي. نو ځکه د قیاس تقاضا دا ده چي دا اقرار غیر معتبر دی او د فلانکي (خالد) تصدیق به بالکل نه کیږي. خو موږ قیاس پرېښووی او په استحسان مو عمل وکړی.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان د دلیل حاصل دا دی چي په مذکوره مسئله کي د موصي مقصد صرف دا دی چي موصي هغه فلانکی (خالد) تر وارثانو مخکي کول غواړي او موصي ته د دې پوره حق سته: ځکه هغه د خپل مال او جایداد مالک دی. لیکن څرنګه چي هغه د فلانکي د حق په مقدار نا خبره دی (ځکه کله نا کله همداسي پېښه سي چي یو څوک د حق او قرض په مقدار نا خبره وي چي په ما څو قرض باندي دی)، نو ځکه دې خبري ته ضرورت سو چي هغه داسي قسم وصیت وکړي چي په هغه سره د ده له غاړي څخه دا مجهول حق اداء سي او غاړه یې خلاصه سي، نو موصي دا پورتني قسم وصیت ته مجبوره دی چي فلانکی چي څومره مقدار ونښیي، تاسي د هغه تصدیق وکړئ!. نو ځکه موږ د ضرورت او مجبوری پر بناء استحساناً دا وصیت معتبر وګرځوی. او د موصي د قول حاصل دا سو چي کله تاسو ته فلانکی راسي او پر ما د خپل مال دعویٰ وکړي نو هغه چي څومره مال وغواړي. هغه زما له مال څخه ورکړئ!. نو دا داسي وصیت دی چي په هغه کي د موصیٰ به (حق) د مقدار بیانولو اختیار خپله موصیٰ لهٗ لره دی، او د هغه سره دا شرط هم لګول سوی دی چي د موصیٰ لهٗ قول صرف تر ثلث المال پوري معتبر دی او پر ثلث به زیاتوب نه کوي، دا ځکه شرط دي چي تر ثلث زائد مقدار د وارثانو دی او په هغه کي د بل چا هیڅ حق نسته.

## که موصي د مجهول اقرار سره نور وصیتونه هم وکړي نو د وارثانو او نورو وصیتو والا (اصحاب الوصایا) تر مینځ به څنګه تقسیم کیږي؟

قَالَ : وَإِنْ أَوْطَى بِوَصَايَا غَيْرِ ذٰلِكَ فرمايي : او که موصي له هغه شخه بغیر نور وصیتونه وکړي يُعْزَلُ الثُّلُثُ لِأَصْحَابِ الْوَصَايَا نو د وصیتو والا وو لپاره به ثلث جلا کول کیږي وَالثُّلُثَانِ لِلْوَرَثَةِ او د وارثانو لپاره دوه ثلثه لِأَنَّ مِيرَاثَهُمْ مَعْلُومٌ ځکه چې د وارثانو میراث معلوم دی وَكَذَا الْوَصَايَا مَعْلُومَةٌ همدارنګه وصیتونه هم معلوم دي وَهٰذَا مَجْهُولٌ او دا مجهول حق دی فَلَا يُزَاحِمُ الْمَعْلُومَ نو هغه به د معلوم حق نه مزاحم کیږي [ځکه مجهول د معلوم نه سي مزاحم کېدلای] فَيُقَدَّمُ عَزْلُ الْمَعْلُومِ نو ځکه د معلوم حق جلا کول به مخکي کول کیږي.

**اللغات** : ﴿وصایا﴾ جمع وَصِيَّةٌ: وصیتونه. ﴿یعزل﴾ د ضرب له بابه مضارع مجهوله ده. د دې باب له معناوو شخه یوه معنیٰ ده: جلا کول (بېلول)، علیحده کول. ﴿لا یزاحم﴾ د مفاعلې له بابه د نفي صیغه ده: مقابل کېدل.

**تشریح** : د عبارت حاصل دا دی چې که موصي د فلانکي (خالد) لپاره مجهول اقرار وکړي او له هغه شخه بغیر موصي د نورو خلګو لپاره وصیتونه هم کړي وي، نو په دې صورت کې به د هغه له میراث شخه تر ټولو مخکي اصحاب الوصایا یعني له فلانکي (خالد) شخه بغیر د هغه نورو خلګو (موصیٰ لهم) لپاره ثلث جلا کول کیږي او پاته دوه ثلثه به د وارثانو لپاره جلا کول کیږي. ځکه د وارثانو حق هم معلوم دی او د موصیٰ لهم حق هم معلوم دی. حال دا چې د فلانکي (خالد) حق مجهول دی او مجهول حق د معلوم حق مزاحم او مقابل نه سي کېدلای. نو ځکه اول به دا کار کیږي چې د اصحاب الوصایا لپاره به ثلث جلا کول کیږي او د وارثانو لپاره دوه ثلثه جلا کول کیږي چې دا معلوم حق خپلو مستحقینو ته ورسیږي.

## د اصحابُ الوصایا د ثلث جلا کولو فایده

وَفِي الْإِفْرَازِ فَائِدَةٌ أُخْرَىٰ او په جلا کولو کي بله فایده [هم] سته وَهُوَ أَنَّ أَحَدَ الْفَرِيقَيْنِ قَدْ يَكُونُ أَعْلَمَ بِمِقْدَارِ هٰذَا الْحَقِّ وَأَبْصَرَ بِهِ او هغه دا چې یو فریق [یعني وارثان یا اصحاب الوصایا] ځیني وخت د دې حق [قرض] په مقدار زیات خبر او زیات پوهېدونکی وي وَالْآخَرُ أَلَدَّ خِصَامًا او بل فریق ډېر

خصومت [او اختلاف] کونکی وي وَعَسَاهُمْ يَخْتَلِفُونَ فِي الْفَضْلِ إِذَا ادَّعَاهُ الْخَصْمُ او کېدای سي چې هغوی [دواړه فریقه] د زائد مقدار په هکله اختلاف وکړي کله چې مدعي [قرض والا] د زائد مقدار دعویٰ وکړي وَبَعْدَ الْإِفْرَازِ يَصِحُّ إِقْرَارُ كُلِّ وَاحِدٍ فِيمَا فِي يَدِهِ مِنْ غَيْرِ مُنَازَعَةٍ او له جلا کولو څخه وروسته د هر فریق اقرار بغیر له نزاع [او جنګ] څخه د هغه مقدار په حق کي صحیح کیږي کوم چې د هغه په قبضه کي دی.

**اللغات**: ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا کول، د یو چا له مال څخه د بل چا مال جلا کول (علیحده کول)، ﴿أبصر﴾ د کرُم او سمع له بابه د اسمِ تفضیل صیغه ده: زیات لیدونکی، زیات پوهېدونکی، ﴿خصام﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: خصومت او جګړه کول. ﴿فضل﴾ د کرُم د باب مصدر دی: زیاتوب، اضافه، زائد مقدار.

**تشریح**: یعني په پورتنۍ مسئله کي خو یو د معلوم حق او مجهول حق تقاضا هم دا وه چې معلوم دي جلا کړی سي ځکه چې مجهول د معلوم مزاحم کېدلای نه سي، او د دې سره، سره په دغه جلا کولو بله فایده هم سته او هغه دا چې کېدلای سي له وارثانو او اصحاب الوصایا څخه یو فریق د فلانکي (خالد) په حق زیات خبر وي او دویم فریق هسې اختلاف او جنجال کوي او قصداً د هغه حق کموي مثلاً کله چې فلانکی (خالد) راسي او دعویٰ وکړي چې زما حق (قرض) نهه زره روپۍ دي. نو یو فریق به وایي چې هو! رشتیا وایي همدومره دی. او دویم فریق به وایي چې دروواغ وایي د هغه حق خو ګردسره څلور زره روپۍ دی. یا په لنډه وینا دا چې ځیني وخت داسي کیږي چې کله مدعي (خالد) د زیات قرض دعویٰ وکړي نو یو فریق د هغه تصدیق وکړي او بل فریق د هغه تکذیب وکړي او په دې هکله جنګ وجنجال پېښ سي، نو له دې څخه د بچ کېدلو لپاره د هر فریق حصه جلا کول مفید دي او په جلا کولو کي دا فایده ده چې بیا دا صورت نه سي پېښېدلای.

ځکه کله چې د هر فریق (وارثان او اصحاب الوصایا) حصه ور جلا کړل سي نو هر یو به په خپل تصدیق او اقرار کي مأخوذ وي او هیڅ د جنګ و جنجال صورت به نه پېښیږي یعني کله چې حصه جلا کړل سي نو بیا که هر فریق اقرار وکړي یا انکار وکړي، دا به د هغه په خپل مال کي وي او بل فریق به د هغه سره جنګ وجنجال نه کوي.

تر دې وروسته به کومه طریقه اختیارول کیږي، هغه مصنف رَحِمَهُ الله په را روان عبارت کي پېش کړې ده.

## هر فریق (اصحاب الوصایا او وارثان) د خپل اقرار مطابق مأخوذ کیږي

وَإِذَا عُزِلَ او کله چي [د اصحاب الوصايا لپاره ثلث او د وارثانو لپاره دوه ثلثه] جلا کړل سي يُقَالُ لِأَصْحَابِ الْوَصَايَا نو وصيتونو والا ته به ويل کيږي صَدِّقُوهُ فِيمَا شِئْتُمْ چي تاسي د هغه [مدعي] تصديق وکړئ! په کوم مقدار کي چي تاسي وغواړئ وَيُقَالُ لِلْوَرَثَةِ او وارثانو ته به ويل کيږي صَدِّقُوهُ فِيمَا شِئْتُمْ چي تاسي د هغه تصديق وکړئ! په کوم مقدار کي چي تاسي وغواړئ لِأَنَّ هٰذَا دَيْنٌ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ وَصِيَّةٌ فِي حَقِّ التَّنْفِيذِ ځکه چي دا د مستحق په حق کي قرض دی [او] د نافذولو په حق کي وصيت دی فَإِذَا أَقَرَّ كُلُّ فَرِيقٍ بِشَيْءٍ نو کله چي هر فريق د يو مقدار اقرار وکړی ظَهَرَ أَنَّ فِي التَّرِكَةِ دَيْنًا شَائِعًا فِي النَّصِيبَيْنِ نو دا خبره ښکاره سوه چي په ميراث کي شايع قرض دی په دواړو حصو کي [يعني داسي قرض کوم چي په دواړو حصو کي شايع او خپور دی] فَيُؤْخَذُ أَصْحَابُ الثُّلُثِ بِثُلُثِ مَا أَقَرُّوا نو ځکه اصحابُ الثلث [اصحاب الوصايا] به د خپل اقرار په ثلث سره مأخوذ کيږي وَالْوَرَثَةُ بِثُلُثَيْ مَا أَقَرُّوا او وارثان به د خپل اقرار په دوو ثلثو سره مأخوذ کيږي تَنْفِيذًا لِإِقْرَارِ كُلِّ فَرِيقٍ فِي قَدْرِ حَقِّهِ د هر فريق د اقرار په نافذولو سره د هغه د حق په مقدار کي [يعني چي د هر فريق د خپل حق په مقدار کي اقرار نافذ کړی سي] وَعَلَى كُلِّ فَرِيقٍ مِنْهُمَا الْيَمِينُ عَلَى الْعِلْمِ او له دې دواړو څخه پر هر فريق پر علم [خبر] قسم اخيستل لازم دي إِنِ ادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ زِيَادَةً عَلَى ذٰلِكَ که چيري مقرلهٔ له هغه اقرار څخه د زيات مقدار دعویٰ وکړي لِأَنَّهُ يُحَلَّفُ عَلَى مَا جَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ ځکه [دلته] له هر فريق څخه پر هغه [فعل] قسم اخيستل کيږي.کوم چي د هغه او بل فريق په مينځ کي جاري سوی دی.

**اللغات**: ﴿عزل﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده. د دې باب له معناوو څخه يوه معنی ده: جلا کول (بېلول). عليحده کول. ﴿تنفيذ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نافول او جاري کول. پوره ول. ﴿شائع﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی: منتشر. خپور.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله د هر فريق حصه جلا کړل سي (يعني اصحاب الوصايا ته يو ثلث او وارثانو ته دوه ثلثه ورکول سي)، نو هر فريق ته به حکم کيږي چي په کوم مقدار کي ستاسي

خوښه وي ! . د مدعي (خالد) تصديق او اقرار وکړئ ! . او تر تصديق به وروسته هر فريق د خپل تصديق او اقرار مطابق مأخوذ کيږي او يو فريق د بل فريق د تصديق په وجه نه مأخوذ کيږي. لهذا له اصحاب الوصايا څخه به د دوی د اقرار ثلث اخيستل کيږي او له وارثانو څخه به د دوی د اقرار دوه ثلثه اخيستل کيږي. مثلاً که اصحابُ الوصايا او وارثانو دا اقرار وکړي چې د خالد حق نهه زره روپۍ دی، نو درې زره به اصحابُ الوصايا ورکوي او شپږ زره به وارثان کوي. او که د هر يوه اقرار يو له بل څخه جلا وي (مثلاً اصحابُ الوصايا د نهه زرو اقرار وکړي او وارثان د شپږو زرو) نو هر فريق به د خپل اقرار مطابق مأخوذ کيږي (يعني په مذکوره مثال کې به اصحاب الوصايه نهه زره ورکوي او وارثان څلور زره؛ ځکه د شپږو زرو دوه ثلثه څلور زره کيږي).

**سوال**: په مخکنۍ مسئله کې (د استحسان په دليل کې) تاسو وويل چې (د موصي) دغه اقرار وصيت دی او تاسو هغه وصيت ګرځولی دی او د وصيت په نامه مو نافذ کړی دی. نو د هغه د وصيت کېدلو تقاضا خو دا ده چې صرف اصحابُ الوصايا ته د تصديق او اقرار کولو حکم وسي او صرف له هغو څخه د مدعي (خالد) حق واخيستل سي، لهذا دلته وارثان مأخوذ کول او په هغو هم تصديق کول او دوه ثلثه ځنې اخيستل به څنګه صحيح وي ! ، حال دا چې دا اقرار قرض نه دی بلکې وصيت دی؟.

**جواب**: موږ دا ځکه وصيت ګرځولی دی چې د هغه د نافذولو لاره هواره سي، کنې په حقيقت کې دا قرض دی؛ ځکه مدعي (خالد) دې ته وصيت نه دی ويلی بلکې هغه دې ته خپل قرض ويلی دی. لېکن څرنګه چې دا د وصيت سره مشابه دی، نو ځکه موږ وويل چې دا به فقط په ثلث کې نافذول کيږي، نه تر ثلث په زائد مقدار کې؛ او څرنګه چې دا د قرض سره هم مشابه دی. نو ځکه موږ هغه په ټوله ميراث کې شائع ګرځوو او محض هغه وصيت نه ګرځوو چې صرف اصحاب الوصايا مأخوذ کړل سي. نو ځکه موږ وويل چې وارثانو ته به هم د تصديق حکم کيږي او تر کوم مقداره پوري چې دوی تصديق وکړي، د هغه دوه ثلثه به له دوی څخه اخيستل کيږي.

د دې اشکال جواب مصنف رَحِمَهُ الله په خپل دې عبارت سره ورکړی دی "لأنّ هٰذا دينٌ في حق المستحق...إلخ" .

<u>وعلى كل فريق منهم إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چې که د مدعي دعویٰ د دواړو فريقو د اقرار له مقدار څخه زياته وي مثلاً د مدعي (خالد) دعویٰ دا وي چې زما حق نولس زره (۱۹۰۰۰) روپۍ دی او دواړه فريقه د نهه زرو (۹۰۰۰) اقرار کوي، نو په دې صورت کې به له دواړو فريقو (اصحاب الوصايا او وارثانو) څخه قسم اخيستل کيږي او دوی به داسې قسم اخلي چې موږ د کوم مقدار اقرار کړی دی په الله قسم ! له هغه څخه د زيات مقدار علم او خبر موږ ته نسته. يعني د دوی قسم به پر علم او خبر وي. پر

يقين يعني قطعي قسم به نه وي چي په الله قسم ! د مدعي حق بالكل تر دې زيات نه دی: ځكه أصول دا دی چي پر خپل فعل چي كوم قسم اخيستل كيږي هغه قطعي او يقيني وي او د بل چا پر فعل چي كوم قسم اخيستل كيږي هغه على العلم وي، قطعي نه وي.

**يادونه**: له اصحاب الثلث څخه مراد اصحابُ الوصايا دي، او په "عيني" كي كاتب خطاءً د اصحابُ الثلث سره رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ليكلي دي، كېداى سي هلته كاتب پر اصحاب الثلث د خلفاء ثلاثه وو گومان كړی دی چي دومره خطاو تلی دی.

## د خپل وارث او اجنبي يا د ژوندي او مړه يا د قاتل او اجنبي لپاره د وصيت كولو حكم

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِأَجْنَبِيٍّ وَلِوَارِثِهٖ فرمايي: او څوک چي د اجنبي او خپل وارث لپاره وصيت وكړي فَلِلْأَجْنَبِيِّ نِصْفُ الْوَصِيَّةِ نو د اجنبي لپاره د وصيت [موصىٰ به] نيمه حصه ده وَتَبْطُلُ وَصِيَّةُ الْوَارِثِ او د وارث وصيت باطليږي لِأَنَّهٗ أَوْصٰى بِمَا يَمْلِكُ الْإِيْصَاءَ بِهٖ وَبِمَا لَا يَمْلِكُ ځكه چي موصي د هغه شي وصيت كړی دی چي موصي د هغه د وصيت كولو ملكيت [اختيار] لري او د هغه شي [هم] چي د هغه د وصيت كولو ملكيت نه لري فَصَحَّ فِي الْأَوَّلِ وَبَطَلَ فِي الثَّانِيْ نو ځكه د هغه وصيت په اول كي صحيح دی او په دويم كي باطل دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصٰى لِحَيٍّ وَمَيِّتٍ په خلاف د هغه صورت كله چي موصي د ژوندي او مړي لپاره وصيت وكړي لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْوَصِيَّةِ ځكه چي مړی د وصيت اهل نه دی فَلَا يَصْلُحُ مُزَاحِمًا لهذا مړی [د ژوندي لپاره] د مزاحم جوړېدلو صلاحيت نه لري [يعني هغه د ژوندي مقابل كېدلای نه سي] فَيَكُوْنُ الْكُلُّ لِلْحَيِّ نو ځكه ټوله وصيت به د ژوندي لپاره سي وَالْوَارِثُ مِنْ أَهْلِهَا او وارث د وصيت اهل دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ بِإِجَازَةِ الْوَرَثَةِ نو ځكه دا وصيت د وارثانو په اجازه سره صحيح كيږي فَافْتَرَقَا نو دا دواړه [يعني د اجنبي او وارث لپاره وصيت] يو له بل څخه جلا سوه وَعَلٰى هٰذَا إِذَا أَوْصٰى لِلْقَاتِلِ وَلِلْأَجْنَبِيِّ او پر همدې [حكم] دي كله چي موصي د قاتل او اجنبي لپاره وصيت وكړي.

**اللغات**: ﴿إيصاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: وصيت كول. ﴿مزاحم﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: مقابل. ﴿افترقا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو له بله جلا كېدل (فرق او توپير پكښي راتلل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د اجنبي او وارث دواړو لپاره د مال وصیت وکړي (چې مثلاً زما له مال څخه دې دومره مال فلانکي سړي ته او زما فلانکي ځوی ته ورکول سي). نو د اجنبي په حق کې وصیت جائز دی او د وارث په حق کې وصیت باطل دی؛ ځکه موصي صرف د اجنبي لپاره د وصیت کولو ملکیت (اختیار) لري او د وارث لپاره د وصیت کولو ملکیت نه لري (د نورو وارثانو د حق په وجه). نو ځکه د اجنبي په حق کې وصیت صحیح دی او د وارث په حق کې صحیح نه دی. او اجنبي ته به نصف موصیٰ بهٖ ورکول کیږي (یعني د څومره مال وصیت چې سوی دی د هغه نیمه حصه به ورکول کیږي).

د دې په خلاف که موصي د ژوندي کس او د مړه کس لپاره وصیت وکړي (چې زما له مال څخه دې فلانکي او فلانکي ته دومره مال ورکول سي حال دا چې یو فلانکی مړ دی). نو په دې صورت کې به ژوندي کس ته ټوله موصیٰ بهٖ ورکول کیږي؛ ځکه مړی بالکل د وصیت اهل نه دی. لهذا هغه د ژوندي کس مزاحم کېدلای نه سي او د مزاحمت د نشتوالي په صورت کې موصیٰ لهٗ ته ټوله موصیٰ بهٖ حاصلیږي.

لیکن که د اجنبي او وارث لپاره د وصیت کولو په صورت کې نور وارثان د هغه وارث لپاره د وصیت اجازه ورکړي. نو د هغه په حق کې وصیت صحیح کیږي او همدا د مړي او وارث په مینځ کې وجه د فرق ده.

همدارنګه که څوک د اجنبي او قاتل لپاره وصیت وکړي. نو په دې صورت کې هم د قاتل په حق کې وصیت باطل دی او اجنبي ته به د موصیٰ بهٖ نصف ورکول کیږي.

## د خپل وارث او اجنبي لپاره د قرض یا د یو شي د اقرار کولو حکم

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ بِعَيْنٍ أَوْ دَيْنٍ لِوَارِثِهِ وَلِلْأَجْنَبِيِّ او دا [د خپل وارث او اجنبي لپاره وصیت کول] د هغه صورت په خلاف دي کله چې موصي د خپل وارث او اجنبي لپاره د یو عین شي یا قرض اقرار وکړي حَيْثُ لَا يَصِحُّ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ أَيْضًا نو دا اقرار د اجنبي په حق کې هم نه صحیح کیږي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ إِنْشَاءُ تَصَرُّفٍ ځکه چې وصیت د تصرف انشاء ده وَالشَّرِكَةُ تُثْبِتُ حُكْمًا لَهُ او شرکت د انشاء لپاره د حکم په توګه ثابتیږي فَتَصِحُّ فِي حَقِّ مَنْ يَسْتَحِقُّهُ مِنْهُمَا نو ځکه وصیت به صحیح کیږي له دوی دواړو څخه د هغه کس په حق کې کوم چې د وصیت مستحق دی [یعني اجنبي] وَأَمَّا الْإِقْرَارُ فَإِخْبَارٌ عَنْ كَائِنٍ او پاته سو اقرار نو هغه د تېر سوي امر [مخکې واقع سوي شي] په هکله خبر ورکول دي وَقَدْ أَخْبَرَ بِوَصْفِ الشَّرِكَةِ فِي الْمَاضِيْ حال دا چې مُقِر [اقرار کونکي] په تېر وخت کې د شرکت د وصف خبر ورکړی دی وَلَا وَجْهَ إِلَى إِثْبَاتِهِ بِدُوْنِ هٰذَا الْوَصْفِ او له دغه وصف شرکت

شخه بغير د دې اقرار ثابتولو لره هيڅ صورت نسته لِأَنَّهُ خِلَافُ مَا أَخْبَرَ بِهِ ځکه دا د هغه خبر خلاف دي د کوم چي مُقر [مخکي] خبر ورکړی دی وَلَا إِلَى إِثْبَاتِ الْوَصْفِ او نه د دې وصف ثابتولو لره هيڅ صورت سته لِأَنَّهُ يَصِيرُ الْوَارِثُ فِيهِ شَرِيكًا ځکه چي په هغه کي به وارث شريک وګرځي وَلِأَنَّهُ لَوْ قَبَضَ الْأَجْنَبِيُّ شَيْئًا او ځکه چي که اجنبي پر يو شي قبضه وکړي كَانَ لِلْوَارِثِ أَنْ يُشَارِكَهُ نو وارث لره به دا حق وي چي په هغه کي د اجنبي سره شريک سي فَيَبْطُلُ فِي ذَلِكَ الْقَدْرِ نو په هغه مقدار کي به قبضه باطله سي ثُمَّ لَا يَزَالُ يَقْبِضُ وَيُشَارِكُهُ الْوَارِثُ بيا چي اجنبي هر کله قبضه کوي او اورث به د هغه سره شريک کيږي حَتَّى يَبْطُلَ الْكُلُّ تر دې چي ټوله اقرار به باطل سي فَلَا يَكُونُ مُفِيدًا نو ځکه دا اقرار به مفيد نه وي وَفِي الْإِنْشَاءِ حِصَّةُ أَحَدِهِمَا مُمْتَازَةٌ عَنْ حِصَّةِ الْآخَرِ بَقَاءً وَبُطْلَانًا او په انشاء [يعني په وصيت] کي له دوی څخه د هر يوه حصه د بل يوه له حصې څخه جلا ده د بقاء او بطلان دواړو په اعتبار سره [د بقاء په اعتبار سره د اجنبي په حق کي او د بطلان په اعتبار سره د وارثانو په حق کي].

**اللغات:** ﴿عين﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: عين شی، معين شی. يعني کوم شی چي موجود وي او په لاس سره مسه کېدلای سي او خوندي کېدلای سي، لکه څمکه، آس او داسي نور. ﴿إنشاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: په وجود کي راوستل، پيدا کول، ايجادول (خلقول)، ابتداء کول. ﴿إنشاء تصرّف﴾ يو عقد چي تر اوسه سوی نه وي او مخکي موجود نه وي، په وجود کي د هغه راوستلو او د هغه ثابتولو ته "انشاء تصرف" وايي. ﴿كائن﴾ له "كَانَ. يَكُوْنُ" څخه د اسم فاعل صيغه ده: کوم چي سوی وي، کېدونکی. ﴿قدر﴾ مقدار. ﴿ممتازة﴾ د افتعال له بابه واحد مؤنث مفعول دی: جلا او بېل، عليحده.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي که څوک د اجنبي (پردي کس) لپاره او د خپل وارث لپاره د مال وصيت وکړي، نو دا وصيت د اجنبي په حق کي صحيح دی که څه هم د وارث په حق کي دا وصيت باطل دی. لېکن که څوک د اجنبي لپاره او د خپل وارث لپاره د يو عين شي (مثلاً د آس) اقرار وکړي يا د قرض اقرار وکړي، نو دا اقرار مطلقاً باطل دی. يعني نه د وارث لپاره صحيح دی او نه د اجنبي لپاره. معلومه سوه چي په وصيت او اقرار کي فرق دی.

او هغه فرق دا دی چي وصیت د یو نوي تصرف انشاء ده کوم چي مخکي نه وو او په وصیت کي چي کوم شرکت کیږي، هغه اصلاً نه کیږي. بلکي د انشاء تصرف لپاره د حکم په توګه ثابتیږي (یا په بله وینا دا چي په وصیت کي شرکت اصالتاً نه ثابتیږي. بلکي هغه د انشاء او نوي تصرف حکم جوړیږي او په وصیت کي ثابتیږي). نو په وصیت کي چي چیري تصرف نه صحیح کیږي. هلته شرکت هم نه صحیح کیږي، او څرنګه چي د خپل وارث لپاره د موصي وصیت صحیح نه دی. نو ځکه هلته شرکت هم نه صحیح کیږي او کله چي شرکت نه صحیح کیږي. نو یوازي اجنبي پاته سو چي هغه ته به نصف موصیٰ بهٖ ور کول کیږي (لکه مخکي چي ذکر سوه)؛ ځکه د اجنبي په حق کي وصیت جائز او صحیح دي. همدا بیان صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې الفاظو "فتصح في حق من يستحقه الخ" سره کړی دی.

او پاته سو اقرار. نو په هغه کي که د مُقر (اقرار کونکي) له طرفه د شرکت وضاحت وکړی سي. نو په نفسِ اقرار کي شرکت ثابتیږي او اصلاً واقع کیږي؛ ځکه اقرار په تېر سوي وخت کي د یو کار او د یو شي خبر ورکولو ته وایي او کله چي په ماضي کي په اقرار کي اشتراک وي. نو په حال کي به هم هغه اقرار مشترک پاتیږي، او که چیري په حال کي اقرار د شرکت له وصف څخه خالي کړی سي، نو دا به د مقر د اقرار او د هغه د خبر خلاف وي، او که په اقرار کي شرکت باقي وساتل سي نو دا هم صحیح نه ده؛ ځکه د وصیت په څېر د وارث لپاره اقرار هم صحیح نه دی او په دې صورت کي یوه خرابي دا لازمیږي چي اجنبي هر کله پر یو شي قبضه وکړي نو د اقرار د مشترک کېدلو په وجه وارث د هغه شریک کیږي او اقرار باطلیږي او تر څو چي له سره اقرار د دواړو په حق کي باطل نه وګرځوو. تر هغه وخته دا خرابي لازمیږي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي مورږ د وارث او اجنبي دواړو په حق کي اقرار باطل ګرځولی دی. د دې په خلاف په انشاء تصرف یعني په وصیت کي شرکت په اصل او حقیقت کي داخل نه دی او په هغه کي د اجنبي او وارث هر یوه حصه له بل یوه څخه جلا او بېله ده، لهذا د یوه یعني د وارث د حصې باطلېدل د بل یوه یعني د اجنبي د حصې باطلېدلو لره مستلزم نه دي. نو ځکه د اجنبي په حق کي وصیت صحیح دي او هغه ته به خپل نصف موصیٰ بهٖ ور کول کیږي.

## د دریو داسي کپړو (تانو) د وصیت حکم چي له هغوی
## څخه یو غوره، یو مینځوی او بل ردي وي

قَالَ: وَمَنْ كَانَ لَهُ ثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ فرمايي: او د چا لپاره چي درې کپړې وي جَيِّدٌ وَوَسَطٌ وَرَدِيءٌ یوه ښه او بله مینځوې او بله بده [کمزورې] کپړه فَأَوْصَى بِكُلِّ وَاحِدٍ لِرَجُلٍ بیا هغه د هري کپړې وصیت د یوه. یوه سړي لپاره وکړي فَضَاعَ ثَوْبٌ بیا یوه کپړه ضایع سي وَلَا يُدْرَى أَيُّهَا هُوَ او دا معلومه نه کړی سي چي هغه [ضایع سوې کپړه] له هغوی څخه کومه یوه ده [یعني دا معلومه نه سي چي جید. که وسط او که ردي کپړه ضایع سوې ده] وَالْوَرَثَةُ تَجْحَدُ ذٰلِكَ او وارثان د دې انکار کوي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصیت باطل دی وَمَعْنٰى جُحُوْدِهِمْ أَنْ يَقُوْلَ الْوَارِثُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ بِعَيْنِهِ او د وارثانو د انکار کولو معنیٰ دا ده چي وارث له دوی [دریو کسانو] څخه هر یوه ته بعینه داسي ووایي الثَّوْبُ الَّذِيْ هُوَ حَقُّكَ قَدْ هَلَكَ چي هغه کپړه کوم چي ستا حق وه هغه هلاکه سوه فَكَانَ الْمُسْتَحِقُّ مَجْهُوْلًا نو مستحق [موصیٰ لهٗ] به مجهول وي وَجَهَالَتُهُ تَمْنَعُ صِحَّةَ الْقَضَاءِ وَتَحْصِيْلَ الْمَقْصُوْدِ او د مستحق مجهول کېدل د قضاء صحت او د مقصود حاصلول منع کوي فَبَطَلَ نو ځکه دا وصیت به باطلیږي.

**اللغات:** ﴿أثواب﴾ جمع د ثَوْبٌ ده: کپړه. ټوکر (مجازاً تان ته هم ویل کیږي. لکه مخکي چي په اوله هدایه کي ذکر سوه. دلته کپړه او تان دواړه مراد کېدلای سي). ﴿جيّد﴾ ښه. ﴿رديء﴾ او ردي: بد. خراب. کمي درجې والا.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د یو سړي مثلاً د زید سره د کپړې درې تانونه دي. له هغوی څخه یوه غوره او شانداره تان دی چي د هغه قیمت دوه زره روپۍ دي او بل مینځوی تاوان دیٰ چي هغه نه ډېر ښه دی او نه خراب دیٰ او قیمت یې زر روپۍ دی او بل کمزوری تان دی چي د هغه قیمت پنځه سوه روپۍ دی. او مالک (زید) د دریو کسانو لپاره د هغه دریو تانو وصیت وکړی. مثلاً د ښه تان وصیت یې د خالد لپاره او د مینځوي تان د حامد لپاره او د کمزوري تان وصیت یې د شاکر لپاره وکړی. تر دې وروسته له هغه تانو څخه یوه تان ضایع سو لېکن دا معلومه نه کړی سوه چي کوم تان ضایع سوی دی یعني هغه ضایع سوی تان جید او ښه تان وو. که مینځوی او که خراب تان وو. او د موصي (زید) وارثانو دې دریو کسانو (موصیٰ لهم) ته وویل یعني هر یوه ته یې جلا وویل چي ستا کوم حق وو. هغه ضایع او هلاک سو. نو څرنګه چي په دې صورت کي مستحق مجهول دی او دا

معلومه نه ده چي کوم تان ضايع سوی دی، او کله چي مستحق مجهول دی، نو ځکه قاضي هم هيڅ فيصله نه سي کولای او نه په هغه سره د موصي (زيد) مقصد حاصلېدلای سي، نو ځکه وصيت به باطل ګرځول کيږي، له دې څخه علاوه بله چاره نسته.

## د مذکوره وصيت له باطلېدلو څخه د بچ کېدلو طريقه

قَالَ: إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَ الْوَرَثَةُ الثَّوْبَيْنِ الْبَاقِيَيْنِ فرمايي: مګر دا چي وارثان باقي دواړه کپړې [تانونه] ور وسپاري فَإِنْ سَلَّمُوْا نو که وارثان يې ورسپاري زَالَ الْمَانِعُ نو مانع زائل سو وَهُوَ الْجُحُوْدُ او مانع [د وارثانو] انکار کول وو فَيَكُوْنُ لِصَاحِبِ الْجَيِّدِ ثُلُثَا الثَّوْبِ الْأَجْوَدِ نو بنه کپړې [جيد تان] والا لپاره به د بنه کپړې دوه ثلثه وي وَلِصَاحِبِ الْأَوْسَطِ ثُلُثُ الْجَيِّدِ وَثُلُثُ الْأَدْوَنِ او د مينځوی کپړې والا لپاره به د بنه کپړې يو ثلث او د ادنیٰ [ردي] کپړې يو ثلث وي وَلِصَاحِبِ الْأَدْوَنِ ثُلُثَا الثَّوْبِ الْأَدْوَنِ او د ادنیٰ [ردي] کپړې والا لپاره به د ادنیٰ [ردي] کپړې دوه ثلثه وي لِأَنَّ صَاحِبَ الْجَيِّدِ لَا حَقَّ لَهُ فِي الرَّدِيْءِ بِيَقِيْنٍ ځکه په ردي کپړه کي په يقيني توګه د صاحب جيّد هيڅ حق نسته لِأَنَّهُ إِمَّا أَنْ يَكُوْنَ وَسَطًا أَوْ رَدِيْئًا ځکه چي هغه ردي کپړه به يا مينځوی کپړه وي يا به [واقعتا] ردي وي وَلَا حَقَّ لَهُ فِيْهِمَا او صاحب جيد لره په دې دواړو کي حق نسته [ځکه چي د هغه صرف په جيد تان کي دی] وَصَاحِبُ الرَّدِيْءِ لَا حَقَّ لَهُ فِي الْجَيِّدِ الْبَاقِيْ بِيَقِيْنٍ او د بدي کپړې والا لره په باقي جيّده کپړه [تان] کي په يقيني توګه هيڅ حق نسته لِأَنَّهُ إِمَّا أَنْ يَكُوْنَ جَيِّدًا أَوْ وَسَطًا ځکه چي هغه به يا [واقعتا] جيّده کپړه وي يا به مينځوی وي وَلَا حَقَّ لَهُ فِيْهِمَا او صاحب ردي لره په دې دواړو کي حق نسته وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُوْنَ الرَّدِيْءُ هُوَ الرَّدِيْءُ الْأَصْلِيُّ او دا احتمال سته چي دا [باقي] ردي کپړه به [واقعتا] هغه اصلي ردي کپړه وي فَيُعْطَى مِنْ مَحَلِّ الْاِحْتِمَالِ نو ځکه صاحب ردي ته به له محلِ احتمال څخه ورکول کيږي وَإِذَا ذَهَبَ ثُلُثَا الْجَيِّدِ وَثُلُثَا الْأَدْوَنِ او کله چي د جيّد دوه ثلثه او د ادنیٰ [ردي] دوه ثلثه ختم سول لَمْ يَبْقَ إِلَّا ثُلُثُ الْجَيِّدِ وَثُلُثُ الرَّدِيْءِ نو باقي پاته نه سوه مګر صرف د جيد يو ثلث او د ردي يو ثلث فَيَتَعَيَّنُ حَقُّ صَاحِبِ الْوَسَطِ فِيْهِ بِعَيْنِهِ ضَرُوْرَةً نو ضرورتا د صاحب وسط [مينځوي تان والا] حق به په هغه کي متعين سي.

**اللغات**: ﴿أجود﴾ بهترین. تر ټولو ښه. ﴿أدون﴾ کمترین. تر ټولو کمي درجې والا. ﴿رديء﴾ او ردي: بد. خراب. کمي درجې والا.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې مذکوره وصيت هغه وخت باطليږي کله چې وارثان هر يو ته انکار وکړي، لېکن که وارثان ما بقي دوه تانونه هغو ته وسپاري، نو څرنګه چې اوس مانع ليري سو، نو ځکه اوس وصيت له بطلان څخه بچ کيږي او هغه صحيح کيږي، او کله چې وصيت صحيح دی.
نو په ما بقي دوو تانو کي درې سره موصیٰ لهم (خالد. حامد او شاکر) شريکان کيږي، او د هغه صورت به دا وي چې په ما بقي دوو تانو کي چې کوم يو جيّد (ښه) تان وي، له هغه څخه به صاحبِ جيّد (خالد) ته دوه ثلثه ورکول کيږي او چې کوم يو ردّي (کمزوری) تان وي، له هغه څخه به صاحبِ ردي (شاکر) ته دوه ثلثه ورکول کيږي او پاته سو صاحبِ وسط (يعني حامد)، نو هغه ته به يو ثلث له ښه تان او يو ثلث له ردي تان څخه ورکول کيږي.
او د داسي تقسيم کولو وجه او دليل دا دی چې په ما بقي دوو تانو کي چې کوم يو ردّي تان دی، په هغه کي دوه احتمال دي: ① کېداې سي چې واقعتاً هم هغه ردّي تان وي. ② کېداې سي چې هغه اوسط وي او ردّي تان به هغه وي کوم چې ضايع سوی دی، او د صاحبِ جيّد (خالد) حق صرف په جيّد تان کي دی، نو د دې دوو احتمالونو باوجود خالد ته په دې ردّي تان کي حق نه حاصليږي، بلکي د ده حق صرف په هغه تان کي دی کوم چې اوس وخت جيّد او ښه تان دی، نو ځکه ده ته به صرف له جيّد څخه دوه ثلثه ورکول کيږي.
او پاته سو صاحبِ ردّي (شاکر)، نو په جيّد تان کي خو د هغه حق نسته: ځکه په دې جيّد تان کي هم دوه احتماله دي: ① کېداې سي چې په حقيقت کي هم هغه جيّد تان وي. ② کېداې سي چې په حقيقت کي هغه اوسط تان وي، او له دې دواړو څخه په يوه کي هم د صاحب ردي حق نسته. ځکه د هغه حق صرف په ردي تان کي دی. او په ردي تان کي هم دوه احتماله دي لکه څه مخکي چې ذکر سوه چې کېداې سي هغه به واقعتاً هم ردي وي يا کېداې سي هغه به اوسط وي. نو څرنګه چې په هغه کي د ردي والي احتمال هم سته، نو ځکه موږ صاحبِ ردّي ته له هغه څخه دوه ثلثه ورکړل.
او پاته سو صاحبِ وسط (حامد) نو څرنګه چې د هغه حق په مينځوي تان کي دی او دلته هغه معدوم دی او صرف جيّد او ردّي تان سته او له دې هر يوه څخه دوه ثلثه صاحبِ جيد او صاحب ردي ته ورکول سوي دي او له دوی څخه صرف يو. يو ثلث پاته دي، نو ځکه موږ وويل چې صاحبِ وسط ته به يو ثلث له جيّد تان څخه او يو ثلث له ردّي تان څخه ورکول کيږي.

## د مشترک جایداد د یوې مُعیّنې حصې د وصیت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِذَا كَانَتِ الدَّارُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ فرمايي: او كله چې كور د دوو كسانو تر مينځ مشترک وي أَوْصٰى أَحَدُهُمَا بِبَيْتٍ بِعَيْنِهِ لِرَجُلٍ [او] له دوى څخه يو كس د يوې معيّنې خونې وصيت د يو سړي لپاره وكړي فَإِنَّهَا تُقْسَمُ نو كور به تقسيمول كيږي فَإِنْ وَقَعَ الْبَيْتُ فِي نَصِيبِ الْمُوصِيْ نو كه هغه خونه د موصي په حصه كې واقع سي فَهُوَ لِلْمُوصٰى لَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه خونه د موصىٰ لهٗ لپاره ده وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ نِصْفُهُ لِلْمُوصٰى لَهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د هغې نيمه حصه [نيمه خونه] د موصىٰ لهٗ لپاره ده وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ او كه هغه خونه د بل شريک په حصه كې واقع سي [او د موصي په حصه كې رانه سي] فَلِلْمُوصٰى لَهُ مِثْلُ ذَرْعِ الْبَيْتِ نو د موصىٰ لهٗ لپاره د هغه خونې د پېمايش [مقدار] په مثل حصه ده [يا په بله وينا دا چې د موصىٰ لهٗ لپاره د هغه خونې د گزونو په اندازه حصه ده] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: مِثْلُ ذَرْعِ نِصْفِ الْبَيْتِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [د موصىٰ لهٗ لپاره] د نيمې خونې د پېمايش په اندازه حصه ده لَهُ: أَنَّهُ أَوْصٰى بِمِلْكِهِ وَبِمِلْكِ غَيْرِهِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې موصي د خپل ملكيت او د بل چا [خپل ملګري] د ملكيت وصيت كړى دى لِأَنَّ الدَّارَ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا مُشْتَرَكَةٌ ځكه چې كور د خپل ټولو اجزاؤ سره [د دواړو تر مينځ] مشترک دى فَيَنْفُذُ الْأَوَّلُ وَيَتَوَقَّفُ الثَّانِيْ نو ځكه اول [كې به وصيت] نافذيږي او دويم [كې به د ملګري پر اجازه وصيت] موقوف كيږي وَهُوَ إِنْ مَلَكَهُ بَعْدَ ذٰلِكَ بِالْقِسْمَةِ الَّتِي هِيَ مُبَادَلَةٌ او موصي كه څه هم تر وصيت وروسته د هغه تقسيم په ذريعه د خونې مالک سوى دى كوم چې مبادله ده لَا تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ السَّابِقَةُ [لېكن بيا هم] مخكينى وصيت نه نافذيږي كَمَا إِذَا أَوْصٰى بِمِلْكِ الْغَيْرِ ثُمَّ اشْتَرَاهُ لكه كله چې څوک د بل چا د ملكيت وصيت وكړي بيا هغه رانيسي ثُمَّ إِذَا اقْتَسَمُوهَا وَوَقَعَ الْبَيْتُ فِي نَصِيبِ الْمُوصِيْ بيا كله چې دوى كور تقسيم كړي او خونه د موصي په حصه كې واقع سي تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِي

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، لأن قولهما قول المتون، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:٢، ص:٣٧٨]

عَيْنِ الْمُوصٰى بِهٖ نو وصيت په عين موصىٰ به كي نافذيږي وَهُوَنِصْفُ الْبَيْتِ او هغه نيمه خونه ده وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيْبِ صَاحِبِهٖ او كه [په تقسيم كي] خونه د موصي د ملګري په حصه كي واقع سي لَهٗ مِثْلُ ذَرْعِ نِصْفِ الْبَيْتِ نو د موصىٰ لهٗ لپاره د نيمي خوني د پېمايش په مثل حصه ده تَنْفِيْذًا لِلْوَصِيَّةِ فِيْ بَدَلِ الْمُوصٰى بِهٖ عِنْدَ فَوَاتِهٖ دا دې لپاره چي د موصىٰ به په بدل كي وصيت نافذ كړى سي د هغه د فوت‌بدلو په وخت كي كَالْجَارِيَةِ الْمُوصٰى بِهَا إِذَا قُتِلَتْ خَطَأً لكه هغه مينځه چي د هغې وصيت سوى وي كله چي هغه خطاءً قتل كړله سي تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِيْ بَدَلِهَا نو وصيت د هغې په بدل كي نافذيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا بِيْعَ الْعَبْدُ الْمُوصٰى بِهٖ په خلاف د دې صورت كله چي هغه غلام خرڅ كړى سي چي د هغه وصيت سوى وي حَيْثُ لَا تَتَعَلَّقُ الْوَصِيَّةُ بِثَمَنِهٖ نو وصيت د هغه د ثمن سره نه متعلق كيږي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ تَبْطُلُ بِالْإِقْدَامِ عَلَى الْبَيْعِ ځكه چي پر بيع د اقدام كولو په وجه وصيت باطليږي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لكه څرنګه چي [مخكي] موږ بيان كړه [في مسائل الرجوع عن الوصية بقوله: وإذا عزم بالرجوع، أو فعل ما يدل على الرجوع كان رجوعا] وَلَا تَبْطُلُ بِالْقِسْمَةِ او د تقسيم كولو په وجه وصيت نه باطليږي.

**اللغات:** ﴿ذَرْع﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: د لاس غوږېدل، مقدار، اوږدول. وذَرْعُهٗ كَذَا: يعني د هغه اوږدول دومره دى. ﴿موصٰى بهٖ﴾ د كوم شي وصيت چي سوى وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو كور د دوو كسانو تر مينځ مشترک وي او له دوى څخه يو شريک د يو چا مثلاً د خالد لپاره د يوې معلومي خوني (كوټې) وصيت وكړي. نو كله چي وصيت كونكى شريک (موصي) مړ سي نو دا كور به پر دوو حصو تقسيمول كيږي. اوس كه د وصيت والا خونه (موصىٰ به كوټه) د موصي شريک په حصه كي راسي، نو موصىٰ لهٗ (خالد) ته به هغه ټوله خونه وركول كيږي او كه هغه خونه د موصي د ملګري (بل شريک) په حصه كي راسي. نو بيا به د هغه خوني په اندازه ځمكه يا ځاى موصىٰ لهٗ (خالد) ته وركول كيږي. دا حكم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دى.

او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي كه د وصيت والا خونه د موصي په حصه كي راسي. نو موصىٰ لهٗ ته به د خوني نصف حصه (نيمه خونه) وركول كيږي او كه هغه خونه د موصي د ملګري په حصه كي راسي. نو موصىٰ لهٗ ته به د نيمي خوني په اندازه ځمكه يا ځاى وركول كيږي.

له إلخ: د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د وصیت په وخت کې دا خونه د موصي او د هغه د ملګري تر مینځ مشترکه وه؛ ځکه دا خونه د کور جزء ده او کور د خپل ټولو اجزاؤ سره د دواړو شریکانو تر مینځ مشترک دی، نو ګواکې موصي د خپل او د بل چا د (مشترک) ملکیت وصیت کړی دی. نو ځکه دا وصیت به صرف د هغه په خپله حصه یعني په نیمه خونه کې نافذیږي او د هغه د ملګري په حصهٔ کې به وصیت د ملګري پر اجازه موقوف پاته وي، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله په دې صورت کې موصیٰ لهٔ صرف د نیمي خوني (نصف بیت) حقدار ګرځولی دی.

وهوإن ملكه إلخ: په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکول سوی دی. سوال دا دی چې موصي که څه هم د وصیت په وخت کې د دې خوني مالک نه دی (ځکه چې خونه د دواړو تر مینځ مشترکه ده)، لیکن تر تقسیم وروسته چې کله دا خونه د موصي په حصه کې راسي، نو هغه یې مالک سو. لهذا اوس په ټوله خونه کې وصیت نافذیدل او ټوله خونه موصیٰ لهٔ ته ورکول پکار دي؟ حال دا چې امام محمد رَحِمَهُ الله په دې صورت کې هم موصیٰ لهٔ صرف د نیمي خوني حقدار ګرځولی دی.

د دې په جواب کې امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې موصي که څه هم تر تقسیم وروسته د دې خوني مالک کیږي خو تقسیم من وجه مبادله ده او تر مبادلې یعني تر بیع و شراء وروسته که څوک د موصیٰ بهٔ مالک سي، نو په هغه موصیٰ بهٔ کې مخکینی وصیت نه نافذیږي. نو همداسي په مذکوره مسئله کې به هم په هغه ټوله خونه کې د موصي وصیت نه نافذیږي، بلکې د خوني په کومه حصه کې چې په اوله ورځ وصیت نافذ سوی وو، صرف په هاغه حصه کې به اوس هم وصیت نافذیږي یعني په نیمه خونه (نصف بیت) کې، او که هغه خونه د موصي د ملګري په حصه کې راسي، نو موصیٰ لهٔ ته به د نیمي خوني په اندازه ځمکه یا ځای ځکه ورکول کیږي؛ ځکه چې د موصیٰ بهٔ د فوتیدلو په صورت کې د هغه په بدل کې وصیت نافذیږي او څرنګه چې دلته د بل شریک په حصه کې خونه راغلې ده او عین موصیٰ بهٔ فوت سوی دی د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز، نو ځکه د هغه په بدل یعني د کور په بله حصه کې به وصیت نافذیږي او له بلې حصې څخه به موصیٰ لهٔ ته د نیمي خوني په اندازه حصه ورکول کیږي.

د دې مثال داسي دی لکه څوک چې د یو چا لپاره د مینځي وصیت وکړي. بیا هغه مینځه خطاء قتل کړله سي، نو څرنګه چې اوس موصیٰ بها (مینځه) فوت سوه، لهذا اوس د هغې په بدل کې

وصيت نافذيږي، نو همدغسې په مذکوره مسئله کې به هم د موصیٰ به (خوني) په بدل کې وصيت نافذيږي.

د دې په خلاف که موصي د وصيت غلام (عبد موصیٰ به) خرڅ کړي، نو وصيت باطليږي او د هغه په بدل (ثمن) کې وصيت نه نافذيږي؛ ځکه د غلام پر بيع اقدام کول له وصيت څخه د رجوع کولو دليل دی، او پاته سو تقسيم خو نه رجوع ده او نه د رجوع دليل دی.

**د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل**

وَلَهُمَا: أَنَّهُ أَوْصَى بِمَا يَسْتَقِرُّ مِلْكُهُ فِيهِ بِالْقِسْمَةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې موصي د هغه شي وصيت کړی دی چې په تقسيم سره په هغه کې د ده ملکيت پخيږي [ثابتيږي] لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَقْصِدُ الْإِيصَاءَ بِمِلْكٍ مُنْتَفَعٍ بِهِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه ښکاره همدا ده چې موصي د داسي ملکيت د وصيت کولو قصد کړی دی چې له هغه ملکيت څخه په هر اعتبار نفع اخيستل کېدای سي وَذٰلِكَ يَكُونُ بِالْقِسْمَةِ او دا مقصد [پوره نفع اخيستل] په تقسيم سره کېدلای سي لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْمُشَاعِ قَاصِرٌ ځکه له مشترک شي څخه نفع اخيستل ناقص وي وَقَدِ اسْتَقَرَّ مِلْكُهُ فِي جَمِيعِ الْبَيْتِ إِذَا وَقَعَ فِي نَصِيبِهِ] او کله چې خونه د موصي په حصه کې راغله نو په ټوله خونه کې د هغه ملکيت پوخ [ثابت] سو فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِيهِ نو ځکه په هغه [ټوله خونه] کې به وصيت نافذيږي وَمَعْنَى الْمُبَادَلَةِ فِي هٰذِهِ الْقِسْمَةِ تَابِعٌ او په دغه تقسيم کې د "مبادله" معنیٰ تابع ده وَإِنَّمَا الْمَقْصُودُ الْإِفْرَازُ او [اصل] مقصود [د حصو] جلا کول دي تَكْمِيلًا لِلْمَنْفَعَةِ د دې لپاره چې منفعت پوره کړی سي وَلِهٰذَا يُجْبَرُ عَلَى الْقِسْمَةِ فِيهِ په همدې وجه په دې کې پر تقسيم جبر کېدلای سي وَعَلَى اعْتِبَارِ الْإِفْرَازِ يَصِيرُ كَأَنَّ الْبَيْتَ مِلْكُهُ مِنَ الِابْتِدَاءِ او د إفراز په اعتبار سره داسي ګرځي ګواکي هغه خونه له شروع څخه د موصي ملکيت ده.

**اللغات:** ﴿يستقر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پخېدل او مضبوطېدل، ثابتېدل. ﴿مشاع﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی، د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: مشترک شی. ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا کول، د يو چا له مال څخه د بل چا مال جلا کول (عليحده کول).

**تشریح** : په دې عبارت کې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل بیان سوی دی. حاصل یې دا دی چې موصي چې د کومي خوني وصیت کړی دی. د هغه په هکله د موصي غالب ګومان همدا دی چې دا خونه به په تقسیم کې زما په حصه کې راځي او زما ملکیت به پکښې ثابتیږي: ځکه پر وصیت اقدام کول د دې خبري واضح دلیل دی چې موصي د داسي ملکیت وصیت کول غواړي چې موصیٰ لهٗ له هغه څخه کما حقهٗ او په هره توګه نفع اخیستلای سي. او موصیٰ لهٗ هغه وخت له موصیٰ به (خوني) څخه کما حقهٗ فایده اخیستلای سي کله چې په تقسیم کي هغه خونه د موصي په حصه کي راسي. ځکه له دې څخه بغیر هغه خونه مشترکه پاتیږي او له مشترک شي څخه په کامله توګه نفع اخیستل نا ممکن دي. او بل دا چې کله د موصي ملګري ته دا معلومه سي چې زما ملګري د فلانکۍ خوني وصیت کړی دی، نو د تقسیم په وخت کي به د هغه رعایت وکړي او داسي تقسیم به وکړي چې موصیٰ به خونه د هغه د ملګري (موصي) په حصه کي راسي. نو په دې حواله سره هم په هغه خونه کي تر تقسیم وروسته د موصي ملکیت یقیني دی، نو ځکه په ټوله خونه کي به وصیت نافذیږي.

ومعنى المبادلة إلخ: امام محمد رَحِمَهُ الله تقسیم مبادله ګرځولې وه چې صرف په نیمه خونه کي یې وصیت صحیح ګرځولی وو. نو دلته د هغه جواب ورکوي چې دا موږ نه تسلیموو: ځکه په تقسیم کي که څه هم د "مبادله" معنیٰ سته لېکن د هغه تر څنګ په تقسیم کي د "إفراز" اړخ او معنیٰ هم سته او په جنسِ واحد کي د إفراز اړخ غالب وي. او څرنګه چې کور او خونه دواړه متحد الجنس دي. نو ځکه دلته به د إفراز اړخ غالب وي او د مبادلې اړخ به مغلوب وي. په همدې وجه په مذکوره مسئله کي پر تقسیم جبر (مجبوره کول) جائز دي. حال دا چې که په تقسیم کي د مبادلې معنیٰ غالبه وای. نو پر تقسیم مجبوره کول به جائز نه وای. نو د جبر جائز کېدل دا ښیي چې په وصیت کي د إفراز معنی غالبه ده او چې د وصیت خونه (موصیٰ به کوټه) له شروع یعني د وصیت له وخت څخه د موصي په ملکیت کي ده او په هغه ټوله خونه کي وصیت صحیح او نافذ دی.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ او که هغه خونه د بل شریک په حصه کې واقع سي تُنْفَذُ فِيْ قَدْرِ ذُرْعَانِ جَمِيْعِهِ مِمَّا وَقَعَ فِي نَصِيْبِهِ نو وصیت به د هغه خوني د ټولو ګزونو په اندازه د موصي په حصه [ځمکه] کې نافذول کیږي [یعني د هغه خوني په اندازه ځمکه به د موصي له حصي څخه موصیٰ لهٗ ته ورکول کیږي] إِمَّا لِأَنَّهُ عِوَضُهُ یا په دې وجه چې هغه حصه [ځمکه] د خوني عوض ده [یعني موصیٰ لهٗ ته ورکول سوې ځمکه د هغه خوني عوض ده] كَمَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چې [مخکې] موږ ذکر کړه أَوْ لِأَنَّ مُرَادَ الْمُوْصِيْ مِنْ ذِكْرِ الْبَيْتِ التَّقْدِيْرُ بِهِ یا ځکه چې د خوني په ذکر کولو سره د موصي مراد د هغه خوني په ذریعه اندازه بیانول دي تَحْصِيْلًا لِمَقْصُوْدِهِ مَا أَمْكَنَ د دې لپاره چې د موصي مقصود حاصل کړی سي تر څو چې ممکنه وي [یعني چې حتی الامکان د هغه مقصود حاصل او پوره کړی سي] إِلَّا أَنَّهُ يَتَعَيَّنُ الْبَيْتُ إِذَا وَقَعَ فِي نَصِيْبِهِ لیکن کله چې هغه خونه د موصي په حصه کې راسي نو [د موصیٰ لهٗ لپاره] هغه خونه متعین کیږي جَمْعًا بَيْنَ الْجِهَتَيْنِ التَّقْدِيْرِ وَالتَّمْلِيْكِ د دې لپاره چې د دواړو اړخونو یعني تقدیر او تملیک تر مینځ جمع وسي وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيْبِ الْآخَرِ او که هغه خونه د بل شریک په حصهٔ کې واقع سي عَمِلْنَا بِالتَّقْدِيْرِ نو موږ په تقدیر [د تقدیر په اړخ] عمل کوو أَوْ لِأَنَّهُ أَرَادَ التَّقْدِيْرَ عَلٰى اِعْتِبَارِ أَحَدِ الْوَجْهَيْنِ یا ځکه چې موصي د یوې وجهې په اعتبار کولو سره د تقدیر اراده کړې ده وَالتَّمْلِيْكَ بِعَيْنِهِ عَلٰى اِعْتِبَارِ الْوَجْهِ الْآخَرِ او د بلې وجهې په اعتبار کولو سره یې د تملیک اراده کړې ده كَمَا إِذَا عَلَّقَ عِتْقَ الْوَلَدِ وَطَلَاقَ الْمَرْأَةِ بِأَوَّلِ وَلَدٍ تَلِدُهُ أَمَتُهُ لکه کله چې څوک د بچي آزادېدل او د ښځې طلاق معلق کړي پر هغه بچي کوم چې يې د ده مینځه اول وزېږوي فَالْمُرَادُ فِيْ جَزَاءِ الطَّلَاقِ مُطْلَقُ الْوَلَدِ وَفِي الْعِتْقِ وَلَدٌ حَيٌّ نو [په دې صورت کې] د طلاق په جزاء کې مطلق بچی مراد دی او د آزادۍ په حق کې ژوندی بچی مراد دی.

**اللغات**: ﴿ذُرعان﴾ جمع د ذِرَاعٌ ده: شرعي ګز. کوم چې یو لاس کیږي (له څنګلي څخه د مینځوی ګوتي تر سره). ﴿تملیك﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مالک جوړول. مالک کول. ﴿علّق﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: مُعلق کول. مشروط کول.

**تشریح**: دا عبارت هم د شیخینو رَحِمَهُمَا اللّٰه د دلیل سره متعلق دی، حاصل یې دا دی چې که د وصیت خونه (موصیٰ به کوټه) د موصي د ملګرې په حصه کې راسي، نو په دې صورت کې به د موصي له حصې څخه موصیٰ لهٔ ته د هغه خوني د څمکې په اندازه څمکه ورکول کیږي: ځکه چې دا ځمکه د مذکوره خوني عوض او بدل ده او څرنګه چې دلته د اصل خوني تسلیم ناممکن دی (ځکه چې هغه د موصي د ملګرې په حصه کې رغلې ده)، نو ځکه اوس به د هغې پر ځای بدل ور سپارل کیږي.

أو لأن إلخ: یا د دې وجه دا ده چې د موصي اصل مقصد موصیٰ لهٔ ته د هغه خوني په اندزه څمکه ورکول دي، یعني د موصي مراد او مقصود بعینه د هغه خوني وصیت کول نه دي، بلکې د هغې په مثل د څمکې وصیت کول یې مراد دي او د خوني ذکر محض د تقدیر په توګه دی یعني د موصیٰ به (څمکې) د اندازې بیانولو لپاره دی چې د خوني په ذکر سره د څمکې اندازه معلومه وي.

او دلته ځکه له خوني څخه تقدیر مراد کړی سو چې حتی الامکان د موصي د مقصد رعایت وکړی سي.

**سوال**: کله چې له خوني څخه تقدیر او اندازه مراد ده، نو باید کله چې هغه خونه د موصي په حصه کې راسي نو موصي یا د هغه وارثانو ته دا اختیار هم حاصلېدل پکار دي چې بعینه هغه خونه موصیٰ لهٔ ته نه ورکړي بلکې د هغه پر ځای د خوني په اندازه ځمکه ورکړي، حال دا چې په دې صورت کې (یعني کله چې خونه د موصي په حصه کې راسي) تاسې دا حکم متعیّن کړی دی چې اوس به بعینه هغه خونه موصیٰ لهٔ ته ورکول کیږي، نو دا حکم خو د تقدیر خلاف دی؟.

**جواب**: دلته دواړه احتماله سته. دا هم کېدلای سي چې د خوني په ذکر کولو سره د موصي مراد تقدیر (اندازه بیانول) وي، او دا هم کېدلای سي چې د هغه مراد بعینه د همدې خوني مالک جوړول وي (یعني د هغه مقصد موصیٰ لهٔ ته بعینه همدا خونه ورکول وي). لهذا دلته دا دواړه احتماله او دواړه اړخونه سته. نو کله چې دا حصه د موصي په حصهٔ کې راغله، نو د دویم احتمال پر بناء موږ وویل چې بعینه همدا خونه به موصیٰ لهٔ ته ورکول کیږي، د دې لپاره چې په مذکوره وصیت کې د تقدیر او تملیک دواړو رعایت وسي. یعني دواړې خبرې پر یوه ځای په هغه کې جمع سي. او که هغه خونه د موصي د ملګرې په حصه کې راسي، نو هلته موږ د تقدیر په احتمال باندې عمل کړی دی.

أو لأنه أراد إلخ: یعني یا دا هم کېدلای سي چې د وصیت په وخت کې د موصي خپل مراد او مقصد دا وي چې که دا خونه زما په حصه کې راغله، نو بعینه همدا خونه به ورکول کیږي او که دا خونه زما په

حصه کې نه راغله. نو د هغې په اندازه ځمکه به ورکول کیږي. یعني د وصیت په وخت کې د موصي اراده تقدیر او تملیک دواړه کېدلای سي.

کما إذا علق إلخ: په دې سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې آخري جواب نظیر او مثال پېشوي. یعني دا جواب چې کېدلای سي د وصیت په وخت کې د موصي مراد دا وي چې که دا خونه زما په حصه کې راغله. نو بعینه همدا خونه به ورکول کیږي او که زما په حصه کې نه راغله نو د هغې په اندازه ځمکه به ورکول کیږي.

فرمايي چې د دې مثال دا دی چې د زید یوه ښځه ده او یوه یې مینځه ده او زید هغه مینځه خالد ته په نکاح ورکړې ده. او زید ووېل چې زما مینځه کله اول بچی وزېږوي نو هغه بچی آزاد دی او زما ښځه پر ما طلاقه ده. نو کله چې هغه بچی پیدا سي نو آزادیږي او د زید ښځه طلاقیږي.

نو دلته طلاق او عتق دواړه جلا مرادونه دي. یعني د طلاق واقع کېدلو لپاره مطلق بچی مراد دی یعني بچی برابره ده ژوندی پیدا سي او که مړ. په هر صورت کې طلاق واقع کیږي. او د آزای واقع کېدلو لپاره ژوندی بچی مراد دی. یعني که هغه مینځه ژوندی بچی وزېږوي نو بچی آزادیږي. کنې که هغه بچی مړ پیدا سي. نو نه آزادیږي. نو له دې ځخه معلومه سوه چې د زید مراد په اول بچي سره د طلاق په حق کې مطلق بچی دی او د عتق په حق کې ژوندی بچی دی. نو همدغسې په مذکوره مسئله کې که هغه خونه د موصي په حصه کې راسي. نو د موصي مراد همدا خونه ده او که د موصي په حصه کې نه راسي. نو د موصي مراد د خونې په اندازه ځمکه ده.

## په پورتنۍ مسئله کې د تقسیم طریقه

ثُمَّ إِذَا وَقَعَ الْبَيْتُ فِيْ نَصِيْبِ غَيْرِ الْمُوصِيْ بیا کله چې هغه خونه د غیر موصي (بل شریک) په حصه کې راسي وَالدَّارُ مِائَةُ ذِرَاعٍ وَالْبَيْتُ عَشَرَةُ أَذْرُعٍ او کور سل ګزه وي او خونه لس ګزه وي يُقْسَمُ نَصِيْبُهُ بَيْنَ الْمُوصٰى لَهٗ وَبَيْنَ الْوَرَثَةِ عَلٰى عَشَرَةِ أَسْهُمٍ نو د موصي حصه به د موصیٰ لهٗ او وارثانو تر مینځ پر لسو حصو (برخو) تقسیمول کیږي تِسْعَةٌ مِنْهَا لِلْوَرَثَةِ وَسَهْمٌ لِلْمُوصٰى لَهٗ چې له هغوی ځخه به نهه حصې د وارثانو لپاره وي او یوه حصه د موصیٰ لهٗ لپاره وَهٰذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ او دا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دي فَيَضْرِبُ الْمُوصٰى لَهٗ بِخَمْسَةِ أَذْرُعٍ نِصْفَ الْبَيْتِ نو موصیٰ لهٗ به د نیمي خونې په حساب سره پنځه ګزه اخلي وَلَهُمْ بِنِصْفِ الدَّارِ سِوَى الْبَيْتِ او د وارثانو لپاره به له خونې ځخه ما سوا نیم کور وي وَهُوَ خَمْسَةٌ وَأَرْبَعُوْنَ او هغه (له خونې ځخه ما سوا نیم کور) پنځه

شلوېښت ګزه دي فَيُجْعَلُ كُلُّ خَمْسَةٍ سَهْمًا نو هر پنځه ګزه به يوه حصه [برخه] ګرځول کيږي فَيَصِيْرُ عَشَرَةً نو [ټوله] به لس حصې سي وَعِنْدَهُمَا يُقْسَمُ عَلَى أَحَدَ عَشَرَ سَهْمًا او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د موصي حصه به پر لسو حصو [برخو] تقسيمول کيږي لِأَنَّ الْمُوْصٰى لَهُ يَضْرِبُ بِالْعَشَرَةِ وَهُمْ بِخَمْسَةٍ وَأَرْبَعِيْنَ ځکه چي موصىٰ لهٔ د لسو ګزو په حساب سره اخلي او وارثان يې د پنځه شلوېښت ګزو [په حساب سره اخلي] فَتَصِيْرُ السِّهَامُ أَحَدَ عَشَرَ نو [ټوله] حصې به يوولس حصې سي لِلْمُوْصٰى لَهُ سَهْمَانِ وَلَهُمْ تِسْعَةٌ د موصىٰ لهٔ لپاره به دوې حصې وي او د وارثانو لپاره به نهه حصې وي.

**اللغات**: ﴿يضرب﴾ د ضرب د باب مضارع ده: په عربي ژبه کي ځيني الفاظ او بابونه لسګونه معناوي لري لکه لفظ د "عَيْن" چي په سلهاوو معناوو سره مستعمل دی، نو د ضرب د باب هم ډېري معناوي نقل سوي دي. چي له هغوی څخه يې ځيني دا دي: اخيستل، يو څوک په يو څه کي شريکول (شريک ګرځول)، ټاکل او مقررول. (مغرب، معجم الوسيط). ﴿ذرع﴾ ګز (شرعي ګز). ﴿أسهم﴾ جمع د سَهْمٌ ده: حصه، برخه.

**تشريح**: کله چي دا معلومه سوه چي که مذکوره خونه (موصىٰ بهٔ کوټه) د موصي د ملګري په حصه کي راسي، نه د موصي په حصه کي، نو څرنګه چي په دې صورت کي هغه خونه د موصي د لاسه ووتله نو ځکه اوس به موصىٰ لهٔ ته د موصي له حصې څخه د هغه خوني په اندازه ځمکه ورکول کيږي. نو د دې تقسيم طريقه به څنګه وي؟ که څه هم دا مسئله خپله ښکاره ده خو بيا هم مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړې ده چي ښه واضحه سي.

**د عبارت حاصل**: څرنګه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا وو چي په مذکوره صورت کي به موصىٰ لهٔ ته د نيمي خوني په اندازه ځمکه ورکول کيږي، لهذا که ټوله کور سل ګزه وو او خونه لس ګزه وه. نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز موصىٰ لهٔ ته به پنځه ګزه ورکول کيږي. يعني د موصي په حصه کي پنځوس ګزه راغله او نيمه خونه پنځه ګزه ده، نو ځکه پنځه ګزه به د موصي له حصې څخه موصىٰ لهٔ ته ورکول کيږي. او پاته پنځه شلوېښت ګزه به د موصي د وارثانو لپاره پاته سي.

همدا تقسیم په بله وینا دا چې د موصي حصه (پنځوس ګزه) به لس حصې کړل سي او له هغوی شخه به نهه حصې د موصي وارثانو ته او یوه حصه موصی لهٔ ته ورکول سي؛ په دې توګه چې له پنځوسو شخه پنځه شلوېښت ګزه نهه(۹) حصې کیږي او له پنځوسو شخه پنځه ګزه یوه حصه (لسمه حصه) کیږي. دا تفصیل د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز دی چې تقسیم به پر لسو حصو (لسو سهامو) باندې کول کیږي او هر پنځه ګزه به یوه حصه (یو سهم) ګرځول کیږي.

وعندهما يقسم إلخ: څرنګه چې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په پورتني مذکوره صورت کې موصی لهٔ ته د ټولي خوني په اندازه ځمکه ورکول کیږي. نو د هغو په نیز د تقسیم طریقه دا ده چې که ټوله کور سل ګزه وو او خونه ټوله لس ګزه وه نو د موصي په حصه کې چې کوم پنځوس ګزه راسي. هغوی به یوولس (۱۱) حصې کول کیږي او له هغوی شخه به نهه (۹) حصې وارثانو او دوې (۲) حصې موصی لهٔ ته ورکول کیږي.

یعني پنځوس ګزه به پنځه پنځوس (۵۵) ګزه ګرځول کیږي، لس ګزه به د موصی لهٔ او پنځه شلوېښت ګزه به د وارثانو کیږي؛ ځکه ټوله خونه لس ګزه ده. لهذا دا لس ګزه به پر مذکوره طریقه موصی لهٔ ته ورکول کیږي.

تفصیل یې دا دی چې موصي ګواکي د موصی لهٔ لپاره د لسو ګزو وصیت کړی دی او ټوله کور سل ګزه دی، کله چې له سلو شخه لس ګزه ووځي، نو نیوي (۹۰) ګزه پاته سوه کوم چې د دواړو شریکانو (یعني د موصي او د هغه د ملګري) تر مینځ مشترک دي او د هر یوه حصه پنځه شلوېښت ګزه سوه، خو څرنګه چې د موصي د ملګري حصه نه سي کمول کېدای بلکې پوره به ورکول کیږي. نو ځکه هغه ته خو به خپل پنځوس ګزه ټوله ورکول کیږي، خو ما بقي پنځوسو ګزو ته چې کله د ولږ ثانو د پنځه شلوېښت ګزو او د موصی لهٔ د لسو ګزو په حساب سره وکتل سوه او هره حصه پنځه ګزه وه نو اصل به (۵۵) ګزه ګرځول کیږي چې ټوله یوولس حصې سي. او له هغه شخه د موصی لهٔ لپاره دوې حصې دي کوم چې لس ګزه کیږي.

**یادونه**: دلته مصنف رَحِمَهُ الله طول لا طائل اختیار کړی دی چې د هغه په وجه حساب ستونزمن سوی دی. لهذا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله پر مسلک د تقسیم غوره طریقه دا ده چې د موصي دا پنځوس ګزه به پر پنځو حصو تقسیم کړی سي چې له هغه شخه به موصی له ته یوه حصه یعني لس ګزه ورکول سي او ما بقي شلور حصې یعني شلوېښت ګزه به وارثانو ته ورکول سي. د شیخینو رَحِمَهُمَا

الله د مسلک لپاره همدا غوره طريقه ده. او پاته سو امام محمد رَحِمَهُ الله خو مجبوراً پر لسو حصو تقسيم کړی دی ځکه چي د هغه په نېز موصیٰ لهٗ ته نيمه خونه (نصف بيت) ورکول کيږي. لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پوره خونه هغه ته ورکول کيږي. نو ځکه دلته به پر پنځو حصو تقسيم کول کيږي. (زيلعي ج: ۶. ص: ۱۹۴)

## که په پورتنی مسئله کي د وصيت پر ځای اقرار وي نو څه حکم دی؟

وَلَوْكَانَ مَكَانَ الْوَصِيَّةِ إِقْرَارٌ او که چيري د وصيت پر ځای اقرار وي قِيْلَ: هُوَعَلَى الْخِلَافِ نو ويل سوي دي: چي دا [هم] پر اختلاف دي وَقِيْلَ: لَا خِلَافَ فِيْهِ لِمُحَمَّدٍ او ويل سوي دي: چي په دې کي د امام محمد رَحِمَهُ الله اختلاف نسته وَالْفَرْقُ لَهُ أَنَّ الْإِقْرَارَ بِمِلْكِ الْغَيْرِ صَحِيْحٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره وجه د فرق دا ده چي د بل چا د ملکيت اقرار کول صحيح دي حَتّٰى إِنَّ مَنْ أَقَرَّ بِمِلْكِ الْغَيْرِ لِغَيْرِهٖ همدا وجه ده چي که څوک له خپل ځان څخه بغير د يو چا لپاره د بل چا د ملکيت اقرار وکړي ثُمَّ مَلَكَهٗ بيا مُقِر د هغه مالک سي يُؤْمَرُ بِالتَّسْلِيْمِ إِلَى الْمُقَرِّلَهٗ نو مُقِر به مقر لهٗ ته په ورسپارولو سره امر کول کيږي [يعني مُقِر ته به حکم کول کيږي چي مُقربه و مُقر لهٗ ته وسپاره!] وَالْوَصِيَّةُ بِمِلْكِ الْغَيْرِ لَا تَصِحُّ او د بل چا د ملکيت وصيت کول صحيح نه دی حَتّٰى لَوْمَلَكَهٗ بِوَجْهٍ مِنَ الْوُجُوْهِ همداوجه ده چي که موصي په يو توګه د موصیٰ بهٖ مالک سي ثُمَّ مَاتَ بيا موصي مړ سي لَا تَصِحُّ وَصِيَّتُهٗ وَلَا تَنْفُذُ نو [بيا هم] د هغه وصيت نه صحيح کيږي او نه نافذيږي.

**اللغات:** ﴿يؤمر﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: امر کول، حکم ورته کول. ﴿تسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دي: ورسپارل. ورکول. ﴿مقر لهٗ﴾ د چا لپاره چي (د ملکيت) اقرار سوی وي. ﴿لا تنفذ﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: نافذېدل او جاري کېدل. پوره کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو کور د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو شريک د يو سړي مثلاً د خالد لپاره د يوې خوني اقرار وکړي. نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز مقر لهٗ (خالد) ته به ټوله خونه ورکول کيږي. او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې هکله دوه قوله نقل سوي دي: ① مقر لهٗ (خالد) ته به نيمه خونه ورکول کيږي، ② او دويم قول دا دی چي هغه په دې مسئله

کې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله سره دی او په دې کې د هغه اختلاف نسته؛ او د عدمِ اختلاف وجه دا ده چې د بل د چا د ملکیت اقرار صحیح دی، همدا وجه ده که یو سړی د بل چا د ملکیت (مثلاً د بل چا د آس) اقرار وکړي او بیا وروسته دا مُقِر سړی د مُقَر بِهٖ (آس) مالک سي، نو ده ته به حکم کول کیږي چې مقربهٖ (آس) مقرلهٗ ته وسپاره! ځکه چې د ده اقرار صحیح وو. او پاتـه سو وصیت د دې په خلاف دی ځکه د بل چا د ملکیت وصیت کول صحیح نه دي، همدا وجه ده کـه موصي وروسته د موصیٰ بهٖ مالک سي، نو بیا هم د هغه مخکینی وصیت نه صحیح کیږي او نه نافذیـږي، نو ځکه پـه وصیت او اقرار کې د امام محمد رَحِمَهُ الله رایه جلا، جلا ده.

## د بل چا د معیّن مال وصیت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى مِنْ مَالِ رَجُلٍ لِآخَرَ بِأَلْفٍ بِعَيْنِهٖ فرمایي: او څوک چې د یو سړي له مال څخه د بل چا لپاره د معیّنو زرو درهمو وصیت وکړي فَأَجَازَ صَاحِبُ الْمَالِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُوصِيْ بیا د مال مالک د موصي تر مرګ وروسته اجازه ورکړي فَإِنْ دَفَعَهٗ نو که هغه موصیٰ لهٗ ته مال ورکړي [یعني موصیٰ لهٗ ته هغه زر درهمه ورسپاري] فَهُوَ جَائِزٌ نو جائز دي وَلَهٗ: أَنْ يَمْنَعَ او هغه [د مال مالک ته] دا اختیار هم سته چې له ورکولو [ورسپارلو] څخه انکار وکړي لِأَنَّ هٰذَا تَبَرُّعٌ بِمَالِ الْغَيْرِ ځکه دا [د موصي فعل] د بل چا په مال سره تبرّع کول دي فَيَتَوَقَّفُ عَلٰى إِجَازَتِهٖ نو ځکه هغه به د مال د مالک پر اجازه موقوف وي وَإِذَا أَجَازَ او کله چې هغه اجازه ورکړي يَكُوْنُ تَبَرُّعًا مِنْهُ أَيْضًا نو دا به د هغه [صاحب المال] له طرفه هم تبرّع وي فَلَهٗ أَنْ يَمْتَنِعَ مِنَ التَّسْلِيْمِ نو ځکه د مال مالک [صاحب المال] ته دا حق سته چې له ورسپارولو څخه منع سي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصٰى بِالزِّيَادَةِ عَلَى الثُّلُثِ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي [د مال] پر دریمي حصې د زیات مقدار وصیت وکړي وَأَجَازَتِ الْوَرَثَةُ او وارثان اجازه ورکړي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ فِيْ مَخْرَجِهَا صَحِيْحَةٌ ځکه چې دا وصیت په خپل مخرج کې صحیح دی لِمُصَادَفَتِهَا مِلْكَ نَفْسِهٖ ځکه وصیت د هغه په خپل ملکیت کې واقع سوی دی وَالْاِمْتِنَاعُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او د وصیت منع کېدل د وارثانو د حق په وجه وه فَإِذَا أَجَازُوْهَا نو کله چې وارثانو اجازه

| |
|---|
| ورکړه سَقَطَ حَقُّهُمْ نو د هغو حق ساقط سو فَنَفَذَ مِنْ جِهَةِ الْمُوْصِيْ نو ځکه د موصي له طرفه دا وصیت نافذ سو. |

**اللغات**: ﴿دفع﴾ د فتح د باب ماضي ده. د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: ورکول او ورسپارل. اداء کول. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: احسان کول. بلا عوضه (مفت) شی ورکول. داسي کار کول کوم چي د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصیت. هبه او داسي نور. ﴿مصادفة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: لاحق کېدل او متصل کېدل. واقع کېدل. یو شی د بل شي سره مخامخ کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مثلاً د حامد مال د امانت په توګه د خالد سره پروت دی او خالد د حامد له اجازې بغیر د شاکر لپاره له دې مال څخه د زرو روپیو وصیت وکړی (چي زما تر مرګ وروسته دي له دغه مال څخه زر روپۍ شاکر ته ورکول سي). نو دا وصیت د مال د مالک یعني د حامد پر اجازه موقوف کېږي. نو که د موصي (خالد) تر مرګ وروسته مالک د هغه اجازه ورکړي او موصیٰ بهٖ یعني زر روپۍ موصیٰ لهٗ ته وسپاري او هغه قبضه پرې وکړي، نو دا وصیت صحیح او نافذېږي: ځکه د موصي دا فعل د هبې په درجه کي دی او د هبې د پوره کېدو لپاره پر موهوب شي د موهوب لهٗ قبضه کول ضروري دي (یعني هبه هغه وخت پوره نافذېږي کله چي موهوب لهٗ کس پر موهوب شي قبضه وکړي). نو همدغسي په مذکوره مسئله کي د وصیت د پوره کېدو لپاره پر موصیٰ بهٖ شي د موصیٰ لهٗ قبضه کول ضروري دي. او تر څو چي د مال مالک (حامد) موصیٰ لهٗ ته موصیٰ بهٖ ونه سپاري. تر هغه وخته مالک ته د وصیت ردولو او منع کولو پوره حق سته: ځکه چي دا د مالک (حامد) له مال څخه هبه ده. لهذا دا به د هغه پر اجازه موقوف وي او هغه ته به د اجازه ورکولو او نه ورکولو دواړو حق وي او کله چي هغه اجازه ورکړي. نو دا فعل به د هغه له طرفه هم تبرّع وي او خپله هغه ته به هم د دې ثواب حاصل سي.

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که خپله د مال مالک له خپل مال څخه تر دریمي حصې د زیات مال وصیت وکړي او وارثان اجازه ورکړي. نو صحیح دي: ځکه دلته وصیت له شروع څخه صحیح دی: ځکه موصي په خپل ملکیت کي وصیت کړی دی. لېکن څرنګه چي هغه د موصیٰ بهٖ مقدار زیات کړی دی او هغه زائد مقدار د وارثانو حق دی (ځکه سړي ته صرف د خپل مال په ثلث کي د وصیت حق سته). نو ځکه دا وصیت به د وارثانو پر اجازه موقوف وي او کله چي وارثان اجازه ورکړي. نو دا به صحیح وي: ځکه د دې منع کېدل د وارثانو د حق په وجه دي او په اجازه ورکولو سره وارثانو خپل دا حق ساقط کړی. نو ځکه اوس به صحیح کېږي.

## د میراث تر تقسیم وروسته که یو وارث د ثلث مال وصیت وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا اقْتَسَمَ الِابْنَانِ تَرِكَةَ الْأَبِ أَلْفًا فرمايي: او کله چي دوه ځامن د پلار میراث زر درهمه تقسیم کړي ثُمَّ أَقَرَّ أَحَدُهُمَا لِرَجُلٍ أَنَّ الْأَبَ أَوْصَى لَهُ بِثُلُثِ مَالِهِ بیا له دوی څخه یو ځوی د یو سړي لپاره [د مال] اقرار وکړي چي [زموږ] پلار د هغه لپاره د خپل مال د درېیمي حصې وصیت کړی وو فَإِنَّ الْمُقِرَّ يُعْطِيهِ ثُلُثَ مَا فِي يَدِهِ نو اقرار کونکی ځوی به هغه سړي [مقر لهٗ] ته د هغه مال ثلث ورکوي کوم چي د ده په قبضه کي دی وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ يُعْطِيَهُ نِصْفَ مَا فِي يَدِهِ او قیاس دا دی چي مُقر ځوی به د هغه مال نیمه حصه ورکوي کوم چي د ده په قبضه کي دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ إِقْرَارَهُ بِالثُّلُثِ لَهُ تَضَمَّنَ إِقْرَارَهُ بِمُسَاوَاتِهِ إِيَّاهُ ځکه د مُقر له طرفه د موصیٰ لهٗ لپاره د ثلث اقرار کول متضمن دي د ده اقرار کولو لره د خپل ځان سره د هغه [موصیٰ لهٗ] د مساوات [یعني مُقر چي د موصیٰ لهٗ لپاره د ثلث مال اقرار کړی دی. هغه دې خبري لره متضمن دی چي زما او د موصیٰ لهٗ [مُقر لهٗ] حصه سره مساوي او برابره ده] وَالتَّسْوِيَةُ فِي إِعْطَاءِ النِّصْفِ لِيَبْقَى لَهُ النِّصْفُ او برابري د نیمي حصې په ورکولو کي ده چي د مُقر لپاره نیمه حصه پاته سي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ أَقَرَّ لَهُ بِثُلُثٍ شَائِعٍ فِي التَّرِكَةِ د استحسان دلیل دا دی چي مُقر د داسي ثلث اقرار کړی دی کوم چي په میراث کي شائع دی وَهِيَ فِي أَيْدِيهِمَا او میراث د دوی دواړو [ځامنو] په قبضه کي دی فَيَكُونُ مُقِرًّا بِثُلُثِ مَا فِي يَدِهِ نو ځکه هغه [مُقر ځوی] به د خپل مقبوضه مال د ثلث اقرار کونکی وي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ أَحَدُهُمَا بِدَيْنٍ لِغَيْرِهِ په خلاف د هغه صورت کله چي له دوی څخه یو ځوی د بل چا لپاره د قرض اقرار وکړي لِأَنَّ الدَّيْنَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْمِيرَاثِ ځکه چي قرض پر میراث مخکي وي فَيَكُونُ مُقِرًّا بِتَقَدُّمِهِ نو ځکه هغه به د دې بل چا د مخکي کېدلو اقرار کونکی وي فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ نو ځکه هغه به پر مُقر ځوی [وارث] باندي مخکي کول کیږي.

**اللغات:** ﴿تضمّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: متضمن کېد. ضمناً شاملېدل. ﴿مُقِرّ﴾ د افعال د باب فاعل دی: اقرار کونکی. ﴿مساواة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: برابري. یو د بل سره برابرېدل.

﴿تسوية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: برابري کول، یو د بل سره برابرول. ﴿یُقدّم﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: مقدّم کول، مخکي کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د زید مثلاً دوه ځامن دي: خالد او حامد. بیا زید وفات سو او زر درهمه میراث یې پرېښوودی چي هغه دواړو ځامنو په خپل مینځ کي تقسیم کړی او تر تقسیم وروسته یوه ځوی وویل چي مرحوم پلار د فلانکي سړي مثلاً د شاکر لپاره د ثلث مال وصیت کړی وو، نو په دې صورت کي د استحسان تقاضا دا ده چي کوم ځوی د شاکر لپاره د وصیت اقرار کړی دی، هغه به له خپلي حصې (یعني له پنځو سوو درهمو) څخه یو ثلث مُقَرلهٗ (شاکر) ته ورکوي او کوم ځوی چي اقرار نه دی کړی، هغه بري الذمی دی یعني هغه به هیڅ هم نه ورکوي بلکي صرف مُقِر ځوی به یې ورکوي؛ ځکه قاعده دا ده چي کوم یو مُقِر وي، صرف هاغه په خپل اقرار کي مأخوذ کیږي او د یوه اقرار د بل په حق کي نه معتبر کیږي.

د قیاس تقاضا دا ده چي مُقِر ځوی به مُقَرلهٗ ته د خپلي حصې نصف مال (دوه نیم سوه درهمه) ورکوي، نه ثلث. همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی؛ دلیل یې دا دی چي د مُقِر له طرفه د مُقَرلهٗ لپاره د ثلث مال اقرار کول دې خبري لره متضمن دی چي د مُقَرلهٗ او د مُقِر حصه سره برابره ده او برابري په همغه صورت کي ثابتیږي کله چي مُقِر د خپلي حصې نصف (نیمه حصه) و مقر لهٗ ته ورکړي. لېکن دلته قیاس پرېښوول سوی دی او په استحسان عمل سوی دی؛ او د استحسان دلیل دا دی چي مُقِر د مقرلهٗ لپاره د داسي ثلث اقرار کړی دی کوم چي په ټوله میراث کي شائع دی او د پلار میراث د دواړو ځامنو په قبضه کي دی او یو ځوی د اقرار نه کولو په وجه بری الذمه دی. نو ځکه مُقِر ځوی به د خپلي حصې ثلث مُقَرلهٗ ته ورکوي.

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مُقِر ځوی د یو چا لپاره پر خپل پلار د لازم سوي قرض اقرار وکړي (چي زما په پلار باندي مثلاً د شاکر قرض باندي دی)، نو په دې صورت کي به د مُقِر له حصې څخه پوره قرض اداء کول کیږي که څه هم د مُقِر ټوله حصه په قرض کي ختمه سي؛ ځکه قرض پر میراث مخکي وي یعني قرضخواه (د قرض مالک) پر وارثانو (ځامنو او نورو) باندي مخکي کول کیږي یعني د مړي له میراث څخه تر ټولو مخکي د هغه قرض اداء کول کیږي. لهذا د یو سړي لپاره د قرض اقرار کول په حقیقت کي د دې خبري اقرار کول دي چي هغه سړی (مقرلهٗ) د مړي د میراث تر ټولو مخکي او زیات حقدار دی. نو ځکه د مړي په میراث کي به تر ټولو مخکي د هغه حق ورکول کیږي.

## مُوصیٰ لهٗ د وارثانو سره شریک کیږي

أَمَّا الْمُوْصٰى لَهٗ بِالثُّلُثِ شَرِيْكُ الْوَارِثِ او پاته سو هغه کس چي د هغه لپاره د ثلث وصیت سوی وي [هغه] د وارث شریک دی فَلَا يُسَلَّمُ لَهٗ شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَسْلَمَ لِلْوَرَثَةِ ثُلُثَاهُ نو هغه ته به هیڅ شی نه سپارل کیږي مګر [په هغه صورت کي] چي د وارثانو لپاره د میراث دوه ثلثه سالم پاته سي وَلِأَنَّهٗ لَوْ أَخَذَ مِنْهُ نِصْفَ مَا فِيْ يَدِهٖ او ځکه چي که هغه [موصیٰ لهٗ] له مُقر ځوی څخه د هغه د مقبوضه مال نصف واخلي فَرُبَّمَا يُقِرُّ الِابْنُ الْاٰخَرُ بِهٖ أَيْضًا نو کېدای سي چي دویم ځوی هم د هغه اقرار وکړي فَيَأْخُذُ نِصْفَ مَا فِيْ يَدِهٖ نو موصیٰ لهٗ به د هغه [دویم مُقر ځوی] د مقبوضه مال نصف هم اخلي فَيَصِيْرُ نِصْفَ التَّرِكَةِ نو هغه [اخیستل سوی مال] به نیم میراث وګرځي فَيُزَادُ عَلَى الثُّلُثِ نو هغه به تر ثلث زیات سي.

**اللغات:** ﴿موصٰی لهٗ﴾ د افعال د باب مفعول دی: د چا لپاره چي وصیت سوی وي. ﴿لا یُسلّم﴾ د تفعیل له بابه د نفي مضارع صیغه ده: ورسپارل. ورکول. ﴿يَسْلَمُ﴾ د سمع له بابه د مضارع صیغه ده: سالم پاتېدل، دیو چا لپاره یو شی مخصوص کېدل (خاص کېدل). ﴿التَّرِكَة﴾ (د راء په کسره سره) او التِرْکَة: مړی چي کوم مالونه پرېږدي هغه ته "ترکه" ویل کیږي. میراث. ﴿یزداد﴾ د افتعال د باب ماضي ده: زیاتېدل. اضافه کېدل.

**تشریح:** مخکي ذکر سوه چي که مُقر ځوی د یو چا لپاره د قرض اقرار کړی وي (یعني مقر لهٗ قرضخواه وي)، نو هغه به پر وارثانو مخکي کول کیږيْ، لېکن که د یو چا لپاره یې د ثلث مال وصیت کړی وي (یعني مقرلهٗ موصیٰ لهٗ وي)، نو په دې صورت کي به هغه پر وارثانو نه مخکي کول کیږي بلکي د وارثانو لپاره د دوو ثلثو تر پرېښودلو وروسته به هغه ته څه ورکول کیږي: ځکه موصیٰ لهٗ فقط د ثلث مال مستحق دی نو که چیري موږ هغه ته د مُقر ځوی له حصې څخه نصف (نیمه حصه) ورکړو او بیا د مړي دویم ځوی هم د هغه په حق کي اقرار وکړي او د هغه له حصې څخه هم نصف ورکول سي نو دا به تر ثلث زیات سي او نصف میراث به سي، حال دا چي د هغه حق فقط ثلث دی، نه نصف. نو ځکه موصیٰ لهٗ ته صرف تر ثلث المال پوري د مال ورکولو اجازه سته او هغه ته به تر ثلث زیات نه ورکول کیږي.

## د داسي مينځي وصيت کول کوم چي د موصي تر وفات وروسته بچی وزېږوي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِرَجُلٍ بِجَارِيَةٍ فرمايي: او څوک چي د يو سړي لپاره د يوې مينځي وصيت وکړي فَوَلَدَتْ بَعْدَ مَوْتِ الْمُوْصِيْ وَلَدًا بيا مينځه د موصي تر مرګ وروسته يو بچی وزېږوي وَكِلَاهُمَا يَخْرُجَانِ مِنَ الثُّلُثِ او دوی دواړه [مينځه او بچی] [د ميراث] له ثلث څخه وځي [يعني د دواړو قيمت دومره وي چي د ميراث له ثلث (دريمي حصې) څخه وځي يعني په ميراث کي له دوی څخه بغير دوه ثلثه يا تر دې زائد مال موجود وي] فَهُمَا لِلْمُوْصٰى لَهٗ نو [په دې صورت کي] دوی دواړه د موصیٰ لپاره دي لِأَنَّ الْأُمَّ دَخَلَتْ فِي الْوَصِيَّةِ أَصَالَةً وَالْوَلَدُ تَبَعًا ځکه مور اصالةً په وصيت کي داخله ده او بچی تبعاً [د مور د تابع په توګه] پکښي داخل دی حِيْنَ كَانَ مُتَّصِلًا بِالْأُمِّ ځکه چي هغه د مور سره متصل وو فَإِذَا وَلَدَتْ قَبْلَ الْقِسْمَةِ نو کله چي مينځي تر تقسيم مخکي بچی وزېږوي وَالتَّرِكَةُ قَبْلَهَا مُبْقَاةٌ عَلٰى مِلْكِ الْمَيِّتِ او ميراث تر تقسيم مخکي د مړي پر ملکيت باقي پاته وي حَتّٰى يُقْضٰى بِهَا دُيُوْنُهٗ همدا وجه ده چي له هغه څخه د مړي قرضونه اداء کول کيږي دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ نو بچی به [هم] په وصيت کي داخليږي فَيَكُوْنَانِ لِلْمُوْصٰى لَهٗ نو ځکه دوی دواړه [بچی او مينځه] به د موصیٰ لهٗ لپاره وي وَإِنْ لَمْ يَخْرُجَا مِنَ الثُّلُثِ او که دوی دواړه له ثلث څخه نه وځي ضَرَبَ بِالثُّلُثِ نو موصیٰ لهٗ به ثلث اخلي وَأَخَذَ مَا يَخُصُّهٗ مِنْهُمَا جَمِيْعًا او له دوی دواړو څخه به هغه مقدار اخلي کوم چي د ده سره خاص وي [يعني له دواړو څخه به نصف ثلث اخلي] فِيْ قَوْلِ أَبِيْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٍ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په قول کي وَقَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ ۞: يَأْخُذُ ذٰلِكَ مِنَ الْأُمِّ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي موصیٰ لهٗ به [اول] له مور څخه ثلث اخلي فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ بيا که څه مقدار پاته سي أَخَذَهٗ مِنَ الْوَلَدِ نو هغه به له بچي څخه اخلي.

**اللغات**: ﴿مُبْقَاةٌ﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: باقي ساتل سوی. باقي پاته کړی سوی. ﴿يُقْضٰى﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده. د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: اداء کول. ﴿فضل﴾ د نصر د باب ماضي ده: اضافه کېدل. زياتېدل. زائد پاتېدل.

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۳۷۹]

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که زید مثلاً د حامد لپاره د خپلې مینځې وصیت وکړی چې زما تر مرګ وروسته دې زما دا مینځه حامد ته ورکول سي. بیا د موصي (زید) تر مرګ وروسته مینځې بچی وزیږوی. نو تر ټولو مخکې به دې ته کتل کیږي چې د موصي (زید) په میراث کې له هغه مینځې او بچي څخه بغیر نور دوه ثلثه یا تر دې زائد مال سته که نه؟، که چیرې له دوی څخه بغیر د موصي په میراث کې دوه ثلثه مال وي. نو موصیٰ لهٗ ته به مینځه او بچی دواړه ورکول کیږي، ځکه مینځه اصالتاً په وصیت کې داخلیږي او بچی تبعاً داخلیږي؛ ځکه بچی د وصیت په وخت کې د مور سره متصل وو. لهذا د مور په متابعت کې به هغه هم په وصیت کې داخلیږي، او تر تقسیم مخکې د مړي میراث د مړي په ملکیت کې شمېرل کیږي، په همدې وجه له میراث څخه تر ټولو مخکې د مړي قرضونه اداء کول کیږي، نو ځکه تر وصیت وروسته پیدا کېدونکی بچی به هم د مړي په میراث کې شامل وي او د مور سره به په وصیت کې داخلیږي.

وإن لم یخرجا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که دا مور او بچی له دوو ثلثو څخه نه وځي یعني له دوی دواړو څخه بغیر د موصي په میراث کې دوه ثلثه یا تر دې زائد مال نه وي، نو په دې صورت کې به موصیٰ لهٗ د مینځې او بچي دواړو څخه ثلث اخلي یعني له هر یوه څخه به نیم ثلث اخلي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز موصیٰ لهٗ به اول خپل حق یعني ثلث له مینځې څخه اخلي او که په هغه سره ثلث پوره نه سي نو بیا به مابقی مقدار له بچي څخه اخلي. امام محمد رَحِمَهُ الله د دې یو مثال هم پېش کړی دی چې هغه به په را روان عبارت کې ذکر سي.

## د جامع الصغیر په مثال سره د پورتنی اختلافي مسئلې وضاحت

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ عَيَّنَ صُورَةً وَقَالَ او په جامع صغیر کې امام محمد رَحِمَهُ الله یو صورت متعین کړی دی او فرمایلي یې دي رَجُلٌ لَهُ سِتُّ مِائَةِ دِرْهَمٍ وَأَمَةٌ تُسَاوِي ثَلَاثَ مِائَةِ دِرْهَمٍ چې د یو سړي سره شپږ سوه درهمه او یوه مینځه ده چې د دریو سوو درهمو سره مساوي ده [یعني د مینځې مالیت درې سوه درهمه دی] فَأَوْصَى بِالْجَارِيَةِ لِرَجُلٍ ثُمَّ مَاتَ نو هغه د یو سړي لپاره د دې مینځې وصیت وکړی بیا موصي مړ سو فَوَلَدَتْ وَلَدًا يُسَاوِي ثَلَاثَ مِائَةِ دِرْهَمٍ قَبْلَ الْقِسْمَةِ بیا مینځې تر تقسیم مخکې یو بچی وزیږوی چې هغه د دریو سوو درهمو سره مساوي وو فَلِلْمُوصَى لَهُ الْأُمُّ وَثُلُثُ الْوَلَدِ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د موصیٰ لهٗ لپاره مور [مینځه] او د بچي ثلث [دریمه حصه]

ده وَعِنْدَهُمَا لَهُ ثُلُثَا كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د موصیٰ لهٔ لپاره له دواړو څخه د هر يوه دوه ثلثه دي.

**اللغات**: ﴿عيّن﴾ د تفعيل د باب ماضيده: معيّن کول. متعيّنول. ﴿جارية﴾ مينځه. ﴿موصیٰ لهٔ﴾ د افعال د باب مفعول دی: د چا لپاره چي وصيت سوی وي.

**تشريح**: په مخکنی مسئله کي چي د امام صاحب او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله تر مينځ کومه مختلف فيها مسئله بيان سوې ده. دلته د هغه مثال ذکر کوي چي د هغه تفصيل دا دی چي د يو سري سره مثلاً د زيد سره شپږ سوه درهمه او يوه مينځه ده چي د هغې ماليت درې سوه درهمه دی او زيد د خالد لپاره د هغه مينځي وصيت وکړی. بيا د موصي (زيد) تر مرګ وروسته او د ميراث تر تقسيم مخکي هغې مينځي يو بچی وزېږوی او د هغه بچي ماليت هم درې سوه درهمه دی. نو اوس د مړي (زيد) ټوله ميراث ۱۲۰۰ درهمه سو چي د هغه ثلث ۴۰۰ درهمه کيږي. نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز موصیٰ لهٔ (خالد) ته به مينځه ورکول کيږي چي د هغې ماليت درې سوه درهمه دی. خو څرنګه چي تر اوسه د موصیٰ لهٔ حق يعني ثلث (۴۰۰ درهمه) نه دي پوره سوي. نو ځکه بچي چي ماليت يې درې سوه درهمه دی د هغه يو ثلث (يعني سل درهمه) به ورکول کيږي چي دا ټوله به څلورمه درهمه سي کوم چي د مذکوره ميراث (يعني د ۱۲۰۰ درهمو) يو ثلث دی (ځکه د ۱۲۰۰ درهمو يو ثلث ۴۰۰ درهمه کيږي).

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز موصیٰ لهٔ ته به د مينځي او بچي دواړو دوه. دوه ثلثه ورکول کيږي او د دوی هر يوه دوه ثلثه دوه سوه درهمه کيږي. لهذا د دواړو دوه ثلثه څلور سوه درهمه دي کوم چي د مذکوره ميراث يو ثلث دی.

## په پورتنی مسئله کي د امامانو دلائل

لَهُمَا مَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْوَلَدَ دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ تَبَعًا حَالَةَ الِاتِّصَالِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی چي بچی [د مور] سره د متصل کېدلو په حالت کي په وصيت کي تبعاً داخل دی فَلَا يَخْرُجُ عَنْهَا بِالِانْفِصَالِ نو ځکه د منفصل کېدلو په وجه به بچی له وصيت څخه نه وځي كَمَا فِي الْبَيْعِ وَالْعِتْقِ لکه څرنګه چي په بيع او عتق کي دي فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِيهِمَا عَلَى السَّوَاءِ مِنْ غَيْرِ تَقْدِيمِ الْأُمِّ نو ځکه په دوی دواړو [مور او بچي] کي به په برابری سره وصيت نافذيږي بغير د مور له

مخکي کولو څخه وَلَهُ: أَنَّ الأُمَّ أَصْلٌ وَالْوَلَدُ تَبَعٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي مور اصل دی او بچی [د هغې] تابع دی وَالتَّبَعُ لَا يُزَاحِمُ الْأَصْلَ او تابع د اصل نه مزاحم کیږي فَلَوْ نَفَّذْنَا الْوَصِيَّةَ فِيهِمَا جَمِيعًا نو موږ که چیري په مور او بچي دواړو کي وصیت نافذ کړو تَنْتَقِضُ الْوَصِيَّةُ فِي بَعْضِ الْأَصْلِ نو د اصل [مور] په بعضي حصه کي به وصیت مات سي وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ او دا جائز نه دي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع لِأَنَّ تَنْفِيذَ الْبَيْعِ فِي التَّبَعِ لَا يُؤَدِّيْ إِلَىٰ نَقْضِهِ فِي الْأَصْلِ ځکه په تابع [بچي] کي د بیع نافذول په اصل [مور] کي د بیع ماتېدلو سبب نه ګرځي بَلْ يَبْقَىٰ تَامًّا صَحِيحًا فِيهِ بلکي په اصل [مور] کي بیع تام او صحیح پاتیږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يُقَابِلُهُ بَعْضُ الثَّمَنِ خو د اصل په مقابله کي د ثمن بعضي حصه نه سي راتللای ضَرُوْرَةَ مُقَابَلَتِهِ بِالْوَلَدِ د دې ضرورت په چي هغه [د ثمن بعضي حصه] د بچي په مقابله کي راځي إِذَا اتَّصَلَ بِهِ الْقَبْضُ کله چي د بچي سره قبضه متصله سي [د پوره جملې حاصل دا دی چي کله پر بچي قبضه وسي نو څرنګه چي د ثمن څه حصه د بچي په مقابله کي راغله. نو د اصل (مور) په مقابله کي چي کوم ثمن وو په هغه کي څه کمي راغله] وَلٰكِنَّ الثَّمَنَ تَابِعٌ فِي الْبَيْعِ لېکن په بیع کي ثمن تابع دی حَتّٰى يَنْعَقِدَ الْبَيْعُ بِدُوْنِ ذِكْرِهِ وَإِنْ كَانَ فَاسِدًا همدا وجه ده چي د ثمن له ذکر څخه بغیر هم بیع منعقد کیږي که څه هم هغه فاسده وي هٰذَا إِذَا وَلَدَتْ قَبْلَ الْقِسْمَةِ دا هغه وخت دي کله چي مینځي تر تقسیم مخکي بچی زېږولی وي فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ الْقِسْمَةِ لېکن که هغې تر تقسیم وروسته بچی زېږولی وي فَهُوَ لِلْمُوْصٰى لَهُ نو هغه بچی د موصیٰ لهٗ لپاره دی لِأَنَّهُ نَمَاءُ خَالِصِ مِلْكِهِ ځکه چي هغه بچی خالص د ده د ملکیت نما [وده] ده لِتَقَرُّرِ مِلْكِهِ فِيهِ بَعْدَ الْقِسْمَةِ ځکه چي تر تقسیم وروسته په هغه بچي کي د موصیٰ لهٗ ملکیت ثابت [او مستحکم] سو.

**اللغات**: ﴿اتصال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: متصل کېدل. جوختېدل. ﴿انفصال﴾ د انفعال د باب مصدر دی: جلا کېدل. بېلېدل. ﴿لا یزاحم﴾ د مفاعلې له بابه د نفي صیغه ده: مقابل کېدل. مقابله کول. ﴿نفذّنا﴾ د تفعیل له بابه د جمع متکلم ماضي صیغه ده: نافذول. جاري کول. ﴿نماء﴾ وده. اضافه و زیاتوب.

**تشریح**: په دې عبارت کې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د مخکنۍ مذکوره مسئلې په هکله د دواړو فریقو دلیلونه بیان کړي دي (او تېر د جامع صغیر عبارت د مذکوره مسئلې لپاره مثال وو). د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل حاصل دا دی چې بچی د وصیت په وخت کې د مور سره متصل دی او په وصیت کې داخل دی که څه هم تبعاً داخل دی. لهذا کله چې بچی د اتصال په حالت کې په وصیت کې داخل دی. نو د انفصال په حالت کې به له وصیت څخه نه ایستل کیږي. لکه څوک چې حامله مینځه رانیسي یا یې خرڅه کړي. نو ښکاره ده چې د مور سره بچی (حمل) هم په بیع کې داخلیږي. همدارنګه که څوک حامله مینځه آزاده کړي، نو د مور سره بچی هم آزادیږي او تر ولادت وروسته پر بچي د عبدیت او رقیّت حکم نه راګرځي (یعني بچی غلام نه ګرځي). نو همدغسې په مذکوره مسئله کې هم بچی کوم چې د وصیت په وخت کې د مور سره متصل وو. هغه به په وصیت کې داخل شمېرل کیږي، نه خارج. لهذا کله چې مور او بچی دواړه په وصیت کې داخلیږي نو موصیٰ لهٔ به له دواړو څخه خپل حق (ثلث) اخلي او مور به پر بچي نه مخکې کول کیږي یعني صرف له مور څخه به خپل حق یعني ثلث نه اخلي.

ولہ إن الأم إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې په وصیت کې مور اصل ده او بچی د هغې تابع دی او دا مُسلمه خبره ده چې تابع د اصل نه مزاحم کیږي. نو څکه په مذکوره مسئله کې به بچی په وصیت کې د خپل مور مزاحم او مقابل نه وي او وصیت به په اصل یعني په مور کې نافذیږي. څکه که د صاحبینو د مسلک په څېر موږ هم په مور او بچي دواړو کې وصیت نافذ کړو. نو بچی به د اصل یعني د مور مزاحم سي او د مور په بعضي حصه کې به وصیت باطل سي. حال دا چې په اصل کې وصیت باطلېدل خلاف اصول دي. نو څکه زموږ په نېز اولاً به په اصل یعني په مور

کي وصيت نافذيږي او که په هغه سره د موصیٰ لهٗ حق يعني ثلث پوره نه سي. نو بيا به ما بقي مقدار له بچي څخه اخيستل کيږي.

بخلاف البيع إلخ: په دې سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکول سوی دی. حاصل يې دا دی چي مذکوره مسئله د بيع پر مسئلې قياسول صحيح نه دي: ځکه د بيع په صورت کي چي په تابع (بچي) کي بيع نافذ کړی سی نو په اصل (مور) کي د بيع پر صحت او سالميت هيڅ اثر نه لوېږي او په اصل (مور) کي د مخکي په څېر بيع صحيح او سالمه پاتيږي ها! پر ثمن څه فرق لوېږي چي په تابع کي د بيع په نافذولو سره له اصل (مور) څخه څه ثمن کميږي او د تابع په مقابله کي هغه څه ثمن راځي، خو په ثمن کي د فرق راتللو په وجه پر بيع هيڅ اثر نه لوېږي: ځکه په بيع کي ثمن تابع وي او د ثمن له ذکر او تعيّن څخه بغير هم بيع منعقد کيږي که څه هم هغه فاسده بيع ګڼل کيږي. لېکن د بيع منعقد کېدل د دې خبري دليل دی چي په بيع کي ثمن تابع دی او په تابع کي په فرق راتللو سره په اصل بيع کي هيڅ فرق نه راځي. نو ځکه د وصيت مذکوره مسئله پر هغه قياسول صحيح نه دي: ځکه په مذکوره مسئله کي که مورږ په تابع (بچي) کي وصيت نافذ کړو. نو د اصل (مور) په وصيت کي به فرق راسي او د پوره مينځي پر ځای به صرف د هغې دوه ثلثه موصیٰ بهٖ وګرځي. نو ځکه د وصيت په مسئله کي مورږ په تابع کي د وصيت له تنفيذ او تصحيح څخه اجتناب کړی دی.

هذا إلخ: فرمايي چي مذکوره ټوله تفصيلات په هغه صورت کي دي کله چي مينځي (د موصي) د ميراث تر تقسيم مخکي بچی زېږولی وي (لکه په شروع کي چي ذکر سوه). لېکن که مينځي تر تقسيم وروسته بچی زېږولی وي. نو په دې صورت کي بلا شبهه هغه بچی د موصیٰ له کيږي او په دې کي هيڅ خبره او نزاع نسته: ځکه په دې صورت کي بچی خالص د موصیٰ لهٗ د ملکيت نماده نو خالص د هغه حق دی. ځکه تر تقسيم وروسته په بچي کي د موصیٰ لهٗ ملکيت مستحکم او مضبوط سو. نو ځکه اوس بل چا ته په هغه کي د څه لاس وهلو اجازه نسته. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِیْ اِعْتِبَارِ حَالَةِ الْوَصِیَّةِ

## (دا) فصل د وصیت د حالت په اعتبار کولو کي دی

**تشریح:** مخکي دا خبره ذکر سوه چي که وارثان د وصیت اجازه نه ورکړي، نو وصیت فقط په ثلث مال کي نافذیږي او له ثلث ځخه په زیات مقدار کي نه نافذیږي. او په دې فصل کي د دې احکام بیانول کیږي چي په وصیت کي د وصیت د ایجاب وخت معتبر دی او که د موصي د مرګ حالت معتبر دی. او څرنګه چي وصیت موصوف او متبوع دی او د هغه حالت تابع او صفت دی او صف له موصوف څخه مؤخر وي. نو د دې قاعدې په رعایت کولو سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله وصیت مخکي کړی دی او د هغه حالت یې وروسته بیان کړی دی.

### په مرضُ الموت کي د اجنبیه (پردی) ښځي لپاره د قرض اقرار کول یا د یو شي وصیت او هبه کول او بیا نکاح ورسره کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الْمَرِيضُ لِامْرَأَةٍ بِدَيْنٍ فرمایي: او کله چي مریض د یوې ښځي لپاره د قرض اقرار وکړي أَوْ أَوْصَى لَهَا بِشَيْءٍ یا د هغې لپاره د یو شي وصیت وکړي أَوْ وَهَبَ لَهَا یا هغې ته یو شی هبه کړي ثُمَّ تَزَوَّجَهَا ثُمَّ مَاتَ بیا مریض د هغې سره نکاح وکړي او بیا مریض مړ سي جَازَ الْإِقْرَارُ وَبَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ وَالْهِبَةُ نو اقرار جائز دی او وصیت او هبه باطله ده لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُلْزِمٌ بِنَفْسِهِ ځکه چي اقرار بذات خود لازمونکی دی وَهِيَ أَجْنَبِيَّةٌ عِنْدَ صُدُورِهِ او د اقرار صادرېدلو په وخت کي هغه ښځه اجنبیه [پردی] ده وَلِهَذَا يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ او په همدې وجه اقرار له ټوله مال ځخه معتبر کیږي وَلَا يَبْطُلُ بِالدَّيْنِ او د قرض په وجه اقرار نه باطلیږي إِذَا كَانَ فِي حَالَةِ الصِّحَّةِ أَوْ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ کله چي اقرار د صحت په حالت کي وي یا د مرض په حالت کي وي إِلَّا أَنَّ الثَّانِيَ يُؤَخَّرُ عَنْهُ خو دویم [د حالتِ مرض والا] به له اول [حالتِ صحت والا] ځخه وروسته کول کیږي بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ په خلاف د وصیت لِأَنَّهَا إِيجَابٌ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه وصیت د مرګ په وخت کي ایجاب دی [فی الحاله

ايجاب نه دی] وَهِيَ وَارِثَةٌ عِنْدَ ذٰلِكَ او دا ښځه [د مريض] د مرګ په وخت کې [د هغه] وارثه ده وَلَا وَصِيَّةَ لِلْوَارِثِ او د وارث لپاره وصيت نشته وَالْهِبَةُ وَإِنْ كَانَتْ مُنَجَّزَةً صُوْرَةً او [د مريض] هبه که څه هم د صورت په اعتبار سره منجزه وي فَهِيَ كَالْمُضَافِ إِلٰى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا خو هغه د حکم په اعتبار سره داسې وي لکه تر مرګ وروسته وخت ته مضاف [په لنډه وينا دا چې د مريض هبه حکماً د وصيت په درجه کې ده] لِأَنَّ حُكْمَهَا يَتَقَرَّرُ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه د هبې حکم تر مرګ وروسته ثابتيږي أَلَا تَرىٰ أَنَّهَا تَبْطُلُ بِالدَّيْنِ الْمُسْتَغْرِقِ آيا ته نه ګورې! چې د مستغرق قرض په وجه هبه باطليږي وَعِنْدَ عَدَمِ الدَّيْنِ تُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ او د قرض د نشتوالي په صورت کې هبه [د مال] له دريمي حصې څخه معتبره کيږي.

**اللغات**: ﴿ملزم﴾ د افعال د باب فاعل دی: لازمونکی. ﴿منجزة﴾ د افعال د باب له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: فوراً واقع کېدونکی (هغه شی کوم چې سمدستي واقع کيږي)، غير معلق. ﴿المستغرق﴾ د استفعال د باب مفعول دی: ډوب کړی سوی. دين مستغرق: هغه قرض چې ټوله ميراث ونيسي (د ټوله ميراث په اندازه وي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو مريض کس (مثلاً خالد) د يوې اجنبيه ښځي لپاره د څه مال اقرار وکړي، يا يې د هغې لپاره د يو شي وصيت وکړي، يا هغې ته يې يو شی هبه کړي: بيا يې د هغې سره نکاح وکړه او تر دې وروسته مريض (خالد) وفات سو. نو د مذکوره ښځي په حق کې صرف د هغه اقرار صحيح کيږي او هبه او وصيت دواړه شيان باطليږي. د اقرار د صحت دليل دا دی چې اقرار بذات خود مُلزم يعني په مُقِر (خالد) باندي د مال لازمونکی دی او د الزوم علی الفور دی او تر مرګ وروسته وخت ته مضاف نه دی، او ښکاره ده چې په کوم وخت کې هغه مريض (خالد) اقرار کړی دی. په هغه وخت کې هغه د مقرلها ښځي سره نکاح نه ده کړې او هغه ښځه اجنبيه وه او د اجنبيه ښځي لپاره اقرار صحيح دی، نو ځکه دا اقرار صحيح دی او د مُقِر له ټوله مال څخه معتبر دی.

او که پر دغه مړ سوي مُقِر (خالد) قرض باندي وي، نو د قرض په وجه دا اقرار نه باطليږي، برابره ده د حالت صحت وي او که د حالت مرض وي په هر صورت کې اقرار صحيح دی. خو د حالت صحت والا قرض به د حالت مرض والا پر قرض مخکي کول کيږي.

بخلاف الوصية إلخ: په مذکوره مسئله کې وصيت ځکه باطل دی چې په وصيت کې کوم تمليک کيږي هغه ما بعد الموت وخت ته مضاف وي (يا په بله وينا دا چې وصيت والا د موصي تر مرګ وروسته د

موصی به مالک کیږي). او دلته ما بعد الموت او عند الموت هغه ښځه د موصي (خالد) منکوحه ښځه ده او د هغه وارثه ده. او د وارث لپاره وصیت جائز نه دی. نو ځکه په مذکوره مسئله کي وصیت باطل دی.
او د وصیت سره هبه هم باطله ده: ځکه دا د مرض الموت والا مریض هبه ده او د مرض الموت د مریض هبه که څه هم صورتاً او ظاهراً منجزه (فی الحاله واقع کېدونکې) وي. لیکن د حکم او معنیٰ په اعتبار سره هغه ما بعد الموت ته مضاف کیږي او د وصیت په درجه کي وي، ځکه چي د هغې استحکام او تقرر د مرګ په وخت کیږي، همدا وجه ده چي که پر مړي محیط قرض باندي وي. نو هبه باطلیږي او که قرض نه وي. نو د وصیت په شپږ هبه هم له ثلث مال څخه نافذیږي. نو ځکه په دې حواله سره هبه د وصیت په درجه کي ده او د مذکوره ښځي لپاره وصیت باطل دی. نو ځکه هبه به هم باطلیږي.

**که په مرضُ الموت کي د کافر ځوی لپاره د قرض اقرار یا هبه او وصیت وکړي (حکم او تفصیل)**

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الْمَرِيضُ لِابْنِهِ بِدَيْنٍ فرمايي: او کله چي مریض د خپل ځوی لپاره د قرض اقرار وکړي وَابْنُهُ نَصْرَانِيٌّ حال دا چي د هغه ځوی نصراني وي أَوْ وَهَبَ لَهُ یا د هغه [نصراني ځوی] لپاره هبه وکړي أَوْ أَوْصَى لَهُ یا د هغه لپاره وصیت وکړي فَأَسْلَمَ الِابْنُ قَبْلَ مَوْتِهِ بیا ځوی د ده تر مرګ مخکي اسلام راوړي بَطَلَ ذَلِكَ كُلُّهُ نو دا ټوله باطلیږي أَمَّا الْهِبَةُ وَالْوَصِيَّةُ فَلِمَا قُلْنَا إِنَّهُ وَارِثٌ عِنْدَ الْمَوْتِ کوم چي هبه او وصیت دی نو د هغه دلیل په وجه [باطلیږي] کوم چي موږ ذکر کړی چي ځوی [د اسلام راوړلو] په وجه [د پلار] د مرګ په وخت کي وارث دی وَهُمَا إِيجَابَانِ عِنْدَهُ أَوْ بَعْدَهُ او هبه او وصیت د مرګ په وخت کي یا تر مرګ وروسته ایجابونه دي وَالْإِقْرَارُ وَإِنْ كَانَ مُلْزِمًا بِنَفْسِهِ او اقرار که څه هم بذاتِ خود لازمونکی دی وَلَكِنَّ سَبَبَ الْإِرْثِ وَهُوَ الْبُنُوَّةُ قَائِمٌ وَقْتَ الْإِقْرَارِ لیکن د ارث [وارث کېدلو] سبب یعني بنوّت [ځوی والی] د اقرار په وخت کي موجود دی فَيُعْتَبَرُ فِي إِيرَاثِ تُهْمَةِ الْإِيثَارِ نو [د ارث د سبب] اعتبار به کول کیږي د ایثار په تهمت پیدا کولو کي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنی مسئلې [یعني چي مریض د یوې ښځي لپاره اقرار وکړي بیا د هغې سره نکاح وکړي. نو اقرار نه باطلیږي] لِأَنَّ سَبَبَ الْإِرْثِ الزَّوْجِيَّةُ ځکه چي [هلته] د ارث سبب زوجیت [نکاح کول] دي وَهِيَ طَارِئَةٌ او زوجیت [هلته] وروسته واقع کېدونکی دی [یعني د اقرار په وخت کي د سړي او ښځي تر مینځ نکاح نه وه] حَتَّى لَوْ كَانَتِ الزَّوْجِيَّةُ قَائِمَةً وَقْتَ الْإِقْرَارِ تر دې چي که د اقرار په وخت کي زوجیت موجو

وي وَهِيَ نَصْرَانِيَّةٌ حال دا چي هغه ښځه نصرانيه وي ثُمَّ أَسْلَمَتْ قَبْلَ مَوْتِهِ بیا هغه د مُقر خاوند تر مرګ مخکي اسلام راوړي لَا يَصِحُّ الْإِقْرَارُ نو اقرار نه صحيح کیږي لِقِيَامِ السَّبَبِ حَالَ صُدُوْرِهِ ځکه دا اقرار صادرېدلو په حالت کي د وارث سبب قائم (موجود) دی.

**اللغات**: ﴿أسلم﴾ د افعال د باب ماضي ده: اسلام راوړل، مسلمان کېدل. ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول، ثابتول. ﴿بنوة﴾ ځوی والی (زوی والی)، زوی کېدل. ﴿زوجية﴾ زواج، سړی او ښځه سره یو ځای کېدل (یو د بل خاوند او ښځه کېدل)، واده، نکاح.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي مثلاً زید په مرض الموت مبتلا دی او د هغه یو ځوی دی کوم چي نصراني دی. هغه د خپل ځوی لپاره د قرض اقرار وکړی، یا هغه ته یې یو شی هبه کړی، یا د هغه لپاره یې د یو شي وصیت وکړی. او د پلار (خالد) تر مرګ مخکي د هغه نصراني ځوی مسلمان سو. نو ځرنګه چي اوس هغه ځوی د خپل پلار وارث سوی دی. نو ځکه اوس د هغه په حق کي د پلار اقرار، هبه او وصیت ټوله باطل دي؛ د هبې او وصیت د باطلېدلو دلیل خو هغه مخکینی دی چي تر مرګ مخکي د اسلام راوړلو په وجه دا نصراني ځوی د خپل پلار وارث وګرځېدی. نو ځکه د "لا وصية للوارث" په روی سره د هغه په حق کي وصیت او هبه دواړه باطل دي. "وهما إيجابان عنده أو بعده" یعني وصیت او هبه دواړه په یوه درجه کي دي چي په دواړو کي داسي ایجاب کیږي چي په هغه کي تملیک د مرګ په وخت کي یا تر مرګ وروسته ثابتیږي، دلته صاحب د کتاب رَحِمَهُ اللہ د "تمليك مضاف إلى زوال الأهلية" په لحاظ سره "عِنْدَهُ" (عند الموت) ویلي دي او د "التركة مبقاء على ملك الميت بعد الموت" په لحاظ سره یې "أو بَعْدَهُ" ویلي دي.

والإقرار إلخ: په مخکنۍ مسئله کي د خاوند له طرفه د ښځي په حق کي اقرار معتبر او صحيح وو، لیکن د دغه ځوی په حق کي اقرار هم باطل دی؛ د دې وجه دا ده چي ځوی ته کوم میراث حاصلیږي. هغه د ځوی د مسلمان کېدلو په وجه نه ورته حاصلیږي، بلکي په دې وجه ورته حاصلیږي چي د هغه د مورث (خالد) ځوی دی او د اقرار په وخت کي هم هغه د مورث ځوی وو، او په هغه وخت کي مورث د ځوی په حق کي په اقرار کولو سره ځوی ته پر خپلو نورو وارثانو ترجیح ورکول غواړي. نو ځکه د دې ترجیح (ایثار) د تهمت ختمولو لپاره د دغه ځوی په حق کي اقرار هم باطل ګرځول سوی دی.

د دې په خلاف په مخکنۍ مسئله کې د ښځې په حق کې د مُقر اقرار صحیح دی: ځکه د اقرار په وخت کې هغه ښځه اجنبیه ده او اوس هغه د نکاح په وجه د خپل خاوند وارثه ګرځیدلې ده او د اقرار په وخت کې نکاح او زوجیت معدوم وو. همدا وجه ده که دا ښځه د اقرار په وخت کې د مقر ښځه وي که څه هم نصرانیه وي او وروسته مسلمانه سي. نو د هغې په حق کې هم اقرار باطلیږي. ځکه چې اوس د هغې په حق کې سبب ارث (د وارث کیدلو سبب) او د ترجیح تهمت موجود دی.

## د غلام یا مکاتب خپل لپاره د اقرار، هبې او د وصیت کولو حکم او تفصیل

وَكَذَا لَوْكَانَ الِابْنُ عَبْدًا أَوْ مُكَاتَبًا فَأُعْتِقَ او همدارنګه که چیري خپل غلام یا مکاتب وي بیا هغه آزاد کړی سي [نو په دې صورت کې هم اقرار. وصیت او هبه باطلیږي] لِمَا ذَكَرْنَا د هاغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَذُكِرَ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ او [د مبسوط] په کتاب الاقرار کې ذکر سوي دي إِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ که چیري پر غلام قرض نه وي يَصِحُّ نو اقرار صحیح کیږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ لِمَوْلَاهُ وَهُوَ أَجْنَبِيٌّ ځکه [په دې صورت کې] مُقر د غلام د مالک لپاره اقرار کړی دی او مالک اجنبي دی وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ او که پر غلام قرض وي لَا يَصِحُّ نو اقرار نه صحیح کیږي لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ لَهُ وَهُوَ ابْنُهُ ځکه [په دې صورت کې] اقرار د غلام لپاره اقرار دی [نه د هغه د مالک لپاره] او غلام د مُقر ځوی دی وَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِيهَا وَقْتُ الْمَوْتِ او وصیت د هغه دلیل په وجه باطل دی کوم چې موږ ذکر کړی چې په وصیت کې د مرګ وخت معتبر دی وَأَمَّا الْهِبَةُ فَيُرْوَى أَنَّهَا تَصِحُّ او کوم چې هبه ده نو روایت سوی دی [یعني یو روایت دا دی] چې دا هبه صحیح کیږي لِأَنَّهَا تَمْلِيكٌ فِي الْحَالِ ځکه هغه في الحاله تملیک [مالک جوړول] دی وَهُوَ رَقِيقٌ او [في الحاله] هغه غلام دی وَفِي عَامَّةِ الرِّوَايَاتِ هِيَ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ او په عام روایت کې دي چې په مرض الموت کې هبه د وصیت په درجه کې ده فَلَا تَصِحُّ نو ځکه دا هبه نه صحیح کیږي.

**اللغات:** ﴿یُروىٰ﴾ د ضرب له بابه مضارع مجهوله ده: روایت کېدل. نقل کېدل. ﴿تملیك﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مالک جوړول. مالک کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي ځوی غلام وي یا مکاتب وي او پلار د هغه لپاره اقرار یا هبه یا وصیت وکړي او بیا هغه ځوی آزاد کړی سی، نو د هغه په حق کې هم دا ټوله باطلیږي:

ځکه د اقرار په وخت کي سبب ارث یعني بنوّت (ځوی والی) موجود دی. په "لما ذکرنا" سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله همدې دلیل او علت ته اشاره کړې ده

وذکر فی کتاب الإقرار إلخ: د دې حاصل دا دی چي د جامع صغیر له عبارت څخه خو همدا معلومیږي چي په مذکوره صورت کي د اقرار، وصیت او هبې ټولو حکم برابر دی یعني ټوله باطل دي. لیکن د مبسوط په کتاب الاقرار کي دي چي که پر غلام ځوی قرض باندي نه وي. نو بیا اقرار صحیح کیږي: ځکه دا اقرار به د غلام لپاره نه وي. بلکي د هغه د مالک لپاره به وي او مالک اجنبي دی.

او که چیري پر هغه قرض باندي وي نو بیا اقرار نه صحیح کیږي: ځکه دا اقرار به د مالک لپاره نه وي. بلکي د غلام لپاره به وي او غلام د مقر ځوی دی او د ځوی لپاره اقرار صحیح نه دی.

والوصیة إلخ: یعني د غلام او مکاتب ځوی لپاره وصیت ځکه باطل دی چي په وصیت کي د مرګ وخت لره اعتبار وي او د مرګ په وخت کي موصی لهٗ (غلام وغیره) د آزاد کېدلو په وجه د موصي وارث دی. نو ځکه د هغه په حق کي وصیت باطل دی.

او د هبې په باره کي دوه روایتونه نقل سوي دي: ① یو دا چي د غلام او مکاتب ځوی لپاره هبه جائز ده: ځکه په هبه کي تملیک فی الحاله کیږي (یعني موهوب لهٗ کس فی الحاله د موهوب شي مالک کول کیږي)، او څرنګه چي دلته فی الحاله موهوب لهٗ غلام دی او د واهب وارث نه دی، نو ځکه د هغه په حق کي هبه صحیح ده. ② دویم روایت دا دی چي د هغه په حق کي هبه هم صحیح نه ده: ځکه دا د مرضُ الموت هبه ده او د مرضُ الموت هبه د وصیت په درجه کي وي. حال دا چي د غلام یا مکاتب ځوی په حق کي د پلار وصیت باطل دی. نو ځکه د هغه هبه به هم باطله وي. همدا عام روایت دی.

## د شل وشوټ او د فالج او سِل ناروغی والا د هبې حکم او د مرضُ الموت وضاحت

قَالَ: وَالْمُقْعَدُ فرمایي: او شل وشوټ [کوم چي پر ولاړ پېدلو قدرت نه لري] وَالْمَفْلُوْجُ او فالج وهلی وَالْأَشَلُّ او په لاس شل وَالْمَسْلُوْلُ او سِل وهلی [چي سږي یې خراب وي] إِذَا تَطَاوَلَ ذٰلِكَ کله چي دا مرض اوږد سي [ومدة التطاول مقدرة بالسنة] وَلَمْ يُخَفْ مِنْهُ الْمَوْتُ او له هغه څخه د مرګ بېره نه وي فَهِبَتُهُ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ نو د داسي کس هبه له ټوله مال څخه [معتبره] ده لِأَنَّهٗ إِذَا تَقَادَمَ الْعَهْدُ ځکه کله چي زمانه پخوانی سي [یعني زیات وخت تېر سي] صَارَ طَبْعًا مِنْ طِبَاعِهٖ نو دا مرض د هغه له

طبيعتونو څخه يو طبيعت وګرځي وَلِهٰذَا لَا يَشْتَغِلُ بِالتَّدَاوِيْ په همدې وجه هغه په علاج کولو نه مشغولیږي وَلَوْصَارَ صَاحِبَ فِرَاشٍ بَعْدَ ذٰلِكَ او که هغه تر دې وروسته د بستر خاوند (بستري) وګرځي فَهُوَ كَمَرَضٍ حَادِثٍ نو دا د نوي مرض په څېر دی.

**اللغات:** ﴿مُقعد﴾ پر کونه ناست. شل وشوټ. کوم چې پر ولاړېدو قدرت نه لري. ﴿مفلوج﴾ د فالج په مرض مبتلا کس. فلج وهلی. چې د بدن یوه حصه او یو طرف بې حسه او بې حرکته وي (حاشیه. معجم الوسیط). ﴿أشل﴾ شل. چې لاس یا بل اندام یې بې حسه او بې حرکته وي چې هیڅ کار او حرکت نه کوي. ﴿مسلول﴾ سل وهلی. د سل په مرض مبتلا کس. او سل هغه مرض دی چې د انسان سږي پکښې خراب سي کوم چې انسان ډېر ضعیفه کوي آن تر دې چې هغه وژني. السِّل: مرض يُصِيب الرئة يهزل صَاحبه ويفنيه ويقتله (معجم الوسیط). ﴿تطاول﴾ د تفاعل د باب ماضي ده. د دې باب له معناو څخه يوه معنیٰ ده: اوږد عمر والا کېدل. پر یو شي ډېر وخت تېرېدل. زیات وخت کېدل. ﴿التداوي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: دوایي او درملنه کول. علاج کول. ﴿صاحب فراش﴾ د بستر خاوند. بستري. هغه کس چې مرض او تکلیف یې دومره سخت سي چې له ولاړي څخه یې وباسي او هغه بستر لازم ونیسي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که یو څوک شل وشوټ وي چې پر ولاړېدلو قادر نه وي. یا د فالج په مرض اخته وي، یا په لاسونو شل وي، یا سل وهلی وي (یعني سږي یې خراب سوي وي) او د دې یې ډېر وخت کیږي (چې کم از کم یو کال یې کیږي) لیکن له هغه څخه د مرګ خطر نه وي، نو داسې مرضونه مرضُ الموت نه شمېرل کیږي (ځکه مرضُ الموت هغه دی چې له هغه څخه د مرګ او هلاکت بېره غالب وي). لهذا که داسې کس د یو چا لپاره هبه وکړي، نو د هغه هبه له ټوله مال څخه نافذیږي؛ ځکه داسې کس روغ شمېرل کیږي. ځکه کله چې د دې مرضونو ډېر وخت وسي. نو بیا مریض د هغه په زغملو عادت سي او هغه د ده لپاره طبعي شی وګرځي. په همدې وجه مریض یې په علاج و معالجه پروا نه کوي. لهذا د هغه تصرف به له ټوله مال څخه معتبر وي. او که تر دې مرض وروسته هغه کس صاحب فراش وګرځي او بستره لازم ونیسي. نو بیا دا نوی مرض شمېرل کیږي او په دې وخت کې د هغه تصرف فقط له ثلث المال څخه معتبر کیږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَاِنْ وَهَبَ عِنْدَ مَا أَصَابَهُ ذٰلِكَ وَمَاتَ مِنْ أَيَّامِهِ او كه چيري مريض هبه وكړي په هغه وخت كي [كله] چي په دې مرضونو مبتلا وي او [بيا] په هاغه ورځو كي مړ سي فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ إِذَا صَارَ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو دا هبه له درېيمي حصې څخه [معتبره] ده كله چي هغه د بستر خاوند [بستري] گرځېدلی وي لِأَنَّهُ يُخَافُ مِنْهُ الْمَوْتُ ځكه چي له دې څخه د مرگ بېره سته وَلِهٰذَا يَتَدَاوٰى په همدې وجه هغه علاج كوي فَيَكُوْنُ مَرَضَ الْمَوْتِ نو دا به د مرگ مرض وي.

**اللغات:** ﴿أصاب﴾ د افعال د باب ماضي ده: د دې باب ډېري معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: رسېدل (يو ځا ته مرض وغيره رسېدل)، لگېدل، واردېدل، رسول. ﴿صاحب﴾ د تېر عبارت په لغاتو كي د دې وضاحت وسو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه څوک په مخكيني مرضونو مبتلا وي يعني شل وشوټ وي يا د فالج او سِل په مرض مبتلا وي...او په دې حالت كي يو ځا ته يو شی هبه كړي او بيا مړ سي. نو كه چيري هغه د دې مرضونو په دوران كي صاحب فراش گرځېدلی وي او بيا مړ سوی وي. نو دا مرض الموت شمېرل كيږي او د هغه هبه له ثلث المال څخه نافذيږي؛ ځكه د صاحب فراش كېدلو په وجه د مرگ خطره له همدې مرض څخه ده. له همدې كبله د صاحب فراش كېدلو په حالت كي انسان په علاج او درملنه مشغوليږي، نو ځكه دا مرض الموت شمېرل سوی دی. او په مرض الموت كي د انسان تصرّف فقط په ثلث كي معتبر كيږي. نو ځكه د دغه كس تصرّف به هم صرف په ثلث المال كي معتبر وي.



# بَابُ الْعِتْقِ فِيْ مَرَضِ الْمَوْتِ

(دا) باب د مرګ په مرض کي د (غلام) آزادولو (په بیان کي) دی

**تشریح**: څرنګه چي په مرضُ الموت کي آزادول د وصیت په درجه کي دي: ځکه آزادونکی (مُعتِق) په داسي زمانه کي تبرّع کوي چي د هغه د مال (میراث) سره د وارثانو حق متعلق سوی دی، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دا باب په کتابُ الوصایا کي بیان کړي دي، خو څرنګه چي صریح وصیت اصل دی او عتق یې فرع دی، نو ځکه له صریح وصیت څخه یې هغه مؤخّر کړی دی.

**په مرضُ الموت کي غلام آزادول یا بیع محاباة کول یا هبه کول (حکم او تفصیل)**

قَالَ: وَمَنْ أَعْتَقَ فِيْ مَرَضِهِ عَبْدًا فرمایي: او څوک چي په خپل مرض کي یو غلام آزاد کړي أَوْ بَاعَ وَحَابَى یا [دیو کس سره] بیع وکړي او [په بیع کي] محاباة وکړي أَوْ وَهَبَ یا هبه وکړي فَذٰلِكَ كُلُّهُ جَائِزٌ نو دا ټوله جائز دي وَهُوَ مُعْتَبَرٌ مِنَ الثُّلُثِ او دا له ثلث [د مال له دریمي حصې] څخه معتبر دي وَيُضْرَبُ بِهِ مَعَ أَصْحَابِ الْوَصَايَا او هغه کس به د وصیتونو والا سره په ثلث کي شریک کیږي وَفِيْ بَعْضِ النُّسَخِ: فَهُوَ وَصِيَّةٌ مَكَانَ قَوْلِهِ جَائِزٌ او په ځیني نسخو کي د "جائز" پر ځای "فهو وصيّةٌ" دي وَالْمُرَادُ الِاعْتِبَارُ مِنَ الثُّلُثِ وَالضَّرْبُ مَعَ أَصْحَابِ الْوَصَايَا او له دې څخه مراد له ثلث څخه معتبر کېدل او د وصیتونو والا سره شریک کېدل دي لَا حَقِيقَةُ الْوَصِيَّةِ نه حقیقي وصیت [یعني له دې څخه اصلي وصیت مراد نه دی] لِأَنَّهَا إِيجَابٌ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه وصیت تر مرګ وروسته [واقع کېدونکی] إیجاب دی وَهٰذَا مُنَجَّزٌ غَيْرُ مُضَافٍ او دا [تصرف یعني اعتاق وغیره] سمدستي واقع کېدونکی دي کوم چي [د مرګ وطرف ته] مضاف نه دي وَاعْتِبَارُهُ مِنَ الثُّلُثِ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْوَرَثَةِ او دا له ثلث څخه معتبر دی د وارثانو د حق متعلق کېدلو په وجه.

**اللغات**: ﴿أعتق﴾ د افعال د باب ماضي ده: آزادول. ﴿حابٰی﴾ محاباة کول. د محاباة څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول. یو څوک په مال سره خاصول. دیو چا سره په ثمن یا مبیع کي دېر بښه کول.

يعني بائع (دوکاندار) ته پر ارزانه شي ډېر قيمت ورکول. يا يو شی په ډېر کم (ارزانه) قيمت سره خرڅول. دلته همدا آخري معنیٰ مراد ده: په ډېر ارزانه قيمت سره خرڅول. ﴿منجّز﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: فوراً واقع کېدونکی. غير معلق. غير مشروط.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک په مرضُ الموت کي خپل غلام آزاد کړي. يا په مرضُ الموت کي د يو چا سره بيع وکړي او په بيع کي محاباة ورسره وکړي مثلاً د پنځو زرو روپو شی په پنځه سوه روپۍ ورکړي. يا په مرضُ الموت کي يو چا ته هبه وکړي. نو دا هر تصرف صحيح او جائز دی او هغه به د مال (ميراث) له ثلث څخه نافذيږي او د کوم چا لپاره چي يې دا تصرف کړی دی (يعني آزادېدونکی غلام. مشتري. موهوب لهٗ ). هغوی په همدې ثُلث المال کي د اصحاب الوصايا سره شريک کيږي (يعني د کومو کسانو لپاره چي مريض وصيتونه کړي وي. د هغو سره په ثلث کي شريکان کيږي).

(خو د دې مطلب دا نه دی چي دوی د اصحابُ الوصايا سره برابر شريکان کيږي: لأن العتق المنفذ في المرض مقدم على الوصية بالمال في الثلث).

**وفي بعض النسخ إلخ**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قدوري په بعضي نسخو کي د "فذلك کله جائز" پر ځای د "فهو وصيّة" عبارت درج دی او د دواړو مطلب يو دی يعني د مريض دا تصرفات جائز دي او د وصيت په څېر به له ثلث المال څخه هغوی نافذيږي.

**والضرب إلخ**: فرمايي چي دلته کوم څه ويل سوي دي چي موهوب لهٗ يا مشتري وغيره د اصحاب الوصايا سره شريک کيږي يا فهو وصية. د هغه مطلب دا نه دی چي مذکوره تصرف وصيت دی: ځکه وصيت داسي تمليک دی کوم چي تر مرګ وروسته وخت ته مضاف کيږي. حال دا چي هبه او بيع سملستي نافذېدونکي تصرفات دي، نو ځکه د فهو وصية مطلب دی: فهو کالوصية باعتبار النفاذ من ثلث المال، يعني په ثلث المال کي د نافذېدلو په اعتبار سره هغه د وصيت په څېر دی (چي دواړه له ثلث المال څخه نافذيږي). او له ثلث المال څخه د هغه د نافذېدلو وجه دا ده چي په مرضِ الموت کي د مريض د مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي، او د کوم مال سره چي د وارثانو حق متعلق کيږي. په هغه کي مالک صرف له ثلث المال څخه تبرّع کولای سي.

## د مرض الموت د تصرفاتو حکم

وَكَذٰلِكَ مَا ابْتَدَأَ الْمَرِيْضُ إِيْجَابَهُ عَلٰى نَفْسِهِ او همدارنګه هر هغه تصرف چي مريض پر خپل ځان د هغه د واجبولو ابتداء کړې وي كَالضَّمَانِ وَالْكَفَالَةِ لکه ضمان او کفاله فِيْ حُكْمِ الْوَصِيَّةِ [نو منه تصرف] د وصيت په حکم کي دی لِأَنَّهُ يُتَّهَمُ فِيْهِ كَمَا فِي الْهِبَةِ ځکه چي هغه په دې کي [داسي] متهم کيږي لکه څرنګه چي [په هبه کي متهم کيږي] وَكُلُّ مَا أَوْجَبَهُ بَعْدَ الْمَوْتِ او هر هغه عقد کوم چي مريض تر مرګ وروسته واجب کړی وي فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ نو هغه له ثلث څخه [معتبر] دی وَإِنْ أَوْجَبَهُ فِيْ حَالِ صِحَّتِهِ که څه هم د خپل صحت په حالت کي يې د هغه ايجاب کړی وي اِعْتِبَارًا بِحَالَةِ الْإِضَافَةِ دُوْنَ حَالَةِ الْعَقْدِ د اضافت د حالت په اعتبار کولو سره، نه د عقد د حالت په اعتبار کولو سره وَمَا نَفَّذَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ او مريض چي کوم تصرف نافذ کړی وي فَالْمُعْتَبَرُ فِيْهِ حَالَةُ الْعَقْدِ نو معتبر په هغه کي د عقد حالت دی فَإِنْ كَانَ صَحِيْحًا نو که [د عقد په حالت کي] هغه روغ رمټ وي فَهُوَ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ نو د هغه تصرف له ټوله مال څخه [معتبر] دی وَإِنْ كَانَ مَرِيْضًا او که هغه مريض [ناروغه] وي فَمِنَ الثُّلُثِ نو له ثلث څخه [معتبر] دی وَكُلُّ مَرَضٍ صَحَّ مِنْهُ او هر هغه مرض چي له هغه څخه مريض روغ رمټ سي فَهُوَ كَحَالِ الصِّحَّةِ نو هغه د روغتيا د حالت په څېر دی لِأَنَّ بِالْبُرْءِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا حَقَّ فِيْ مَالِهِ ځکه د جوړېدلو [روغېدلو] په وجه دا خبره څرګنده سوه چي د هغه په مال کي د هيچا حق نسته.

**اللغات:** ﴿ابتدأ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: شروع کول، پېل کول. ﴿برء﴾ مصدر دی: له فتح، سمع او کرم ټولو څخه راځي: جوړېدل، روغېدل، شفاء ترلاسه کول. ﴿تبيّن﴾ د تفعل د باب ماضي ده: څرګندېدل، واضح کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې خبري بيان سوي دي:

(۱)... اوله خبره دا ده چي که په مرض الموت کي مريض ابتداءً پر خپل ځان يو شی واجب کړي، مثلاً مريض د يو چا ضامن او ذمه واره سي يا د يو چا کفيل جوړ سي، نو دا شيان هم د وصيت په څېر له ثلث المال څخه معتبر کيږي يعني لکه څرنګه چي د مريض وصيت له ثلث المال څخه نافذيږي:

ځکه تر ثلث د زائد ضمان یا کفالت په واجبولو کې انسان همداسې متهم کیږي، څرنګه چې په هبه وغیره کې هغه متهم کیږي.

(۲)...دویمه خبره دا ده چې هر هغه تصرف کوم چې مریض تر مرګ وروسته واجب کړي لکه وصیت. نو هغه له ثلث المال څخه معتبر کیږي. برابره ده مریض هغه خپل د صحت (روغتیا) په حالت کې کړی وي او که د مرض په حالت کې؛ ځکه په داسې تصرف (وصیت وغیره) کې د اضافت حالت لره اعتبار وي، نه د عقد حالت لره، او څرنګه چې وصیت تر مرګ وروسته حالت ته مضاف کیږي او تر مرګ وروسته تملیک پکښې ثابتیږي حال دا چې تر مرګ وروسته د مړي د مال سره د وارثانو حق متعلق کیږي. نو ځکه هغه به له ثلث المال څخه نافذیږي.

او هغه تصرف کوم چې مریض مُنجّز او ستملسي واقع کړي او د مرګ وطرف ته یې مضاف نه کړي. په هغه کې د عقد حالت لره اعتبار دی. لکه اعتاق، هبه او داسې نور. نو که د داسې تصرف د عقد په وخت کې هغه کس روغ وي. نو دا تصرف له ټوله مال څخه معتبر کیږي او که د عقد په وخت کې هغه مریض وي. نو دا تصرف له ثلث المال څخه معتبر کیږي.

وکل مرض الخ: دا یوه بله قاعده ذکر کوي. حاصل یې دا دی چې له کوم مرض څخه مریض روغ وجوړ سي او شفاء حاصله کړي. نو هغه د مرض حالت (د تصرف په حق کې) د صحت حالت شمېرل کیږي. لهذا که مریض د مرض په حالت کې یو تصرف وکړي او بیا روغ سي. نو د هغه تصرف له ټوله مال څخه معتبر کیږي؛ ځکه د صحت او روغېدلو په وجه دا خبره څرګنده سوه چې د هغه د مال سره د هیچا حق متعلق سوی نه دی.

## د محاباة او عـتـق د جمع کېدلو په صورت کې محاباة مخکې دی او که عتق؟

قَالَ: وَإِنْ حَابَى ثُمَّ أَعْتَقَ وَضَاقَ الثُّلُثُ عَنْهُمَا فرمایي: او که مریض محاباة وکړي بیا آزادول وکړي او ثلث له دې دواړو څخه تنګ وي فَالْمُحَابَاةُ أَوْلَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز محاباة اولیٰ دی وَإِنْ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابَى او که آزادول وکړي بیا محاباة وکړي فَهُمَا سَوَاءٌ نو بیا دا دواړه [عتق او محاباة] سره برابر دي وَقَالَا ۞: الْعِتْقُ أَوْلَى فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله: فإن أعتق وحابى و ضاق الثلث عنهما، فالمحاباة اولى إن قدّمت، وهما سواءٌ إن أخّرت (ملتقى ج:۴، ص:۴۳۷)، وكذا في الكنز والدر المختار. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۰]

په دواړو مسئلو کي عتق اولیٰ دی وَالْأَصْلُ فِيْهِ أَنَّ الْوَصَايَا إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهَا مَا جَاوَزَ الثُّلُثَ او قاعده کلیه په دې باره کي دا ده چي په وصیتونو کي چي کله یو وصیت له ثلث څخه متجاوز [زائد] نه وي فَكُلٌّ مِنْ أَصْحَابِهَا يَضْرِبُ بِجَمِيْعِ وَصِيَّتِهِ فِي الثُّلُثِ نو له وصیتونو والا څخه هر کس په ثلث کي د خپل ټوله وصیت سره شریک کیږي لَا يُقَدَّمُ الْبَعْضُ عَلَى الْبَعْضِ [او] بعضي به پر بعضونه مخکي کول کیږي إِلَّا الْعِتْقَ الْمُوْقَعَ فِي الْمَرَضِ ما سوا ① د هغه عتق [آزادی] کوم چي په مرض کي واقع کړی سوی وي وَالْعِتْقَ الْمُعَلَّقَ بِمَوْتِ الْمُوْصِيْ كَالتَّدْبِيْرِ الصَّحِيْحِ ② او هغه عتق کوم چي د موصي پر مرګ مُعلق وي لکه صحیح تدبیر [په صحیح توګه مدبر جوړول] وَالْمُحَابَاةَ فِي الْبَيْعِ إِذَا وَقَعَتْ فِي الْمَرَضِ ③ او په بیع کي محاباة کله چي هغه په مرضُ الموت کي واقع سوی وي لِأَنَّ الْوَصَايَا قَدْ تَسَاوَتْ ځکه ټوله وصیتونه سره برابر دي وَالتَّسَاوِيْ فِيْ سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ يُوْجِبُ التَّسَاوِيْ فِيْ نَفْسِ الْاِسْتِحْقَاقِ او د استحقاق په سبب کي سره برابرېدل په نفسِ استحقاق کي سره برابرېدل واجبوي.

**اللغات:** ﴿حابٰی﴾ محاباة کول. د محاباة څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول. یو څوک په مال سره خاصول. د یو چا سره په ثمن یا مبیع کي ډېر ښه کول. یعني بائع (دوکاندار) ته پر ارزانه شي ډېر قیمت ورکول. یا یو شی په ډېر کم (ارزانه) قیمت سره خرڅول. ﴿التدبیر الصحیح﴾ تَدْبِيْرُه تفعیل د باب مصدر دی چي د هغه معنیٰ ده: غلام زمدبر جوړول. د غلام آزادي پر خپل مرګ معلقه کول یعني داسي ورته ویل چي زما تر مرګ وروسته ته آزاد یې!. تدبیر پر دوه قسمه دی: تدبیرِ صحیح: دا دی چي مالک د غلام آزادي صرف پر مرګ معلقه کړی. او تدبیرِ فاسد: دا دی چي یو زائد قید ور سره ولګوي چي زما تر مرګ (مثلاً) یو کال وروسته دا غلام آزاد دی. نو د یوه کال د قید لګولو په وجه تدبیر فاسدیږي. ﴿جاوز﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: له حد څخه تېرېدل. زیاتېدل. ﴿التساوی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل سره برابرېدل. برابري.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مریض اول بیع محاباة وکړي او بیا یو څوک آزاد کړي (یعني اول محاباة او بیا اعتاق وکړي)، حال دا چي د میراث ثلث (دریمه حصه) د دې دواړو شیانو د اداء او نفاذ لپاره نا کافي وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي محاباة اولیٰ دی یعني اول به

محاباة په ثلث کي جاري کول کیږي. بیا که له څه ثلث څخه مقدار پاته سي، نو بیا به په هغه کي عتق نافذول کیږي. خو که مریض اول یو څوک آزاد کړي بیا بیع محاباة وکړي (یعني اول اعتاق او بیا محاباة وکړي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دواړه مساوي او سره برابر دي او غلام او مشتري دواړه په برابره توګه په ثلث کي شریکان کیږي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دلته په دواړو صورتونو کي عتق اولیٰ دی او په ثلث کي به اول عتق نافذول کیږي. تر دې وروسته د محاباة نمبر راځي.

والاصل فیه إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دلته یوه قاعده بیانوي. حاصل یې دا دی چي که یو څوک په خپل مال کي د څو خلکو لپاره وصیتونه کړي وي لېکن هیڅ وصیت هم د میراث له ثلث څخه متجاوز او زیات نه وي، نو ټوله اصحابُ الوصایا (موصیٰ لهم) په ثلث کي برابر شریکان کیږي او یو هم له بل څخه نه بالا کیږي. مثال یې دا دی چي د زید ټوله میراث مثلاً دوولس زره (۱۲۰۰۰) درهمه دي او زید له هغه څخه د خالد لپاره د زر درهمو وصیت کړی دی، د حامد لپاره یې د دوو زرو درهمو وصیت کړی دی، د شاکر لپاره یې هم د دو زرو درهمو وصیت کړی دی او د سالم لپاره یې د دریو زرو درهمو وصیت کړی دی چي د دوی ټولو مجموعه اته زره درهمه کیږي او د میراث ثلث څلور زره (۴۰۰۰) درهمه دي. او له دغه وصیتونو څخه هیڅ وصیت هم له ثلث څخه زائد نه دی، نو څکه د قاعدې پر بناء ټولو شریکان (خالد. حامد. شاکر. سالم) په ثلث یعني په څلور زره درهمو کي شریکان کیږي او د تقسیم طریقه به یې دا وي چي د هر موصیٰ لهٔ لپاره چي د څومره مقدار وصیت سوی دی، هغه ته به دهاغه مقدار نصف ورکول کیږي، مثلاً د کومو کسانو لپاره چي د دوو زرو درهمو وصیت سوی دی (یعني حامد او شاکر)، هغو ته به زر. زر درهمه ورکول کیږي. او د کوم یوه لپاره چي د دریو زرو درهمو وصیت سوی دی (یعني سالم)، هغه ته به پنځلس سوه ورکول کیږي. او د کوم یوه لپاره چي د زرو درهمو وصیت سوی دی، هغه ته به پنځه سوه درهمه ورکول کیږي چي دا ټوله به مجموعتاً څلور زره درهمه سي کوم چي د میراث (۱۲۰۰۰ درهمو) ثلث دی.

إلا العتق إلخ: د دې حاصل دا دی چي د وصیتونو حکم خو همدا دی کوم چي مو پورته بیان کړی. لېکن که د وصیت سره یو ځای د مذکوره لاندیني دریو شیانو یو شی جمع سي، نو بیا به دا شی مخکي کول کیږي یعني په ثلث کي به اول هغه نافذول کیږي او تر هغه وروسته چي کوم مقدار پاته سي. په هغه کي به وصیت نافذول کیږي: ① د مرضُ الموت اعتاق. ② د مرضُ الموت تدبیر. ③ د مرضُ الموت محاباة. نو که موصي په مرضُ الموت کي یو غلام آزاد کړی وي، نو له میراث څخه به اول هغه غلام ایستل کیږي. بیا به وصیتونه نافذول کیږي. همدرنګه که موصي صحیح تدبیر کړی

وي يعني خپل غلام یې مدبر جوړ کړی وي (یا په بله وینا دا چي د غلام آزادي یې پر خپل مرګ معلقه کړې وي)، نو بیا به اول دا تدبیر نافذول کیږي. همدارنګه که موصي په بیع کي محاباة کړې وي، نو له ثلث څخه به اول محاباة نافذول کیږي، تر هغه وروسته پاته مقدار به اصحابُ الوصایا ته ورکول کیږي.

د دې په خلاف که موصي عتق او محاباة سره جمع کړي وي، نو په دې صورت کي د محاباة یا عتق د مخکي کولو په هکله د صاحبینو او د امام صاحب رَحِمَهُمُ اللهُ اختلاف دی کوم چي په شروع کي ذکر سو.

**د پورتني مسئلې دلیل (یعني پر وصیتونو د مرضُ الموت د عتق وغیره د مخکې کېدلو وجه)**

| |
|---|
| وَإِنَّمَا قُدِّمَ الْعِتْقُ الَّذِیْ ذَكَرْنَاهُ آنِفًا او عتق [ځکه] مخکي کړی سوی دی کوم چي څه مخکي موږ ذکر کړ لِأَنَّهُ أَقْوَى ځکه چي عتق زیات قوي دی فَإِنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ مِنْ جِهَةِ الْمُوصِيْ ځکه عتق لر د موصي له طرفه فسخ نه سي لاحق کېدلای وَغَيْرُهُ يَلْحَقُهُ او له عتق څخه بغیر نورو [وصیتونو] لره فسخ لاحق کېدلای سي وَكَذٰلِكَ الْمُحَابَاةُ لَا يَلْحَقُهَا الْفَسْخُ مِنْ جِهَةِ الْمُوصِيْ او همدارنګه محاباة هم دی چي هغه لره د موصي له طرفه فسخ نه سي لاحق کېدلای وَإِذَا قُدِّمَ ذٰلِكَ او کله چي دوی [عتق و محاباة] مخکي کړل سوه فَمَا بَقِيَ مِنَ الثُّلُثِ بَعْدَ ذٰلِكَ نو تر دوی وروسته چي له ثلث څخه کوم مقدار باقي پاته سي يَسْتَوِيْ فِيهِ مِنْ سِوَاهُمَا مِنْ أَهْلِ الْوَصَايَا په هغه کي له دوی څخه بغیر نورو وصتیونو والا برابر شریک کیږي وَلَا يُقَدَّمُ الْبَعْضُ عَلَى الْبَعْضِ او بعضي به پر بعضو نه مخکي کول کیږي. |

**اللغات:** ﴿قُدِّمَ﴾ د تفعیل د باب ماضي مجهوله ده: مقدّم کیدل، مخکي کول کېدل. ﴿آنفًا﴾ څه ګړی مخکي. اوس وخت. دا لفظ همېشه د ظرفیت پر بناء منصوب وي.

**تشریح:** دلته د مخکني مسئلې دلیل بیانوي چي د مرضُ الموت عتق. تدبیر او محاباة به ولي پر نورو وصیتونو مخکي کول کیږي؟ د دلیل حاصل دا دی چي عتق خو به ځکه مخکي کول کیږي چي عتق اقویٰ دی او د هغه د اقویٰ کېدلو دلیل دا دی چي که تر عتق وروسته موصي د عتق فسخ کول وغواړي. نو هغه نه سي فسخ کولای، او له عتق څخه بغیر نور چي کوم وصیتونه دي هغه فسخ کېدلای سي. یعني که موصي له هغه وصیتونو څخه رجوع وکړي نو رجوع صحیح ده. او تدبیر هم په عتق کي داخل دی.

او پاته سو محاباة. نو هغه هم له نورو وصیتونو څخه اقوی دی. ځکه که موصي وغواړي چي په بیع کي محاباة فسخ کړم. نو هغه نه سي فسخ کولای. لنډه دا چي عتق او محاباة تر نورو وصیتونو مخکي دی. او له عتق او محاباة څخه وروسته که د ثلث څه مقدار پاته سي. نو په هغه کي به نور اصحاب الوصایا برابر شریک کیږي او یوه ته به پر بل ترجیح نه ورکول کیږي.

## د صاحبینو او د امام صاحب رَحمَهُمُ الله دلائل

لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ: أَنَّ الْعِتْقَ أَقْوٰى په اختلافي مسئله کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي عتق زیات قوي دی لِأَنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ ځکه چي هغه لره فسخ نه سي لاحق کېدلای وَالْمُحَابَاةُ يَلْحَقُهَا او محاباة لره فسخ لاحق کېدلای سي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّقْدِيمِ فِي الذِّكْرِ او په ذکر کي مقدم کېدلو [مخکي ذکر کېدلو] لره هیڅ اعتبار نسته لِأَنَّهُ لَا يُوجِبُ التَّقَدُّمَ فِي الثُّبُوْتِ ځکه چي دا [تقدیم فی الذکر] په ثبوت کي تقدم [مخکي کېدل] نه واجبوي وَلَهُ: أَنَّ الْمُحَابَاةَ أَقْوٰى او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي محاباة زیات قوي دی. لِأَنَّهَا تَثْبُتُ فِي ضِمْنِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ ځکه چي محاباة د عقد معاوضه [بیع] په ترڅ کي ثابتیږي فَكَانَ تَبَرُّعًا بِمَعْنَاهُ لَا بِصِيْغَتِهِ نو ځکه محاباة به د خپل معنیٰ په اعتبار سره تبرع وي. نه د صیغې [لفظ] په اعتبار سره وَالْإِعْتَاقُ تَبَرُّعٌ صِيْغَةً وَمَعْنًى او اعتاق د صیغې او معنیٰ دواړو په اعتبار سره تبرع ده فَإِذَا وُجِدَتِ الْمُحَابَاةُ أَوَّلًا نو کله چي اول وار محاباة موجود سي دَفَعَ الْأَضْعَفَ نو هغه به زیات ضعیف [یعني عتق] لیري کړي وَإِذَا وُجِدَ الْعِتْقُ أَوَّلًا وَثَبَتَ او کله چي اول وار عتق موجود سي او ثابت سي وَهُوَ لَا يَحْتَمِلُ الدَّفْعَ حال دا چي عتق [د محاباة] د لیري کولو احتمال نه لري كَانَ مِنْ ضَرُوْرَتِهِ الْمُزَاحَمَةُ نو د هغه له ضروریاتو څخه به مزاحمت وي.

**اللغات**: ﴿عتق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: آزادېدل. آزادي. ﴿تقدیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مخکي کول. مقدم کول. ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. د دې لفظ څو معناوي دي لکه مخکي چي ذکر سوه: په بیع کي د یو چا سره په ثمن یا مبیع کي ډېر نښه کول. یعني بائع (دوکاندار) ته پر ارزانه شي ډېر قیمت ورکول. یا یو شی په ډېر کم (ارزانه) قیمت سره خرڅول.... ﴿مزاحمة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مزاحم کېدل. یو د بل مقابل کېدل.

**تشريح**: څه مخکي دا مسئله ذکر سوه چي که موصي اعتاق او محاباة سره جمع کړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز محاباة به له عتق څخه مخکي کول کيږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز عتق به مخکي کول کيږي؛ په دې هکله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي عتق له محاباة څخه اقویٰ دی: ځکه عتق خو نه د مُعتِق له طرفه فسخ قبلوي او نه د مُعْتَق له طرفه فسخ قبلوي. او محاباة که څه هم د موصي له طرفه فسخ نه قبلوي ليکن د مشتري له طرفه هغه فسخ کېدلای سي، مثلاً که موصي او د هغه وارثان د محاباة اجازه نه ورکړي او هغوی مشتري ته د عقد فسخ کولو حکم وکړي. نو مشتري به هغه فسخ کوي: معلومه سوه چي محاباة فسخ کېدلای سي او کله چي فسخ کېدلای سي. نو د هغه په مقابله کي به عتق يقيناً اولیٰ او اقویٰ وي: ځکه په هغه کي په هيڅ توګه هم فسخ نه سي کېدلای.

ولا معتبر إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مريض اول محاباة وکړي او بيا يو غلام آزاد کړي (يعني محاباة تر اعتاق مخکي ذکر کړي)، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز محاباة به له اعتاق څخه نه مخکي کول کيږي؛ ځکه په تقديم و تأخير کي د حقيقي او باطني معنیٰ اعتبار کيږي او موږ مخکي دا بيان کړه چي د باطني معنیٰ په اعتبار سره اعتاق له محاباة څخه اقویٰ دی، نو ځکه د مخکي ذکر کولو پر بنياد هم محاباة به له اعتاق څخه نه مخکي کول کيږي. په همدې وجه يې فرمايلي دي "العتق أولىٰ في المسئلتين أي سواء كان العتق مقدمًا في الذكر أو موخرًا".

لنډه دا چي صاحبينو په عتق او محاباة کي عتق اولیٰ او مقدَم ګرځولی دی او د هغه بنياد يې پر قابلِ فسخ کېدلو او نه کېدلو اېښی دی (چي عتق قابلِ فسخ نه دی). او امام صاحب رَحِمَهُ الله محاباة مقدَم ګرځولی دی او هغه به په بل اعتبار سره محاباة ته ترجيح ورکړې ده چي هغه به لاندي ذکر سي.

وله إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی. حاصل يې دا دی چي محاباة له عتق څخه اقویٰ دی: ځکه محاباة د عقد بيع په ضمن کي ثابتيږي چي هغه (عقد بيع) ته مصنف رَحِمَهُ الله عقد معاوضه ويلي دي. نو محاباة د خپل لفظ او صيغې په اعتبار سره تبرع نه ده بلکي د لفظ په اعتبار سره محاباة عقد بيع ده. خو د معنیٰ په اعتبار سره محاباة تبرع ده. او اعتاق د لفظ او معنیٰ ټولو په اعتبار سره تبرع ده. نو له دې څخه معلومه سوه چي محاباة اقویٰ دی: ځکه چي عقد معاوضه (عقد بيع) له خالص تبرع څخه اقویٰ وي.

لهذا کله چي أقوی یعني محاباة مخکي واقع سي. نو هلته به أضعف یعني عتق تلل وغواړي او اقوی به هغه ته دیکه ورکړي او لیري به یې کړي. او کله چي د محاباة مخ ته هغه نه ټینګیږي نو ثابت به څنګه سي!.

او که اول عتق واقع سي او بیا محاباة. نو څرنګه چي عتق أضعف دی. نو په دې وجه عتق محاباة نه سي دیکه کولای. لهذا دلته د دې دواړو په مینځ کي مزاحمت ثابت سو. او کله چي په دواړو کي مزاحمت ثابت سو. نو مجبوراً وویل سوه چي دواړه سره برابر او مساوي دي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر اصول متفرع کېدونکي دوه جزئیات

وَعَلٰى هٰذَا قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: إِذَا حَابٰى ثُمَّ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابٰى پر همدې أصول امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: کله چي مریض محاباة وکړي بیا آزادول وکړي بیا محاباة وکړي قُسِمَ الثُّلُثُ بَيْنَ الْمُحَابَاتَيْنِ نِصْفَيْنِ نو ثلث به د دواړو محاباتونو تر مینځ نیم په نیمه تقسیمول کیږي لِتَسَاوِيْهِمَا ځکه دواړه سره برابر دي ثُمَّ مَا أَصَابَ الْمُحَابَاةَ الأَخِيْرَةَ بیا چي کوم مقدار آخري [دوېم] محاباة ته رسېدلی وي قُسِمَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِتْقِ نو هغه به د [دوېم] محاباة او عتق تر مینځ تقسیمول کیږي لِأَنَّ الْعِتْقَ مُقَدَّمٌ عَلَيْهَا ځکه عتق پر هغه [دوېم محاباة] مخکي دی فَيَسْتَوِيَانِ نو ځکه دواړه به سره برابر وي وَلَوْ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابٰى ثُمَّ أَعْتَقَ او که مریض آزادول وکړي بیا محاباة وکړي بیا آزادول وکړي قُسِمَ الثُّلُثُ بَيْنَ الْعِتْقِ الأَوَّلِ وَالْمُحَابَاةِ نو ثلث به د اول عتق او محاباة تر مینځ تقسیمول کیږي وَمَا أَصَابَ الْعِتْقَ او کوم مقدار چي [اول] عتق ته رسېدلی وي قُسِمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْعِتْقِ الثَّانِيْ نو هغه به د اول عتق او دوېم عتق تر مینځ تقسیمول کیږي وَعِنْدَهُمَا الْعِتْقُ أَوْلٰى بِكُلِّ حَالٍ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په هر حالت کي عتق اولیٰ دی.

**اللغات:** ﴿حابٰی﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده. څه مخکي یې معنیٰ ذکر سوه. ﴿یستویان﴾ د استفعال له بابه د تثنیه غائب مضارع صیغه ده: سره برابر ېدل.

**تشریح:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا وو چي که موصي اول محاباة وکړي او بیا اعتاق. نو محاباة به له عتق څخه مخکي کول کیږي او که اول اعتاق وکړي او بیا محاباة. نو په دواړو کي به مساوات کیږي. پر همدې أصول په متفرع کولو سره دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله یو قول نقل کوي چي که

مریض بیع محاباة وکړي بیا اعتاق وکړي (یعني غلام آزاد کړي) او بیا بیع محاباة وکړي. نو څرنګه چې په دې صورت کې دوه محاباة سره جمع دي. نو ځکه د میراث ثلث به د دواړو تر مینځ نیم په نیمه تقسیمول کیږي، او دلته تر دویم محابات مخکې عتق دی. نو ځکه په دواړو کې به مساوات کیږي نو د دویم محاباة لپاره چې کوم نیم ثلث دی. هغه به د عتق او دویم محاباة تر مینځ تقسیمول کیږي.

ولوأعتق إلخ: دا دویمه مسئله ده کوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مسلک متفرّع ده. هغه دا چې که مریض یو غلام آزاد کړي بیا بیع محاباة وکړي او بیا یو غلام آزاد کړي. نو په دې صورت کې به ثلث د اول عتق او محاباة تر مینځ تقسیمول کیږي، او د اول عتق لپاره چې د ثلث کوم مقدار دی. هغه به د اول عتق او دویم عتق تر مینځ تقسیمول کیږي: ځکه دواړه مساوي دي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې دا تفصیل او تقسیم د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق دی. کنې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په هر حالت کې یو حکم دی یعني صرف عتق اولیٰ دی او هغه به تر محاباة مخکې کول کیږي.

**داسې وصیت کول چې زما له طرفه دې په دومره مال سره غلام آزاد کړی سي یا په هغه سره دې حج وکړی سي، بیا څه مال ضایع سي؟**

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَىٰ بِأَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ بِهٰذِهِ الْمِائَةِ عَبْدٌ فرمایي: او څوک چې دا وصیت وکړي چې د هغه له طرفه [یعني زما له طرفه] دې په دغه سلو درهمو سره یو غلام آزاد کړی سي فَهَلَكَ مِنْهَا دِرْهَمٌ بیا له هغه [سلو درهمو] څخه یو درهم هلاک سي لَمْ يُعْتَقْ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په ما بقي درهمو سره به د موصي له طرفه غلام نه آزادول کیږي وَإِنْ كَانَتْ وَصِيَّتُهُ بِحَجَّةٍ او که د هغه وصیت د حج په هکله وي [چې په دغه دراهمو سره دې زما له طرفه حج وکړی سي] يُحَجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنْ حَيْثُ يَبْلُغُ نو د هغه له طرفه به په ما بقي درهمو سره حج کول کیږي چیرې چې رسېدلای سي وَإِنْ لَمْ يَهْلِكْ مِنْهَا او که له هغه [سلو درهمو] څخه څه هلاک نه سي وَبَقِيَ شَيْءٌ مِنَ الْحَجَّةِ او له حج څخه څه شی [څه دراهم] پاته سي يُرَدُّ عَلَى الْوَرَثَةِ نو هغه [ما بقی] به پر وارثانو واپس کول کیږي وَقَالَا: يُعْتَقُ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې د هغه له طرفه به په ما بقي درهمو سره غلام آزادول کیږي لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِنَوْعِ قُرْبَةٍ ځکه چې دا د یو قسم قربت

وصیت دی فَیَجِبُ تَنْفِیذُهَا مَا أَمْکَنَ نو د هغه نافذول واجب دي تر څو چې ممکنه وي اِعْتِبَارًا بِالْوَصِیَّةِ بِالْحَجِّ د حج پر وصیت په قیاس کولو سره.

**اللغات**: ﴿یُحَجّ﴾ د نصر له بابه مضارع مجهوله ده: حج کول. ﴿تنفیذ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: نافذول، جاري کول، پوره کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک خپلو وارثانو ته سل درهمه ورکړي او دا وصیت وکړي چې په دې دراهمو سره زما له طرفه تاسي یو غلام رانیسئ او آزاد یې کړئ!. نو که په دې صورت کي له هغه دراهمو څخه یو څو دراهم یا مثلاً یو درهم هلاک او ضایع سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په ما بقي دراهمو سره د دغه موصي له طرفه به غلام نه آزادول کیږي چې په ما بقي ۹۹ درهمو سره غلام رانیول سي او آزاد کړی سي. د دې په خلاف که موصي دا وصیت کړی وي چې زما له طرفه دي په دې دارهمو سره حج وکړی سي او بیا یو څو دراهم هلاک سي. نو که په ما بقي درهمو سره حج ممکن وي. نو حج به اداء کول کیږي. که چیري دومره مقدار دراهم پاته وي چې مثلاً له کندهار څخه په هغومره مقدار حج کېدلای سي او موصي د کندهار اوسېدنکی دی نو له کندهار څخه به حج کول کیږي، او که له کندهار څخه حج نه سي په کېدلای خو له کابل څخه هغومره مقدار د حج لپاره کافي دی، نو د کندهار پر ځای له کابل څخه به حج کول کیږي (خلاصه د کلام دا ده چې د حج په صورت کي د یو څو دراهمو هلاکېدل وصیت نه باطلوي او د موصي له طرفه به حج کول کیږي).

او د حج په صورت کي که هیڅ درهم هلاک نه سي او بیا تر حج وروسته څه دراهم پاته سي، نو هغه به وارثانو ته واپس کول کیږي.

حاصل دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د اعتاق او حج په وصیتونو کي فرق دی. لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په دې دواړو وصیتونو کي هیڅ فرق نسته. بلکي څرنګه چې د یو څو دراهمو تر هلاکېدلو وروسته د حج وصیت باقي پاتیږي او د موصي له طرفه په ما بقي دراهمو سره حج کول کیږي. همداسي د یو څو دراهمو د هلاکېدلو په صورت کي به د وصیت اعتاق هم باقي پاتیږي او د موصي له طرفه به په ما بقي دراهمو سره غلام رانیول کیږي او آزادول کیږي: ځکه څرنګه چې حج قربت او عبادت دی، همداسي غلام آزادول هم یو قربت او عبادت دی او په دې حواله دواړه سره برابر دي، نو ځکه د وصیت په نافذولو کي به هم دواړه سره برابر او مساوي وي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل او د اختلاف بنياد

وَلَهُ: أَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِالْعِتْقِ لِعَبْدٍ يُشْتَرىٰ بِمِائَةٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي دا د داسي غلام د آزادېدلو په هکله وصيت دى کوم چي په سلو درهمو رانيول سوى وي [يا په بله وينا دا چي موصي خاص د سلو درهمو والا د غلام آزادولو وصيت کړى دى] وَتَنْفِيذُهَا فِيمَنْ يُشْتَرىٰ بِأَقَلَّ مِنْهُ تَنْفِيذٌ بِغَيْرِ الْمُوصىٰ لَهُ [نو] په داسي غلام کي د دغه وصيت نافذول کوم چي له سلو درهمو څخه په کمه رانيول سوى وي له هغه موصىٰ لهُ غلام څخه بغير د بل غلام لپاره وصيت نافذول دي [ځکه موصىٰ لهُ د سلو درهمو والا غلام دى] وَذٰلِكَ لَايَجُوزُ او دا جائز نه دي بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ بِالْحَجِّ په خلاف د حج د وصيت کولو لِأَنَّهَا قُرْبَةٌ مَحْضَةٌ وَهِيَ حَقُّ اللهِ تَعَالىٰ ځکه چي حج خالص عبادت دى کوم چي د الله تعالىٰ حق دى وَالْمُسْتَحَقُّ لَمْ يَتَبَدَّلْ او مستحَق [واجب شده حج] نه دى بدل سوى [په بله وينا دا چي موصي پر ځان کوم حج واجب کړى دى چي زما له طرفه دي حج وسي. د دراهمو د کمېدلو په وجه په هغه کي هيڅ تبديلي نه ده راغلې: ځکه چي هغه قربت محضه دى او د الله تعالىٰ حق دى. په خلاف د غلام] فَصَارَ كَمَا إِذَا أَوْصىٰ لِرَجُلٍ بِمِائَةٍ نو دا داسي سوه لکه څوک چي د يو سړي لپاره د سلو درهمو وصيت وکړي فَهَلَكَ بَعْضُهَا بيا له هغه څخه بعضي هلاک سي يَدْفَعُ الْبَاقِيَ إِلَيْهِ نو باقي مانده به هغه سړي [موصىٰ لهُ] ته ورکول کيږي وَقِيلَ: هٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ بِنَاءٌ عَلىٰ أَصْلٍ آخَرَ مُخْتَلَفٍ فِيهِ او ويل سوي دي: چي دغه مسئله پر بل اصل [أصول] مبني ده چي په هغه کي [هم] اختلاف سوى دى وَهُوَ أَنَّ الْعِتْقَ حَقُّ اللهِ تَعَالىٰ عِنْدَهُمَا او هغه دا ده چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز عتق د الله تعالىٰ حق دى حَتّىٰ تُقْبَلَ الشَّهَادَةُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ دَعْوىٰ تر دې چي پر عتق به [د غلام] له دعوې څخه بغير هم بيِنه [گواهي] قبلول کيږي فَلَمْ يَتَبَدَّلِ الْمُسْتَحَقُّ نو مستحَق بدل نه سو وَعِنْدَهُ حَقُّ الْعَبْدِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز عتق د بنده حق دى حَتّىٰ لَا تُقْبَلَ الْبَيِّنَةُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ دَعْوىٰ تر دې چي پر هغه به [د غلام] له دعوې څخه بغير بيِنه نه قبلول کيږي فَاخْتَلَفَ الْمُسْتَحَقُّ نو مستحَق بدل سو وَهٰذَا أَشْبَهُ او دا [يعني دا مسئله پر مذکوره أصول مبني کېدل] د صحت زيات مشابه دي.

**اللغات**: ﴿قربة﴾ نېکي، د نېکۍ کار (داسې کار چې په هغه سره د الله نژدېکت حاصلول کېږي)، عبادت.
﴿يُدفع﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده. د دې باب يوه معنىٰ ده: ورکول، اداء کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل بيان سوی دی، د دليل حاصل دا دی چې په مذکوره مسئله کې موصی د داسې غلام آزادولو وصيت کړی دی چې د هغه قيمت سل (۱۰۰) درهمه دي، لهذا که موږ د (۹۹) درهمو والا په غلام کې وصيت نافذ کړو، نو د موصي مقصد به فوت سي او هغه چې کوم غلام موصىٰ لهٗ متعيّن کړی دی په هغه کې به تبديلي راسي او له هغه څخه بغير د بل قيمت په غلام کې به وصيت نافذ سي، حال دا چې وارثانو ته په دې کې د هيڅ تبديلي کولو حق نسته، نو ځکه که له سلو څخه صرف يو درهم کم سي، نو موږ د موصي له طرفه د اعتاق العبد (غلام آزادولو) اجازه نه ورکوو.

د دې په خلاف د حج مسئله ده.نو د حج په مسئله کې "مُستحَق" (واجب شده) يعني "حج" په هيڅ صورت کې هم نه بدلېږي؛ ځکه حج خالص قربت دی او د الله تعالىٰ حق دی چې په هغه کې هيڅ تبديلي نه سي کېدلای، لهذا وصيت پر حج قياسول صحيح نه دي، او د حج وصيت داسې دی لکه يو مريض چې دا وصيت وکړي چې زما له مال څخه دې فلانکي (مثلاً خالد) ته سل درهمه ورکول سي لېکن بيا له هغه څخه يو څو دراهم هلاک او کم سي، نو هم ما بقی دراهم موصىٰ لهٗ (خالد) ته ورکول کېږي او وصيت نافذېږي؛ ځکه دلته موصىٰ لهٗ فلانکی (خالد) دی او په هغه کې هيڅ تبديلي نه ده راغلې، نو همداسې د حج په مسئله کې هم په مستحَق (حج) کې تبديلي نه ده راغلې، نو ځکه د دراهمو د کمېدلو په صورت کې به په حج کې هم وصيت نافذېږي، لېکن د اعتاق العبد (غلام آزادولو) په صورت کې وصيت نه سي نافذ کېدلای؛ ځکه په هغه کې د مستحَق (واجب شده غلام) تبديلي لازمېږي کوم چې د موصي د مراد خلاف دي.

**وقيل هٰذه المسألة إلخ**: يعني د بعضي حضراتو قول دا دی چې دا مسئله په حقيقت کې پر هغه أصول مبني او متفرّع ده کوم چې د صاحبينو او امام صاحب رَحِمَهُمُ الله تر مينځ مختلف فيه دي او هغه أصول دا دي چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز عتق (اعتاق) حقُّ الله دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه حق العبد دی، او په حقُّ الله کې د گواهۍ د قبلولو لپاره بالاتفاق دعوىٰ شرط نه ده، او په حق العبد کې د گواهۍ د قبلولو لپاره دعوىٰ شرط ده، لهذا کله چې عتق د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حقُّ الله دی او په حقُّ الله کې په مستحَق کې تبديلي نه سي کېدلای، نو ځکه د هغو په نېز د حج د مسئلې په څېر د

غلام پـه مسـئله کـي بـه هـم وصيـت نافذول کيږي چي پـه مـا بقي (۹۹) درهمو سره به غلام رانيول کيږي او آزادول کيږي. نو صاحبينو دلته عتق پر حج قياس کړی دی. ځکه په حج کي هم مستحَق نه بدليږي.

د دې په خلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز عتق حق العبد دی. او پـه حق العبد کي تبديلي کېدلای سي. لهذا د (۹۹) درهمو والا غلام به د (۱۰۰) درهمو والا له غلام څخه جلا وي او د هغه په رانيولو سره به د موصي وصيت او د هغه مراد نه پوره کيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر دغه اُصول دا مسئله او اختلاف متفرّع کول زيات صحيح او غوره دي.

**په مرض الموت کي د اعتاق يو صورت**

قَالَ: وَمَنْ تَرَكَ اِبْنَيْنِ فرمايي: او څوک چي [تر شا] دوه ځامن پرېږدي وَمِائَةَ دِرْهَمٍ وَعَبْدًا قِيمَتُهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ او [په ميراث کي] سل درهمه او يو داسي غلام پرېږدي چي د هغه قيمت سل درهمه وي وَقَدْ كَانَ أَعْتَقَهُ فِي مَرَضِهِ حال دا چي هغه غلام يې په خپل مرضُ الموت کي آزاد کړی وي فَأَجَازَ الْوَارِثَانِ ذٰلِكَ بيا دواړه وارثان [ځامن] د دې اجازه ورکړي لَمْ يَسْعَ فِي شَيْءٍ نو غلام به هيڅ سعی [او ګټه] نه کوي لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ وَإِنْ كَانَ فِي حُكْمِ الْوَصِيَّةِ ځکه په مرض الموت کي عتق که څه هم د وصيت په حکم کي دی وَقَدْ وَقَعَتْ بِأَكْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ او وصيت [دلته] له ثلث څخه په زائد مقدار کي واقع سوی دی إِلَّا أَنَّهَا تَجُوزُ بِإِجَازَةِ الْوَرَثَةِ خو هغه [له ثلث څخه د زائد مقدار وصيت] د وارثانو په اجازه سره جائز کيږي لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ ځکه د وصيت ممتنع کېدل د وارثانو د حق په وجه وي وَقَدْ أَسْقَطُوهُ او هغو خپل حق ساقط کړی دی.

**اللغات**: ﴿أجاز﴾ د افعال د باب ماضي ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول. ﴿لـم يَسْـعَ﴾ د فتح له بابه د جحد صيغه ده: سعی او کوشش کول، خواري کښل. يعني کسب او مزدوري کول او د خپل پاته حصې د آزادولو لپاره مال ګټل. ﴿ثلث﴾ درېيمه حصه. ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، ممانعت.

**تشريح**: مخکي دا اُصول تېر سو چي د وصيت نافذېدلو محل ثلث المال دی، خو که وصيت له ثلث المال څخه زائد وي او وارثان د هغه اجازه ورکړي، نو دا له ثلث څخه د زائد مقدار وصيت به هم نافذول کيږي. پر همدغه اصول دلته يوه مسئله پېش کوي:

صورت د مسئلې دا دی چې د مړي (مثلاً د خالد) دوه ځامن وارثان دي او د هغه په میراث کې مثلاً سل درهمه نغد موجود دي او د سلو درهمو یو غلام دی (یعني ټوله میراث ۲۰۰ درهمه دی). لیکن مړي (خالد) هغه غلام په خپل مرض الموت کې آزاد کړی دی. نو په دې صورت کې د اُصول مطابق د هغه آزادي د میراث (۲۰۰ درهمو) په ثلث یعني په (۶۶) درهمو کې نافذیږي او د باقي حصې (۳۳ درهمو) لپاره به غلام سعی او کټه کوي او دواړو وارثانو ته به (۳۳) درهمه ورکوي: ځکه چې دلته وصیت له ثلث المال څخه زائد دی یعني عتق له ثلث څخه په زائد مقدار کې نافذ سوی دی او له ثلث څخه زائد مقدار د وارثانو حق دی. ها! که چیرې وارثان (دواړه ځامن) په ټوله غلام کې د عتق نافذېدلو اجازه ورکړي. نو بیا پوره غلام آزادیږي او پر غلام هیڅ سعی او کټه نه لازمیږي: ځکه دا عتق په مرض الموت کې د کېدلو په وجه د وصیت په درجه کې دی او وصیت له ثلث څخه په زائد مقدار کې نه نافذیږي. لیکن که وارثان اجازه ورکړي نو نافذیږي: ځکه له ثلث څخه په زائد مقدار کې د وصیت نافذېدل د وارثانو د حق په وجه ممتنع وي او دلته وارثانو په اجازه ورکولو سره خپل دا حق ساقط کړی دی. نو ځکه دلته به بغیر له سعی کولو پوره غلام آزادیږي.

## که موصی بالعتق غلام یو جرم وکړي او د هغه په بدله کې غلام ورکول سي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى بِعِتْقِ عَبْدِهٖ ثُمَّ مَاتَ فرمایي: او څوک چې د خپل غلام د آزادېدلو وصیت وکړی بیا هغه مړ سي فَجَنٰى جِنَايَةً وَدُفِعَ بِهَا بیا غلام یو جنایت وکړي او غلام د هغه جنایت په بدله کې ورکول سي بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو وصیت باطلیږي لِأَنَّ الدَّفْعَ قَدْ صَحَّ ځکه [د جنایت په بدله کې غلام] ورکول صحیح سوه لِمَا أَنَّ حَقَّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ مُقَدَّمٌ عَلٰى حَقِّ الْمُوصِيْ ځکه د جنایت د ولي حق د موصي پر حق مخکې دی فَكَذٰلِكَ عَلٰى حَقِّ الْمُوْصٰى لَهٗ نو همداسې به د موصیٰ لهٗ پر حق هم [مخکې] وي لِأَنَّهٗ يَتَلَقَّى الْمِلْكَ مِنْ جِهَتِهٖ ځکه موصیٰ لهٗ د موصي له طرفه ملکیت حاصلوي إِلَّا أَنَّ مِلْكَهٗ فِيْهِ بَاقٍ خو په غلام کې د موصي ملکیت باقي دی وَإِنَّمَا يَزُوْلُ بِالدَّفْعِ او دا ملکیت [د غلام] په ورکولو سره زائلیږي فَإِذَا خَرَجَ بِهٖ عَنْ مِلْكِهٖ بیا کله چې په ورکولو سره غلام د موصي له ملکیت څخه ووتلی بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو وصیت باطل سو كَمَا إِذَا بَاعَهُ الْمُوْصِيْ أَوْ وَارِثُهٗ بَعْدَ مَوْتِهٖ لکه کله چې موصي یا د هغه وارث د موصي تر مرګ وروسته دا غلام خرڅ کړي فَإِنْ فَدَاهُ الْوَرَثَةُ او که وارثان د

دې غلام فديه ورکړي كَانَ الْفِدَاءُ فِي مَالِهِمْ نو فديه به د وارثانو په مال کي [لازم] وي لِأَنَّهُمْ هُمُ الَّذِيْنَ الْتَزَمُوْهُ ځکه چي هملوی هغه [فديه ورکول] پر ځان لازم کړي دي وَجَازَتِ الْوَصِيَّةُ او وصيت جائز کيږي لِأَنَّ الْعَبْدَ طَهُرَ عَنِ الْجِنَايَةِ بِالْفِدَاءِ ځکه د فديه ورکولو په وجه غلام له جنايت څخه پاک سو كَأَنَّهُ لَمْ يَجْنِ ګواکي هغه [ګردسره] جنايت کړی نه دی فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ نو ځکه وصيت به نافذيږي.

**اللغات**: ﴿جنٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنايت کول. جرم کول. ﴿دُفِعَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: ورکول (ورسپارل). ﴿يتلقّٰى﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: حاصلېدل. حاصلول او ترلاسه کول. ﴿التزموه﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صيغهٔ ده: پر ځان لازمول. پر خپله ذمه اخيستل. ﴿طهر﴾ د کرُم د باب ماضي ده: پاکېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي يو سړي مثلاً زيد په خپل مرضُ الموت کي وارثانو ته دا وصيت کړی وو چي تاسي زما فلانکی غلام آزاد کړئ! خو د موصي تر مرګ وروسته هغه غلام يو جنايت وکړي مثلاً د حامد لاس يې پرېکړی او وارثانو هغه غلام د جنايت ولي (حامد) ته ورکړی، نو موصي (زيد) چي د دې غلام د آزادولو کوم وصيت کړی وو، دا وصيت باطليږي؛ ځکه چي دغه جنايتکاره غلام د جنايت په بدله کي د جنايت ولي (حامد) ته ورکول صحيح دي؛ ځکه د جنايت د ولي حق د موصي له حق څخه مخکي دی. او د ورکولو په وجه له دې غلام څخه د موصي (زيد) ملکيت زائليږي او کله چي ملکيت زائل سو، نو ښکاره ده چي په دې غلام کي د موصي وصيت هم باطليږي. او کله چي د موصي ملکيت ختم سو، نو د موصیٰ لهٗ (غلام) حق هم ختميږي؛ ځکه موصیٰ لهٗ ته د موصي له طرفه ملکيت حاصليږي، لهذا کله چي موصي خپله مالک نه دی، نو بل به څنګه مالک کړي!.

**إلّا إن ملكه إلخ**: دا د يو مقدر سول جواب دی. سوال دا دی چي ستاسي دا وينا مناسب نه ده "چي کله د جنايت په بدله کي غلام د جنايت ولي ته ورکول سي نو بيا وصيت باطليږي" (يعني تر دفع العبد وروسته وصيت باطل ګرځول صحيح نه دي)؛ ځکه وصيت خو تر جنايت وروسته سملستي باطليږي مخکي تر دې چي هغه غلام د جنايت ولي ته ورکول سي، لهذا د وصيت باطلېدلو حکم قبل الدفع (تر ورکولو مخکي لګول پکار دي. حال دا چي تاسي بعد الدفع دا حکم لګولی دی.

د دې جواب دا دی چې له غلام څخه تر هغه وخته پورې د موصي ملکيت نه زائليږي تر څو چې دا غلام د جنايت ولي ته ور نه کول سي او قبل الدفع په هغه کي د موصي ملکيت باقي پاتيږي، په دې وجه موږ قبل الدفع د وصيت باطلېدلو حکم نه دی لګولی. ها! کله چې وارثان دا غلام د جنايت ولي ته ورکړي، نو هغه د موصي له ملکيت څخه وځي او په هغه کي وصيت باطليږي. لکه کله چې موصي دا غلام په خپل ژوند کي خرڅ کړي، يا د موصي تر مرګ وروسته وارثان هغه خرڅ کړي. نو په دې صورتونو کي هم وصيت باطليږي: ځکه په دې صورتونو کي غلام مشتري ته ورکول کيږي. له دې څخه معلومه سوه چې تر دفع (ورکولو) وروسته هغه غلام د موصي له ملکيت څخه وځي او په هغه وخت کي وصيت پکښې باطليږي.

فإن فداه الخ: د دې حاصل دا دی چې که د مړي وارثان دا جنايتکاره غلام د جنايت ولي ته ور نه کړي بلکي د هغه پر ځای فديه ورکړي، نو دا فديه د وارثانو له مال څخه نافذيږي او هغوی په دې سلسله کي متبرّع شمېرل کيږي: ځکه پر هغو فديه ورکول لازم نه وه او په خپله خوښه هغو دا کار کړی دی. او بغير له وجوب څخه په خپل خوښه سوی کار تبرّع وي، نو ځکه دا فديه به د وارثانو له طرفه تبرّع وي او تر فديه ورکولو وروسته به په دې غلام کي د موصي وصيت جائز کيږي او نافذيږي: ځکه په فديه ورکولو سره غلام له جنايت څخه پاک صاف سو او غلام داسي وګرځېدی ګواکي هغه جنايت کړی نه دی. لهذا اوس د هغه د وصيت لاره بالکل پاکه سوه.

## د غلام آزادولو يو صورت او د هغه حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ مَالِهِ لِآخَرَ فرمايي: او چا چې د بل چا لپاره د خپل مال د درېيمي حصې وصيت وکړی فَأَقَرَّ الْمُوصَى لَهُ وَالْوَارِثُ أَنَّ الْمَيِّتَ أَعْتَقَ هٰذَا الْعَبْدَ بيا موصى لهٔ او وارث [دواړو] اقرار وکړي چې مړي [موصي] دا غلام آزاد کړی دی فَقَالَ الْمُوصَى لَهُ: أَعْتَقَهُ فِي الصِّحَّةِ لېکن موصى لهٔ ووايي: چې مړي هغه په [حالت د] صحت کي آزاد کړی دی وَقَالَ الْوَارِثُ أَعْتَقَهُ فِي الْمَرَضِ او وارث ووايي: چې مړي هغه په [حالت د] مرض کي آزاد کړی دی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْوَارِثِ نو قول د وارث معتبر دی وَلَا شَيْءَ لِلْمُوصَى لَهُ إِلَّا أَنْ يَفْضُلَ مِنَ الثُّلُثِ شَيْءٌ او د موصى لهٔ لپاره هيڅ شی نسته مګر دا چې له ثلث څخه څه مقدار زائد پاته سي أَوْ تَقُومَ لَهُ الْبَيِّنَةُ أَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ يا د موصى لهٔ لپاره پر دې خبره بينه پېش سي چې عتق په [حالت د] د صحت کي [واقع سوی] دی لِأَنَّ الْمُوصَى لَهُ

يَدَّعِيْ اِسْتِحْقَاقَ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنَ التَّرِكَةِ بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه موصیٰ لهٔ تر عتق وروسته د ما بقی میراث د ثلث د مستحق کېدلو دعویٰ کوي لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ لَيْسَ بِوَصِيَّةٍ ځکه په [حالت د] صحت کي عتق وصيت نه دی وَلِهٰذَا يَنْفُذُ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ په همدې وجه دا عتق له ټوله مال څخه نافذيږي وَالْوَارِثُ يُنْكِرُهُ او وارث [د دې] انکار کوي لِأَنَّ مُدَّعَاهُ الْعِتْقُ فِي الْمَرَضِ ځکه چي د وراث دعویٰ په مرض کي د آزادېدلو ده وَهُوَ وَصِيَّةٌ او دا [په مرض الموت کي د غلام آزادول] وصيت دی وَالْعِتْقُ فِي الْمَرَضِ مُقَدَّمٌ عَلَى الْوَصِيَّةِ بِثُلُثِ الْمَالِ او په مرضُ الموت کي عتق د ثلث مال پر وصيت مخکي دی فَكَانَ مُنْكِرًا نو وارث به منکر وي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ الْيَمِيْنِ او قول د منکر معتبر دی د قسم سره وَلِأَنَّ الْعِتْقَ حَادِثٌ او ځکه چي عتق حادث [نوی واقع کېدونکی] دی وَالْحَوَادِثُ تُضَافُ إِلَى أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ او حادث شیان د اقربُ الاوقات [نژدې ترين وخت] وطرف ته مضاف کيږي لِلتَّيَقُّنِ بِهَا ځکه چي دا اقربُ الاوقات متيقن وي فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِلْوَارِثِ نو ظاهرِ حال به د وارث لپاره ګواه وي فَيَكُوْنُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ مَعَ الْيَمِيْنِ نو ځکه قول به د هغه معتبر وي د قسم سره إِلَّا أَنْ يَفْضُلَ شَيْءٌ مِنَ الثُّلُثِ عَلَى قِيْمَةِ الْعَبْدِ مګر دا چي د غلام پر قيمت له ثلث څخه څه زائد سي لِأَنَّهُ لَا مُزَاحِمَ لَهُ فِيْهِ ځکه په هغه [زائد مقدار] کي د موصیٰ لهٔ هيڅ مزاحم نسته أَوْ تَقُوْمَ لَهُ الْبَيِّنَةُ أَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ يا د موصیٰ لهٔ پر دې خبره بېنه [ګواهي] پېښه سي چي عتق په صحت کي [واقع سوی] دی لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالْبَيِّنَةِ كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً ځکه کوم شی په بېنه سره ثابت سوی وي هغه داسي دی لکه په عيني ليدنه سره ثابت سوی شی وَهُوَ خَصْمٌ فِي إِقَامَتِهَا لِإِثْبَاتِ حَقِّهِ او موصیٰ لهٔ به د خپل حق ثابتولو لپاره په دې بېنه پېشولو کي خصم [مدعي] وي.

**اللغات:** ﴿يفضل﴾ د نصر د باب مضارع ده: زائد پاتېدل. اضافه کېدل. زیاتېدل. ﴿بيّنة﴾ ګواهي. حجت او دليل. ﴿حادث﴾ د نصر د باب فاعل دی: نوی واقع کېدونکی (پېښېدونکی). نوی پيدا کېدونکی. وروسته واقع سوی. ﴿خصم﴾ مخالف. د دې لفظ اطلاق کله پر مدعي کيږي او کله پر مدعیٰ عليه. دوی يو د بل خصم دي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید مثلاً د خالد لپاره د خپل ثلث مال وصیت وکړی او بیا موصي یعنې زید مړ سو او د زید سره یو غلام هم وو. او د هغه غلام په هکله موصیٰ لهٗ (خالد) او د موصي وارث دا اقرار وکړی چې موصي (زید) هغه آزاد کړی وو. لېکن د اعتاق په وخت کې د دواړو اختلاف سو. موصیٰ لهٗ وویل چې موصي (زید) هغه د صحت په حالت کې آزاد کړی وو او وارث وویل چې نه! موصي هغه د مرض په حالت کې آزاد کړی وو. نو په دې اختلاف کې د وارث قول معتبر دی او د موصیٰ لهٗ (خالد) لپاره هیڅ هم نسته. ها! که چیري له ثلث څخه څه مقدار زائد پاته سي. یا موصیٰ لهٗ (خالد) پر خپل قول بینه پېش کړي چې عتق د صحت په حالت کې واقع سوی دی. نو په دې صورت کې د هغه قول معتبر دی.

لأن الموطی لهٗ إلخ: د موصیٰ لهٗ (خالد) په مقابله کې د وارث د قول معتبر کېدلو دلیل بیانوي. حاصل یې دا دی چې دلته موصیٰ لهٗ مدعي دی او وارث منکر دی؛ ځکه موصیٰ لهٗ دا دعویٰ کوي چې د عتق تر نافذېدلو وروسته چې د میراث کوم مقدار پاته سي زه د هغه د ثلث مستحق یم ځکه چې عتق د صحت په حالت کې واقع سوی دی، او وارث له دې څخه منکر دی ځکه د وارث دعویٰ دا ده چې عتق په مرضُ الموت کې واقع سوی دی یعني موصي دا غلام په مرضُ الموت کې آزاد کړی دی او په مرض الموت کې آزادول وصیت دی او د مرض الموت عتق پر نورو وصیتونو مخکې کیږي. خلاصه د کلام دا چې د وارث مطلب دا دی چې د موصیٰ لهٗ لپاره هیڅ شی نسته. نو وارث منکر وشمېرل سو او د منکر قول مع الیمین معتبر کیږي.

ولأن العتق حادث إلخ: دا د وارث د قول معتبر کېدلو دویم دلیل دی، حاصل یې دا دی چې دلته له مخکې څخه خو عتق نسته. معلومه سوه چې دا عتق حادث دی او قاعده دا ده چې د حادث اضافت د اقربُ الاوقات وطرف ته کیږي؛ ځکه په دې اضافت کې چې څومره تیقّن دی. هغه د بعد الاوقات وطرف ته په اضافت کولو کې نسته. او اقربُ الاوقات د مرض حالت دی. نو په دې اعتبار سره هم ظاهر حال د وارث لپاره ګواه سو. نو ځکه د وارث قول به مع الیمین معتبر وي.

خو که په ثلث کې د عتق له نافذولو څخه وروسته څه مقدار زائد پاته سو. نو هغه به موصیٰ لهٗ (خالد) ته ورکول کیږي؛ ځکه په دې زائد مقدار کې اوس د هغه هیڅ مزاحم نسته.

يا دا چي موصىٰ لهٗ (خالد) بينه پيش كړي چي عتق د صحت په حالت كي واقع سوى دى.
نو بيا د موصىٰ لهٗ قول معتبر دى: ځكه د بينې په ذريعه چي كومه خبره ثابته سي. هغه داسي ده لكه معاينة چي ثابته سوې وي.

وهو خصم في إقامتها إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دى. سوال دا دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خو عتق حقّ العبد (د غلام حق) دى او په حقّ العبد كي چي تر څو د غلام له طرفه دعوىٰ نه وي سوې. تر هغه وخته پوري بينه (گواهي) نه سي پېشول كېدلاى (لكه مخكي چي ذكر سوه چي په حق العبد كي د گواهي پېشولو لپاره دعوىٰ شرط ده)، حال دا چي دلته د غلام له طرفه دعوىٰ نسته. نو دلته به (د موصىٰ لهٗ) بينه پېشول څنگه صحيح وي؟.

د دې جواب دا دى چي موږ دلته موصىٰ لهٗ مدعي (خصم) گرځولى دى. نه غلا او صرف همدا موصىٰ لهٗ د وارث خصم دى. نه غلام. او د هغه له طرفه دعوىٰ موجوده ده او تر دعوې وروسته بينه پېشول صحيح دي: ځكه چي دلته موصىٰ لهٗ د خپل حق ثابتولو لپاره بينې پېشولو ته محتاج او ضرورت مند دى: نو د بينې پېشولو په هكله به همدا موصىٰ لهٗ خصم او مدعي گرځول كيږي.

**د اعتاق يو بل صورت او د هغه حكم او تفصيل**

قَالَ: وَمَنْ تَرَكَ عَبْدًا فرمايي: او چا چي [خپل ترشا] يو غلام پرېښودى فَقَالَ لِلْوَارِثِ: أَعْتَقَنِيْ أَبُوْكَ فِي الصِّحَّةِ نو هغه غلام وارث ته وويل: چي ستا پلار په [حالت د] صحت كي زه آزاد كړى وم وَقَالَ رَجُلٌ: لِيْ عَلَىٰ أَبِيْكَ أَلْفُ دِرْهَمٍ او يو بل سړي وويل: چي زما ستا په پلار زر درهمه [قرض] باندي دى فَقَالَ: صَدَقْتُمَا نو وارث [ځوى] وويل: چي تاسي دواړو رښتيا وويل فَإِنَّ الْعَبْدَ يَسْعٰى فِيْ قِيْمَتِهِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز غلام به په خپل قيمت كي سعى [او كټه] كوي وَقَالَا: يَعْتِقُ وَلَا يَسْعٰى فِيْ شَيْءٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي غلام آزاديږي او هغه به هيڅ سعى نه كوي لِأَنَّ الدَّيْنَ وَالْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ ظَهَرَا مَعًا بِتَصْدِيْقِ الْوَارِثِ فِيْ كَلَامٍ وَاحِدٍ ځكه قرض او عتق په [حالت د] صحت كي دواړه يو ځاى ښكاره سوي دي په يوه كلام [صدقتما] سره د وارث د تصديق كولو په وجه فَصَارَا كَأَنَّهُمَا كَانَا مَعًا نو دا دواړه داسي سوه گواكي دواړه يو ځاى وه

وَالْعِتْقُ فِي الصِّحَّةِ لَا يُوجِبُ السِّعَايَةَ او په [حالت د] صحت کې آزادېدل [پر غلام] سعی کول نه واجبوي وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمُعْتِقِ دَيْنٌ که څه هم پر آزادونکي کس قرض باندې وي وَلَهُ: أَنَّ الْإِقْرَارَ بِالدَّيْنِ أَقْوَى او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د قرض اقرار زيات قوي دی لِأَنَّهُ يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ ځکه چې قرض له ټوله مال څخه معتبر کيږي وَالْإِقْرَارُ بِالْعِتْقِ فِي الْمَرَضِ يُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ او په [حالت د] مرض کې د آزادېدلو اقرار له ثلث مال څخه معتبر کيږي وَالْأَقْوَى يَدْفَعُ الْأَدْنَى او اقوىٰ شی ادنىٰ شی دفع کوي فَقَضِيَّتُهُ أَنْ يَبْطُلَ الْعِتْقُ أَصْلًا نو د دې دفع کولو تقاضا دا ده چې عتق بالکل باطل سي إِلَّا أَنَّهُ بَعْدَ وُقُوعِهِ لَا يَحْتَمِلُ الْبُطْلَانَ خو [څرنګه] عتق تر خپل واقع کېدلو وروسته د باطلېدلو احتمال نه لري فَيُدْفَعُ مِنْ حَيْثُ الْمَعْنَى بِإِيجَابِ السِّعَايَةِ نو ځکه د معنىٰ په اعتبار په سعايه واجبولو سره به عتق دفع کول کيږي وَلِأَنَّ الدَّيْنَ أَسْبَقُ او ځکه چې قرض مخکې دی لِأَنَّهُ لَا مَانِعَ لَهُ مِنَ الْإِسْنَادِ ځکه چې [د قرض] له اسناد [او منسوب کولو] څخه هيڅ مانع نسته فَيَسْتَنِدُ إِلَى حَالَةِ الصِّحَّةِ نو ځکه د قرض استناد [او نسبت] به د صحت د حالت وطرف ته کيږي [د حالتِ صحت وطرف ته به قرض منسوب کيږي] وَلَا يُمْكِنُ إِسْنَادُ الْعِتْقِ إِلَى تِلْكَ الْحَالَةِ او د دغه [صحت د] حالت وطرف ته د عتق اسناد کول ممکن نه دي لِأَنَّ الدَّيْنَ يَمْنَعُ الْعِتْقَ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ مَجَّانًا ځکه قرض په حالت د مرض کې مفت آزادېدل منع کوي [يعني په حالت د مرض کې له مفت او بلا عوضه آزادېدلو څخه قرض مانع دی] فَتَجِبُ السِّعَايَةُ نو ځکه [پر غلام] به سعی کول واجب وي.

**اللغات**: ﴿يسعىٰ﴾ د فتح د باب مضارع ده: سعی او کوښښ کول. خواري کښل او مال ګټل. ﴿قضية﴾ تقاضا. مقتضا. ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول. لازمول. ﴿أسبق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مخکې. تر ټولو مخکې. ﴿يستند﴾ د استفعال د باب مضارع ده. إِسْتَنَدَ يَسْتَنِدُ إِسْتِنَادًا: (د يو شي او يو حالت وطرف ته) تکيه کول. منسوب کېدل. ﴿مجانًا﴾ مفت. بلا عوضه. په وړيا توګه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې يو سړي مثلاً زيد مړ سو او هغه په خپل ميراث کې يو غلام پرېښودی. بيا هغه غلام د مړي (زيد) ځوی ته وويل چې ستا پلار د خپل صحت په زمانه کې زه آزاد کړی وم. تر دې وروسته يو بل کس راغلی او د مړي ځوی ته يې وويل چې زما ستا په پلار زر درهمه

قرض باندي دی. او د مړي ځوی د دواړو تصديق وکړی چي صَدَقْتُمَا تاسي دواړه رښتيا واياست. نو په دې صورت کي غلام آزاديږي او پر مړي زر درهمه قرض ثابتيږي. لېکن په دې صورت کي دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر غلام د خپل قيمت په اندازه سعی او کټه کول واجبيږي چي هغه به د مړي وارث (ځوی) ته ورکوي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا غلام بغير له سعی کولو څخه مفت (بلا عوضه) آزاديږي او هغه به يوه اټانی هم ګټه او سعی نه کوي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي کله د مړي (زيد) ځوی په يوه خبره "صَدَقْتُمَا" سره د غلام او قرضخواه دواړو تصديق وکړی. نو دا څرګنده سوه چي عتق او قرض دواړه يو ځای او د صحت په حالت کي واجب سوي دي. او د صحت په حالت کي واقع کېدونکی عتق پر غلام سعی او ګټه کول نه واجبوي که څه هم مُعتق مقروض وي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي به غلام بغير له سعی کولو څخه آزاديږي.

ولہ أن الإقرار إلخ: دامام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د قرض اقرار او قرض له عتق څخه اقویٰ دی. همدا وجه ده چي که څوک د مرض په حالت کي د قرض اقرار وکړي نو دا اقرار له ټوله مال څخه معتبر ګڼېږي او په ټوله مال کي به نافذيږي، او که څوک د مرض په حالت کي د عتق اقرار وکړي نو هغه له ثلث المال څخه معتبر کيږي. او قاعده دا ده چي اقویٰ ادنیٰ دفع کوي او ليري کوي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي په قرض سره د عتق دليري کولو او دفع کولو تقاضا دا ده چي عتق بالکل باطل او ختم سي. لېکن څرنګه چي عتق تر واقع کېدلو وروسته بيا د باطلېدلو احتمال نه لري. نو ځکه په ظاهري اعتبار سره خو موږ هغه نه باطلوو. لېکن په معنوي او باطني اعتبار سره به هغه باطلوو. او په معنوي اعتبار سره د باطلېدلو صورت همدا دی چي عتق نافذ کړی سی او پر غلام سعايه واجب کړی سي. نو ځکه موږ (امام صاحب) په مذکوره مسئله کي پر غلام سعاية واجب کړې ده.

ولأن الدين إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله بل دليل دی. حاصل يې دا دی چي قرض له عتق څخه مخکي او مقدّم دی: ځکه د حالت صحت وطرف ته د قرض د منسوب کولو لاره صفا ده. حال دا چي د دغه حالت صحت وطرف د عتق د منسوب کولو لاره صفا نه ده: ځکه که هغه ته منسوب کړی سي نو يوه خرابي خو دا لازميږي چي د ابعدُ الاوقات (حالت صحت) وطرف ته به د هغه نسبت وسي. حال دا چي امر حادث د اقرب الاوقات (حالت مرض) وطرف ته منسوب کيږي او بله خرابي دا لازميږي چي دلته معتق مقروض دی (ځکه مخکي په حالت صحت کي قرض موجود دی) او کله چي په مرضُ کي الموت کي مقروض کس غلام آزاد کړي. نو هغه مفت نه آزاديږي (يا په بله وينا دا چي مخکي د مُعتق مقروضُ کېدل په حالت

مرض کې د عتق له مفت واقع کېدلو څخه مانع دي). نو ځکه په دې حواله سره هم دا غلام به مفت نه آزادیږي. بلکې پر هغه به د خپل قیمت په اندازه سعی او ګټه کول او د مړي وارث (څوی) ته ورکول لازم وي.

**که پر مړي یو کس د قرض دعوی وکړي او بل کس د امانت، نو د کوم یوه په باره کې به فیصله کیږي؟**

وَعَلٰی هٰذَا الْخِلَافُ إِذَا مَاتَ الرَّجُلُ وَتَرَكَ أَلْفَ دِرْهَمٍ او پر همدغه اختلاف دي که چیرې یو سړی مړ سو او زر درهمه یې پرېښودل فَقَالَ رَجُلٌ: لِيْ عَلَى الْمَيِّتِ أَلْفُ دِرْهَمٍ دَيْنٌ نو یو سړي وویل: چې زما پر مړي زر درهمه قرض باندي دی وَقَالَ الْآخَرُ: كَانَ لِيْ عِنْدَهُ أَلْفُ دِرْهَمٍ وَدِيْعَةٌ او بل سړي وویل: چې د مړي سره زما زر درهمه امانتاً ایښودل سوي وه فَعِنْدَهُ الْوَدِيْعَةُ أَقْوٰى نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز ودیعت زیات قوي دی وَعِنْدَهُمَا سَوَاءٌ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز [قرض او ودیعت دواړه] سره برابر دي.

**اللغات:** ﴿دَين﴾ قرض. ﴿ودیعة﴾ امانت، هغه مال کوم چې یو چا ته په امانت ایښول سوی وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی مثلاً مړ سو او د هغه میراث او ترکه زر درهمه ده. بیا یو سړی راغلی او د زید وارث ته یې وویل چې زید زما مقروض وو او پر هغه زما زر درهمه قرض باندي وو. او بل کس راغلی او ویې ویل چې زید ته ما زر درهمه په امانت ایښي وه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د امانت والا (صاحب ودیعت) قول معتبر دی او دا زر درهمه به هغه ته ورکول کیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د امانت او قرض دواړه مدعیان په دې زرو درهمو کې برابر شریکان کیږي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې قرضخواه د قرض مدعي دی او د قرض تعلق د عَین سره نه وي بلکې قرض پر ذمه واجب وي (او دلته موجوده زر درهمه عین دي). او د امانت خاوند د امانت (ودیعت) مدعي دی او د امانت تعلق د عین (موجوده زرو درهمو) سره دی. نو په دې حواله سره دلته ودیعت اقوی دی. لهذا په مذکوره مسئله کې چې کله د ودیعت مدعي موجود دی چې د هغه تعلق د عَین سره دی. نو هغه به د قرض مدعي دفع کړي؛ نو ځکه موجوده زر درهمه به هغه (صاحبِ ودیعت) ته ورکول کیږي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې قرضخواه که څه هم د قرض مدعي دی او قرض پر ذمه واجب دی کوم چې د عَین سره تعلق نه لري. خو د مقروض (زید) تر مرګ وروسته د قرضخواه حق وعین (موجوده زرو درهمو) ته منتقل سوی دی چې د امانت خاوند (صاحب ودیعت) د هغه د امانت کېدلو مدعي دی. نو ګوکې دواړه د عَین مدعیان دي. نو ځکه دواړه به په دې زرو درهمو کې شریکان کیږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# فَصْلٌ

**که یو څوک د حقوق الله (روژه، لمونځ، زکاة، حج وغیره) وصیت وکړي نو په کوم ترتیب سره به اداء کول کیږي**

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى بِوَصَايَا مِنْ حُقُوقِ اللهِ تَعَالَى فرمایي: او چا چې له حقوق الله څخه د څو وصتیونو وصیت کړی وي قُدِّمَتِ الْفَرَائِضُ مِنْهَا نو له هغه وصیتونو څخه به فرائض مخکې کول کیږي قَدَّمَهَا الْمُوصِيْ أَوْ أَخَّرَهَا برابره ده موصي هغوی مخکې کړي وي او که یې وروسته کړي وي مِثْلَ الْحَجِّ وَالزَّكَاةِ وَالْكَفَّارَاتِ لکه حج، زکاة او کفارات لِأَنَّ الْفَرِيْضَةَ أَهَمُّ مِنَ النَّافِلَةِ ځکه چې فرض له نفلو څخه زیات مهم دي وَالظَّاهِرُ مِنْهُ الْبِدَايَةُ بِمَا هُوَ الْأَهَمُّ او ښکاره د موصي له طرفه په زیات مهم سره شروع کول دي.

**اللغات:** ﴿قُدِّمت﴾ د تفعیل له بابه د واحد غائب ماضي صیغه ده: مقدّم کېدل، مخکې کول کېدل.

﴿بداية﴾ البداءة: ابتداء او شروع کول، اول کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که د یو سړي پر نمه دالله تعالیٰ څو حقوق مثلاً لمونځونه یا روژې یا حج یا زکاة، کفاره، نذر او صدقه فطر وه، او هغه یې د اداء کولو وصیت وکړی او بیا مړ سو، نو پر وارثانو اداء کول واجب دي چې د مړي له ثلث مال څخه به هغوی اداء کوي او د دې خبرې خیال به ساتل کیږي چې وارثان به تر ټولو مخکې فرائض اداء کوي که څه هم مړي د فرائضو وصیت له نوافلو څخه مؤخر کړی وي. لیکن وارثان به اول صرف فرائض اداء کوي او بیا به نوافلو ته توجّه کوي: ځکه فرائض له نوافلو څخه اهم دي او قاعده دا ده چې اول اهم اداء کول کیږي. بیا تر هغه وروسته چې کوم پر دویم او درېیم نمبر وي، د هغو نوبت راځي، او ظاهرِ حال هم دا دی چې د موصي مقصد د اهم مخکې کول دي (ځکه پر کوم کس چې مثلاً قرض باندې وي. نو هغه عموماً په صدقاتو او خیراتو نه مشغولیږي). نو ځکه دلته چې پر موصي کوم حقوق واجب دي، له هغوی څخه به اول اهم اداء کول کیږي او وروسته به غیر اهم یعني نوافل وغیره اداء کول کیږي.

دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي چي که مذکوره سړي د دغه حقوقو د اداء کولو وصیت نه وو کړی. نو بیا پر وارثانو د هغه اداء کول واجب نه دي، بلکي هغو ته د اداء کولو او نه اداء کولو ترمینځ اختیار دی.

**که ټوله وصیتونه په قوت کي سره برابر وي، نو کوم یو به مخکي کول کیږي؟**

فَإِنْ تَسَاوَتْ فِي الْقُوَّةِ بیا که ټوله وصیتونه په قوت کي سره برابر وي بُدِئَ بِمَا قَدَّمَهُ الْمُوصِيْ نو په هغه وصیت به شروع کول کیږي کوم چي موصي مخکي کړی وي إِذَا ضَاقَ عَنْهَا الثُّلُثُ کله چي ثلث له هغه ټولو وصیتونو څخه تنګ سي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالْأَهَمِّ ځکه ښکاره همدا ده چي موصي به په اهم یوه شروع کوي وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالزَّكَاةِ وَيُقَدِّمُهَا عَلَى الْحَجِّ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي وارث به په زکاة سره شروع کوي او هغه به پر حج مخکي کوي وَهُوَ إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ او همدا له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو راویت دی وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ أَنَّهُ يُقَدِّمُ الْحَجَّ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روایت دا دی چي وارث به حج مخکي کوي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی.

**اللغات**: ﴿بُدِئَ﴾ د فتح له بابه ماضي مجهوله ده: شروع کول، اول کول. ﴿ضَاقَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تنګېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که د موصي ټوله وصیتونه په قوت او مرتبه کي سره برابر وي يعني ټوله فرائض وي، یا ټوله واجبات وي او د میراث ثلث د هغوی د اداء کولو لپاره نا کافي وي، نو په دې صورت کي چي موصي کوم یو مخکي ذکر کړی وي، هغه به اداء کول کیږي، مثلاً د هغه پر ذمه زکاة هم وي او حج هم وي او موصي حج مخکي بیان کړی وي، نو حج به پر زکاة مخکي کول کیږي: ځکه د موصي له بیان څخه همدا ښکاره کیږي (یعني ظاهر حال همدا دی) چي موصي هغه وصیت مخکي کړی دی کوم چي د ده په نېز اهم دی. نو ځکه هغه به مخکي کول کیږي.

وذکر الطحاوي إلخ: امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي که حج او زکاة دواړه د موصي پر ذمه واجب وي، نو وارث به زکاة پر حج مخکي اداء کوي او بیا به حج اداء کوي، همدا له مام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دی او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله بل روایت دا دی چي په دې صورت کي به حج پر زکاة مخکي کول کیږي، او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**يادونه**: کېدای سي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ته يو روايت دا ترلاسه سوی وي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حج به پر زکاة مخکي کول کيږي. کنې په اکثره شروحو او کتابو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دا بيان سوی دی چي د هغه په نېز زکاة به پر حج مخکي کول کيږي.

## د پورتنی مسئلي دلائل

وَجْهُ الْأُوْلٰى أَنَّهُمَا وَإِنِ اسْتَوَيَا فِي الْفَرِيْضَةِ داول روايت دليل دا دی چي حج او زکاة دواړه که څه هم په فرضيت کي سره برابر دي فَالزَّكَاةُ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّ الْعِبَادِ لېکن د زکاة سره د بندګانو حق متعلق دی فَكَانَ أَوْلٰى نو زکاة به اولیٰ وي وَجْهُ الْأُخْرٰى أَنَّ الْحَجَّ يُقَامُ بِالْمَالِ وَالنَّفْسِ د دويم روايت دليل دا دی چي حج په مال او ځان دواړو سره اداء کول کيږي وَالزَّكَاةُ بِالْمَالِ قَصْرًا عَلَيْهِ او زکاة فقط پر مال منحصر په مال سره اداء کول کيږي [يعني زکاة اداء کول صرف پر مال منحصر دي] فَكَانَ الْحَجُّ أَقْوٰى نو ځکه حج به زيات قوي وي ثُمَّ تُقَدَّمُ الزَّكَاةُ وَالْحَجُّ عَلَى الْكَفَّارَاتِ بيا به حج او زکاة پر کفاراتو مخکي کول کيږي لِمَزِيَّتِهِمَا عَلَيْهَا فِي الْقُوَّةِ ځکه دا دواړه [حج او زکاة] په قوت کي پر ټولو کفاراتو افضل دي إِذْ قَدْ جَاءَ فِيْهِمَا مِنَ الْوَعِيْدِ مَا لَمْ يَأْتِ فِي الْكَفَّارَاتِ ځکه د دې دواړو په باره کي داسي وعيدونه دي راغلي دي کوم چي د کفارې په باره کي نه دي راغلي وَالْكَفَّارَةُ فِي الْقَتْلِ وَالظِّهَارِ وَالْيَمِيْنِ مُقَدَّمَةٌ عَلٰى صَدَقَةِ الْفِطْرِ او د قتل او ظهار او يمين کفاره پر صدقهٔ فطر مخکي ده لِأَنَّهُ عُرِفَ وُجُوْبُهَا بِالْقُرْآنِ دُوْنَ صَدَقَةِ الْفِطْرِ ځکه د هغوی وجوب په قرآن سره معلوم سوی دی. نه د صدقهٔ فطر وَصَدَقَةُ الْفِطْرِ مُقَدَّمَةٌ عَلَى الْأُضْحِيَةِ او صدقهٔ فطر [سرسايه] پر قرباني مخکي ده لِلْاِتِّفَاقِ عَلٰى وُجُوْبِهَا وَالْاِخْتِلَافِ فِي الْأُضْحِيَةِ ځکه چي د صدقهٔ فطر پر وجوب اتفاق دی او په قرباني کي اختلاف دی وَعَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ يُقَدَّمُ بَعْضُ الْوَاجِبَاتِ عَلَى الْبَعْضِ او پر همدغه قياس بعضي واجبات به پر بعضو مخکي کول کيږي قَالَ: وَمَا لَيْسَ بِوَاجِبٍ فرمايي: او کوم اوصيتونه

چي واجب نه وي قُدِّمَ مِنْهُ مَا قَدَّمَهُ الْمُوصِيْ نو له هغوی څخه به هغه مخکي کول کيږي کوم چي موصي مخکي کړي وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَصَارَ كَمَا إِذَا صَرَّحَ بِذٰلِكَ او دا داسي سوه لکه موصي چي د هغه صراحت کړی وي.

**اللغات:** ﴿مزية﴾ فضيلت، زياتوب، اهميت (ارزښت)، ﴿عُرف﴾ د ضرب له بابه ماضي مجهوله ده: پېژندل کېدل، معلومېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي که پر موصي حج او زکاة دواړه واجب وي، نو يو روايت دا دی چي زکاة به له حج څخه مخکي کول کيږي (تر حج به مخکي اداء کول کيږي)؛ دليل يې دا دی چي حج او زکاة که څه هم دواړه په فرضيت کي سره برابر دي، لېکن د زکاة سره د حقُ الله تر څنګ حقُ العباد هم متعلق دی، نو ځکه د حج په نسبت به زکاة اولیٰ او اقویٰ وي او د هغه اداء به له حج څخه مخکي کول کيږي.

دويم روايت دا دی چي حج به له زکاة څخه مخکي کول کيږي؛ ځکه حج په مال او ځان دواړه سره اداء کيږي، حال دا چي زکاة صرف په مال سره اداء کيږي، او ښکاره ده چي په کوم عبادت کي مال او ځان دواړه لګول کيږي، دا به له هغه عبادت څخه يقيناً اولیٰ وي چي هلته صرف د مال معامله وي، نو ځکه حج به له زکاة څخه مخکي کول کيږي.

ثم تُقدِّم الخ: د دې حاصل دا دی چي د زکاة، حج او د کفارې د اجتماع په صورت کي به حج او زکاة له کفارې څخه مخکي کول کيږي؛ ځکه حج او زکاة د اسلام په ارکانو کي شامل دي او هغو ته پر کفاراتو ترجيح او فوقيت حاصل دی. همدارنګه د حج او زکاة نه اداء کولو په هکله چي کوم وعيدونه وارد سوي دي، هغه د کفاراتو په سلسله کي نه دي وارد سوي، نو ځکه حج او زکاة به له کفاراتو څخه مخکي اداء کول کيږي.

ها! په کفاراتو کي به بعضي پر بعضو مخکي کول کيږي مثلاً د قتل کفاره د يمين او ظهار له کفارې څخه اقویٰ ده؛ ځکه د قتل په کفاره کي د "رقبة مؤمنة" (مؤمن غلام آزادول) شرط دي، او د يمين کفاره بيا د ظهار له کفارې څخه مخکي ده؛ ځکه چي د يمين کفاره د الله د نامه د بې حرمتۍ کولو په خاطر واجبيږي، حال دا چي د ظهار کفاره پر خپل ځان د ښځي د حرامولو په وجه واجبيږي.

او کفارات بيا له صدقةُ الفطر څخه اقویٰ او مقدّم دي؛ ځکه د کفاراتو وجوب په کتابُ الله سره دی او د صدقةُ الفطر وجوب په حديث سره دی، او په کتابُ الله سره ثابت شی له هغه شي څخه اقویٰ دی کوم چي په حديث سره ثابت وي.

وصدقة الفطر إلخ: او صدقة الفطر له قرباني (اضحیه) څخه اقوی او مخکي ده؛ ځکه د صدقة الفطر پر وجوب د فقهاؤ اتفاق دی. حال دا چي د قرباني په وجوب کي د فقهاؤ اقوال مختلف دي. او متفق علیه شی له مختلف فیه شي څخه اقوی وي. وعلی هٰذا القیاس: یعني همدا ډول د یوې نوع چي څومره اُمور پر مړي واجب وي، هغوی به د خپل مراتبو مطابق مخکي او وروسته کول کیږي. لکه څرنگه چي په کفاراتو کي د دې مثال ذکر سو.

ومالیس بواجب إلخ: د دې حاصل دا دی چي کوم وصیتونه واجب نه وي. بلکي د نفل او تطوّع له قبیلې څخه وي، په هغوی کي به هاغه وصیت مخکي کول کیږي کوم چي موصي مخکي بیان کړی وي. مثلاً که موصي د خپل ځان له طرفه د نفلي حج او نفلي اعتاق وصیت کړی وي. نو په دې صورت کي چي موصي کوم یو مخکي بیان کړی وي، هغه به وارثان هم مخکي کوي؛ دلیل مخکي تېر سو چي ظاهرِ حال همدا دی چي موصي هغه یو مخکي بیانوي کوم چي د ده په نېز اهم وي (یعني کوم چي زیات مهم وي)، نو ځکه هغه به مخکي کول کیږي. لکه څرنگه چي په هغه صورت کي مخکي کول کیږي کله چي موصي دا خبره صراحتاً (په ښکاره الفاظو) کړې وي چي ما کوم وصیت مخکي بیان کړی دی. تاسي هم هاغه مخکي اداء کړئ!. نو همداسي کله چي هغه د دې خبري صراحت نه وي کړی لېکن په ذکر او بیان کي یې یو مخکي کړی وي. نو هاغه به مخکي کول کیږي.

### په حق الله او حق العبد کي به کوم یو مخکي کول کیږي؟

قَالُوْا: إِنَّ الثُّلُثَ يُقْسَمُ عَلٰى جَمِيْعِ الْوَصَايَا فقهاؤ فرمایلي دي: چي ثلث به پر ټولو وصیتونو تقسیمول کیږي مَا كَانَ لِلّٰهِ تَعَالٰى وَمَا كَانَ لِلْعَبْدِ [یعني] کوم وصیتونه چي د الله تعالیٰ لپاره وي او کوم چي د بنده لپاره وي فَمَا أَصَابَ الْقُرَبَ نو کوم مقدار چي قرباتو ته ورسیږي صُرِفَ إِلَيْهَا عَلَى التَّرْتِيْبِ الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ نو هغه به قرباتو ته په هاغه ترتیب سره ګرځول کیږي [ېکښي مصرفول کیږي] کوم چي موږ ذکر کړی وَيُقْسَمُ عَلٰى عَدَدِ الْقُرَبِ او هغه [ثلث] به د قرباتو پر شمېر تقسیمول کیږي وَلَا يُجْعَلُ الْجَمِيْعُ كَوَصِيَّةٍ وَاحِدَةٍ او ټوله قربات به د یوه وصیت په څېر نه ګرځول کیږي لِأَنَّهُ

إِنْ كَانَ الْمَقْصُوْدُ بِجَمِيْعِهَا رِضَا اللهِ تَعَالٰى ځکه که څه هم په ټولو سره د الله رضا مقصود ده فَكُلُّ وَاحِدَةٍ فِيْ نَفْسِهَا مَقْصُوْدٌ لېکن هر یو قربت بذات خود مقصود دی فَتَنْفَرِدُ كَمَا تَنْفَرِدُ الْوَصَايَا الْآدَمِيِّيْنَ نو ځکه هر قربت به داسې منفرد کیږي لکه څرنګه چې د څو خلګو وصیتونه منفرد کیږي.

**اللغات**: ﴿أصاب﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسېدل (په حصه کې راتلل)، ﴿صُرِف﴾ د ضرب باب ماضي مجهوله ده: ګرځول، مصرفول، خرچول، ﴿ينفرد﴾ د انفعال د باب مضارع ده: منفرد کېدل، یوازینی کېدل، علیحده کېدل او جلا کېدل.

**تشریح**: له دې ځایه مصنف رَحِمَهُ الله نوې مسئله بیان کړې ده، صورت د مسئلې دا دی که یو سړي د حقوقُ الله او حقُ العبد دواړو په باره کې څو وصیتونه کړي وي مثلاً د حج، زکاة او کفارې وصیت یې کړی وي او د دې تر څنګ د یو بنده مثلاً د زید لپاره یې د ثلث مال وصیت کړی وي، نو دلته اول درې حقوقُ الله دي او څلورم وصیت د حقُ العبد دی، په داسې صورت کې به کومه طریقه اختیارول کیږي؟.

نو فرمایي چې اولاً به ثُلث څلور حصې کړل سي او له هغه څخه به یوه حصه د حقُ العبد لپاره وټاکل سي یعنې زید ته به ورکول سي، او د حقوقُ الله (قرباتو) لپاره چې کومې درې حصې پاته سوې، نو په دوی کې به هاغه طریقه اختیارول کیږي کوم چې څه مخکې بیان سوه، یعنې په مذکوره درېو قرباتو (حج، زکاة او کفاره) کې به زکاة مخکې کول کیږي، یعنې په پاته درېو حصو کې به له مذکوره درېو قرباتو څخه اول زکاة اداء کول کیږي، د زکاة تر اداء کولو وروسته چې د ثلث کوم مقدار پاته سو، نو بیا به په هغه کې حج له کفارې څخه مخکې کول کیږي، او د کفارې لپاره که چیري څه مقدار پاته سو، نو هغه به هم اداء کول کیږي، کنې نه به اداء کول کیږي.

(نو د پورتنی تشریح په رڼا کې د عبارت حاصل دا سو چې ثلث ته به پر ټولو وصیتونو یعنې د حقوق الله او حق العبد پر مجموعې تقسیم کړی سي یعني د دې مجموعې پر عددِ رؤوس به تقسیم کړی سي. نو د ثلث کوم مقدار چې د حقوق الله په حصه کې راسي. په هغه مقدار کې به له حقوق الله څخه اول هغه حق مخکې کړی سي چې د هغه د مخکې کولو بیان تېر سو).

ويقسم على عدد الخ: یعني ثلث به د قرباتو (حقوق الله) پر عدد تقسیمول کیږي او داسي به نه کیږي چي ټوله قربات یو وصیت وشمېرل سي او ثلث صرف دوو حصو کړل سي (بلکي داسي به کیږي لکه په پورتني صورت کي چي درې سره قربات جلا وصیتونه شمېرل سوي دي او څلور حصې کړل سوي دي. درې حصې د قرباتو [حقوق الله] لپاره او یوه حصه د حق العبد لپاره)، ځکه که څه هم په حقوق الله کي د ټولو وصیتونو مقصود ثواب او رضاء الهي ده، لېکن د هر قربت مقصود جلا دی، نو ځکه هر یو به جلا، جلا شمېرل کیږي، لکه څرنګه چي کله د مختلفو خلګو لپاره وصیت سوی وي، نو ټوله جلا، جلا شمېرل کیږي، مثلاً یو څوک د فقیرانو او مسافرانو او لارویانو لپاره وصیت وکړي، نو له دوی څخه هر فریق جلا شمېرل کیږي او د هر فریق لپاره یوه جلا حصه ایستل کیږي که څه هم د ټولو مقصود قربت دی، نو همداسي به په څو قرباتو کي هم هر قربت جلا شمېرل کیږي.

## د حج د وصیت پوره کولو طریقه

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى بِحَجَّةِ الْإِسْلَامِ فرمایي: او چا چي د حج اسلام وصیت کړی وي أَحَجُّوْا عَنْهُ رَجُلًا مِنْ بَلَدِهٖ نو وارثان به د هغه [موصي] له طرفه د هغه له ښار څخه په یو سړي حج کوي يَحُجُّ رَاكِبًا چي هغه سړی به په سپارلۍ سره حج کوي لِأَنَّ الْوَاجِبَ لِلّٰهِ تَعَالٰى الْحَجُّ مِنْ بَلَدِهٖ ځکه واجب د الله تعالیٰ لپاره د هغه [موصي] له ښار څخه حج کول دي [یعني پر هغه له خپل ښار څخه د الله تعالیٰ لپاره حج واجب سوی دی] وَلِهٰذَا يُعْتَبَرُ فِيْهِ مِنَ الْمَالِ مَا يَكْفِيْهِ مِنْ بَلَدِهٖ په همدې وجه په هغه [حج واجبېدلو] کي دومره مال معتبر دی کوم چي د سړي لپاره د هغه له ښار څخه کافي وي وَالْوَصِيَّةُ لِأَدَاءِ مَا هُوَ الْوَاجِبُ عَلَيْهِ او وصیت د هغه شي د اداء کولو لپاره وي کوم چي پر سړي واجب وي وَإِنَّمَا قَالَ رَاكِبًا او امام قدوري رَحِمَهُ الله [په دې وجه] "راکبًا" [په سپارلۍ سره] فرمایلي دي لِأَنَّهٗ لَا يَلْزَمُهٗ أَنْ يَحُجَّ مَاشِيًا ځکه چي پر سړي په پښو [پیاده] حج کول لازم نه دي فَانْصَرَفَ إِلَيْهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِيْ وَجَبَ عَلَيْهِ نو ځکه د هغه [بل سړي] وطرف ته به په هغسي توګه حج ګرځي په کومه توګه چي خپله پر سړي [موصي] واجب دی.

**اللغات:** ﴿راکب﴾ د فتح د باب فاعل دی: سپرېدونکی، سپور. ﴿ماشي﴾ د ضرب د باب فاعل دی: په پښو (پیاده) تلونکی. ﴿انصرف﴾ د انفعال د باب ماضي ده: ګرځېدل، راجع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که پر يو سړي حج فرض سو. لېکن په خپل ژوند کي هغه حج نه وکړی سو او د مرګ په وخت کي هغه دا وصيت وکړی چي زما له طرفه دي حج وکړی سي، نو د هغه پر وارثانو لازم دي چي د موصي له طرفه د بل سړي په ذريعه حج وکړي او هغه ته دومره مال او پيسې ورکړي چي هغه سړی د سپارلي په ذريعه د موصي له ښار څخه حج وکړی سي؛ ځکه دا حج بدل دی کوم چي د موصي له طرفه اداء کول کيږي، او څرنګه چي پر موصي له خپل ښار څخه د سپارلي په ذريعه حج کول لازم وه، ځکه چي د موصي سره مال موجود وو، په همدې وجه پر هغه حج فرض سوی وو، لهذا په کومه توګه چي اصل حج فرض وو، نو حج بدل به هم په هغسې توګه اداء کوي د دې لپاره چي بدل په هره توګه د اصل مماثل سي.

**که له ثلث مال څخه د حج وصيت پوره نه کړی سي نو کومه طريقه به اختياول کيږي؟**

قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَبْلُغِ الْوَصِيَّةُ النَّفَقَةَ فرمايي: که چيري وصيت [د حج] نفقې ته نه ورسيږي [يعني که چيري د وصيت مقدار (ثلث) د حج د خرڅې لپاره کافي نه وي] أَحَجُّوا عَنْهُ مِنْ حَيْثُ تَبْلُغُ نو وارثان به د هغه [موصي] له طرف څخه له هغه ځايه حج کوي له کومه ځايه چي رسېدلای سي [يعني له کوم ځای او ښار څخه چي د وصيت مقدار د حج اداء کولو لپاره کافي وي] وَفِي الْقِيَاسِ لَا يُحَجُّ عَنْهُ او په قياس کي د هغه [موصي] له طرفه به حج نه کول کيږي لِأَنَّهُ أَمَرَ بِالْحَجَّةِ عَلَى صِفَةٍ عَدِمْنَاهَا فِيهِ ځکه موصي په داسي صفت سره د حج کولو حکم کړی دی چي هغه صفت موږ په دې مال کي معدوم مېندلی دی غَيْرَ أَنَّا جَوَّزْنَاهُ خو موږ دا وصيت [په دې وجه] جائز ګرځولی دی لِأَنَّا نَعْلَمُ أَنَّ الْمُوصِيَ قَصَدَ تَنْفِيذَ الْوَصِيَّةِ ځکه چي موږ ته معلومه ده چي موصي د وصيت نافذولو اراده کړې ده فَيَجِبُ تَنْفِيذُهَا مَا أَمْكَنَ نو ځکه د هغه نافذول به واجب وي تر څو چي ممکنه وي وَالْمُمْكِنُ فِيهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او په دې کي هاغه صورت [او طريقه] ممکنه ده کوم چي موږ ذکر کړه وَهُوَ أَوْلَى مِنْ إِبْطَالِهَا رَأْسًا او هغه صورت د وصيت له بالکل باطلولو څخه زيات غوره دی وَقَدْ فَرَّقْنَا بَيْنَ هَذَا وَبَيْنَ الْوَصِيَّةِ بِالْعِتْقِ مِنْ قَبْلُ او موږ د دې [حج د وصيت] او د عتق د وصيت په مېنځ کي فرق مخکي بيان کړی دی.

**اللغات**: ﴿نفقة﴾ خرچه (خرڅ)، لګښت. ﴿عدمنا﴾ د سمع له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: نېستول، نه مېندل. ﴿جوّزنا﴾ د تفعيل له بابه مخکنۍ صيغه ده: جائز ګرځول، اجازه ورکول. ﴿رأسًا﴾ بالکل (بالکليه)، په پوره توګه.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که یو سړي (مثلاً زید) وصیت وکړی چې زما په مال سره دې زموږ له ښار څخه زما له طرفه حج وکړی سي، لیکن د هغه د مال ثلث د هغه (زید) له ښار څخه د حج لپاره ناکافي وو خو په هغومره مال له کابل ښار څخه حج کېدلای سو، نو استحساناً به له کابل څخه حج کول کیږي، لیکن د قیاس تقاضا دا ده چې په دې صورت کې به د موصي (زید) له طرفه حج نه کول کیږي؛ ځکه موصي له خپل ښار څخه د حج کولو وصیت کړی دی او له کابل څخه په حج کولو کې دا صفت معدوم دی، لهذا من کلّ وجه د هغه وصیت نافذول ممکن نه دي، نو ځکه دا وصیت باطل دي.

د استحسان دلیل دا دی چې د موصي مقصد د حج فریضه اداء کول دي، لهذا تر څو چې او له کومه ځایه چې دا ممکنه وي، دغه وصیت به پوره کول کیږي، او دا په هغه صورت کې پوره کیږي کوم چې موږ بیان کړی دی چې د موصي له ښار څخه بغیر له بل ښار (کابل) څخه حج وکړی سي او وصیت بالکل باطل نه کړی سي؛ ځکه قاعده دا ده چې "ما لایُدرَكُ کله لایُترَكُ کله" یعني کوم شی چې د خپل ټولو لوازماتو سره نه سي حاصلول کېدای (لکه دلته چې حج خاص د موصي له ښار څخه نه سي کېدلای)، هغه شی بالکلیه پرېښوول کېدای هم نه سي.

وقد فرّقنا الخ: صاحب د هدایې فرمایي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په وصیت بالحج او وصیت بالعتق کې چې کوم فرق دی، هغه مخکې موږ بیان کړی دی.

## د حج په لاره کې د مړ کېدونکي کس د حج وصیت کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ خَرَجَ مِنْ بَلَدِهِ حَاجًّا فرمایي: او څوک چې له خپل ښار څخه حج کونکی [د حج په اراده] ووتی فَمَاتَ فِي الطَّرِيقِ بیا په لاره کې مړ سو وَأَوْصَى أَنْ يُحَجَّ عَنْهُ او دا وصیت یې وکړی چې د هغه له طرفه دې حج وکړی سي يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ بَلَدِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د هغه له طرفه به د هغه له خپل ښار څخه حج کول کیږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ اِسْتِحْسَانًا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې د هغه له طرفه به له هغه ځای څخه حج کول کیږي چیري چې هغه رسېدلی وي بناء بر استحسان وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا مَاتَ الْحَاجُّ عَنْ غَيْرِهِ فِي الطَّرِيقِ او پر همدغه اختلاف دي کله چې د بل چا له

طرفه حج کونکی کس په لاره کي مړ سي لَهُمَا: أَنَّ السَّفَرَ بِنِيَّةِ الْحَجِّ وَقَعَ قُرْبَةً د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي د حج په نیت سره سفر قربت واقع سو وَسَقَطَ فَرْضُ قَطْعِ الْمَسَافَةِ بِقَدْرِهِ او د هغه په اندازه د مسافې پرېکولو فریضه ساقطه سوه وَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللهِ او د الله جل جلاله په نېز د هغه [مړ سوي موصي] لپاره اجر ثابت سو فَيَبْتَدِئُ مِنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ نو ځکه [اوس] به له هاغه ځای ځخه شروع کیږي كَأَنَّهُ مِنْ أَهْلِهِ ګواکي [یعني داسي به ګڼل کیږي] چي موصي [اوس] د هغه ځای له خلګو څخه دی بِخِلَافِ سَفَرِ التِّجَارَةِ په خلاف د تجارت د سفر لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ قُرْبَةً ځکه چي هغه قربت نه واقع کیږي فَيُحَجُّ عَنْهُ مِنْ بَلَدِهِ نو ځکه د هغه [تاجر موصي] له طرفه به د هغه له خپل ښار څخه حج کول کیږي وَلَهُ: أَنَّ الْوَصِيَّةَ تَنْصَرِفُ إِلَى الْحَجِّ مِنْ بَلَدِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي دا وصیت د موصي له خپل ښار څخه د حج کولو وطرف ته ګرځي عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چي [مخکي] موږ بیان کړی أَدَاءً لِلْوَاجِبِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي وَجَبَ [د دې لپاره] چي واجب په هغه توګه اداء کړی سي په کومه توګه چي واجب سوی دی [یا په بله وینا دا چي حج په کوم صفت او طریقه سره پر هغه واجب سوی دی. په هغه صفت سره اداء کړی سي].

**اللغات:** ﴿حاجّ﴾ د نصر د باب فاعل دی: حج کونکی. ﴿قربة﴾ نېکي، د نېکۍ کار، عبادت. ﴿تنصرف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ګرځېدل، راجع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که یو سړی (مثلاً زید) له خپل کور څخه د حج په اراده ووتی. په لاره کي هغه ناروغه سو او هغه دا وصیت وکړی چي زما له طرفه دي حج وکړی سي بیا هغهٔ مړ سو، نو د هغه (زید) پر وارثانو د هغه له طرفه حج اداء کول لازم دي. او په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د هغه (زید) له طرفه به حج د هغه له خپل ښار څخه اداء کول کیږي یعني د حج اداء کولو لپاره به یو کس د هغه له ښار څخه استول کیږي. امام زفر رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی. لېکن صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په کوم ځای کي دا سړی (زید) وفات سوی دی. له هغه ځاي څخه به د ده له طرفه د حج لپاره یو څوک استول کیږي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دا قول پر استحسان مبني دی.

همدارنګه که یو څوک د موصي له طرفه د حج بدل لپاره روان وي او په لاره کي هغه وفات سي، نو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه وفات له ځای څخه به یو څوک استول کیږي، لیکن د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نیز به د موصي له ښار څخه استول کیږي.

لهما إلخ: د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي کله یو څوک له کور څخه د حج په نیت وتلی وي، نو څومره مسافه چي هغه پرېکړې وي، هغه ته له قربت شمېرل کیږي او د هغه مسافې په اندازه د ده له غاړي څخه د مسافې فریضه ساقطیږي او ده ته د هغومره مسافې پرېکولو پوره ثواب حاصلیږي، لهذا له کومه ځایه چي د مړي (زید) له طرفه مسافه پاته سوې وي، له هاغه ځایه به یو څوک د حج اداء کولو لپاره استول کیږي، او داسي به ګڼل کیږي چي مړی (زید) د همدې ځای اوسېدونکی دی، نو ځکه د هغه له طرفه به له همدې ځایه حج کول کیږي.

د دې په خلاف که یو څوک د تجارت په نیت مکې مکرّمې ته روان وي او په لاره کي هغه ناروغه سي او په همدې دوران کي هغه د حج وصیت وکړي او مړ سي، نو بالاتفاق د هغه له طرفه به د هغه له خپل ښار څخه حج کول کیږي؛ ځکه دغه کس چي څومره مسافه پرېکړې ده، هغه قربت نه ده واقع سوې او نه په دې مقدار کي د هغه له طرفه فریضه ساقطه سوې ده، نو ځکه د هغه له طرفه بالاتفاق د هغه له ښار څخه حج کول کیږي.

وله أن الوصیة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي کله حاجي د حج له پوره کولو څخه مخکي مړ سي، نو د هغه سفر د حج لپاره نه شمېرل کیږي بلکي هغه او تاجر دواړه سره برابر دي، لو څرنګه چي د تاجر په وصیت کي د هغه له ښار څخه حج کول کیږي، همداسي به د دغه کس (زید) په وصیت کي هم د حج ابتداء د هغه له ښار څخه کیږي؛ ځکه مخکي دا مسئله ذکر سوه چي که یو څوک د حج وصیت وکړي، نو حج به د هغه له ښار څخه کول کیږي د دې لپاره چي حج په کومه توګه پر اصل واجب وو، په هاغه توګه سره بدل او نائب هم دا حج بدل اداء کړي.



# بَابُ الْوَصِيَّةِ لِلْأَقَارِبِ وَغَيْرِهِم

(دا) باب د قريبانو او غير قريبانو لپاره د وصيت كولو (په بيان كي) دى

**تشریح:** مخکي تر دې د عامو خلکو لپاره د وصيت کولو مسائل بيان سول، اوس په دې باب کي د خاصو خلکو لپاره د وصيت کولو مسائل بيانول کيږي او دا مُسلمه خبره ده چي عام او اکثر له خاص څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د عموم والا بابونه مخکي بيان کړي دي، اوس له دې ځايه مخصوص بابونه بيانوي. (احسن الهدايه)

## د همسايه ګانو لپاره د وصيت کولو بيان

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى لِجِيرَانِهِ فرمايي: او څوک چي د خپلو همسايه ګانو لپاره وصيت وکړي فَهُمُ الْمُلَاصِقُونَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [مراد د] هغوی جوخت [د کور سره متصل] همسايه ګان دي وَقَالَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي هُمُ الْمُلَاصِقُونَ وَغَيْرُهُمْ مِمَّنْ چي [مراد د] هغوی جوخت همسايه ګان دي او غير جوخت همسايه ګان دي يعني هغه خلک يَسْكُنُ مَحَلَّةَ الْمُوصِي وَيَجْمَعُهُمْ مَسْجِدُ الْمَحَلَّةِ كوم چي د موصي په محله کي اوسيږي او کوم چي د محلې مسجد هغوی جمع کوي وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَقَوْلُهُ قِيَاسٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول قياس دی لِأَنَّ الْجَارَ مِنَ الْمُجَاوَرَةِ ځکه چي جار له مجاورة څخه [مشتق] دی وَهِيَ الْمُلَاصَقَةُ حَقِيقَةً او مجاورة په حقيقت کي جوختوالی [او اتصال] دی وَلِهٰذَا يَسْتَحِقُّ الشُّفْعَةَ بِهٰذَا الْجِوَارِ په همدې وجه جار په همدغه [ملاصق] جوار سره [يعني جار ملاصق] د شفعې مستحق کيږي وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ صَرْفُهُ إِلَى الْجَمِيعِ او ځکه کله چي د تمام همسايه ګانو وطرف ته د وصيت ګرځول ناممکن دي يُصْرَفُ إِلَى أَخَصِّ الْخُصُوصِ نو هغه به ګرځول کيږي تر ټولو زيات خاص [ځانګړي] همسايه ته وَهُوَ الْمُلَاصِقُ او هغه [اخص الخصوص] جوخت همسايه دی [يعني جار ملاصق] وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ هٰؤُلَاءِ كُلَّهُمْ يُسَمَّوْنَ جِيرَانًا عُرْفًا د استحسان دليل دا دی چي هغوی ټوله په عُرف کي په همسايه

ګانو سره نومول کیږي [یعني په عرف کي مذکوره ټولو کسانو ته جیران ویل کیږي] وَقَدْ تَأَيَّدَ بِقَوْلِهِ ﷺ [1]: «لَا صَلَاةَ لِجَارِ الْمَسْجِدِ إِلَّا فِي الْمَسْجِدِ» او د نبي کریم ﷺ په دې فرمان سره د دې تائید کیږي: چي د مسجد د همسایه لمونځ نه کیږي مګر په مسجد کي وَفَسَّرَهُ بِكُلِّ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ او [حضرت علي ﷺ] د دې [جار] تفسیر په هر هغه کس سره کړی دی کوم چي اذان اوري وَلِأَنَّ الْمَقْصِدَ بِرُّ الْجِيرَانِ او ځکه چي [د موصي] مقصود د همسایه ګانو سره نېکي کول دي وَاسْتِحْبَابُهُ يَنْتَظِمُ الْمُلَاصِقَ وَغَيْرَهُ او د نېکي مستحب کېدل ملاصق او غیر ملاصق دواړو همسایه ګانو لره شامل دي إِلَّا أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الِاخْتِلَاطِ خو له اختلاط څخه چاره نشته [یعني د موصي او موصیٰ لهٗ همسایه تر مینځ څه نا څه اختلاط ضروري دی] وَذَلِكَ عِنْدَ اتِّحَادِ الْمَسْجِدِ او دا اختلاط [دلته] د مسجد د یو والي په وخت کي دی.

**اللغات:** ﴿جیران﴾ جمع د جَار ده: همسایه. ﴿ملاصقون﴾ د مفاعلې له بابه د جمع مذکر فاعل صیغه ده: جوخت، متصل، یو د بل سره لګېدلی. ﴿مجاورة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: متصل کېدل، ور سره لګېدل. ﴿یُسمّون﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر غائب مضارع مجهول صیغه ده: نومول کېدل، بلل کېدل. ﴿تأیّد﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: قوي کېدل، تائید والا کېدل. ﴿نداء﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، نَادَىٰ يُنَادِي مُنَادَاةً وَنِدَاءً: رابلل، مراد: اذان. ﴿بِرّ﴾ د نصر د باب مصدر دی. بَرَّ بِرًّا وَمَبَرَّةً: نېکي کول، اطاعت کول، ښه سلوک کول. ﴿لا بُدّ﴾ چاره نشته. ضروري ده.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خالد دا وصیت وکړي چي زما له مال څخه یو ثلث (دریمه حصه) زما د همسایه ګانو لپاره ده. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له دې څخه هغه همسایه ګان مرادیږي چي د هغوی کورونه د موصي (خالد) د کور سره جوخت او متصل وي. او قیاس هم د دې تقاضا کوي. لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د متصلو همسایه ګانو سره، سره هغه همسایه ګان هم مرادیږي کوم چي د موصي په محله (کلي) کي اوسیږي او هغه خلک هم مرادیږي کوم چي د محلې په مسجد کي لمونځونه کوي. او دا قول پر استحسان مبني دی.

[1] تخریج: أخرجه الحاکم في المستدرك في كتاب الصلاة، حدیث رقم: ۸۹۸/ ۲۴۵.

دامام صاحب رَحِمَهُ الله د قول دلیل دا دی چې لفظ د "جَار" له مجاورة څخه مشتق دی او د مجاورة حقیقي او اصلي معنیٰ ده: ملاصقة او اتصال. لهذا دغه معنیٰ ته په کتلو سره چې د کومو همسایه ګانو کورونه د موصي د کور سره جوخت او متصل وي، صرف هغوی به د دغه وصیت مستحق وي، همدا وجه ده چې په شفعه کې هم اول صرف جارِ ملاصق مستحق کیږي او د هغه په وجود کې د محلې یا د مسجد همسایه د شفعې نه مستحق کیږي، لهذا جارِ ملاصق چې څرنګه نور همسایه ګان له شفعې څخه محروم کوي، همداسې به یې له وصیت څخه هم محروم کوي.

ولأنه لمّا تعذر إلخ: دامام صاحب رَحِمَهُ الله دویم دلیل دا دی چې موصي د مطلقو همسایه ګانو لپاره وصیت کړی دی او په دغه اطلاق کې د هغه تمام همسایه ګان شامل دي، خو څرنګه چې تمام همسایه ګانو ته له ثلث څخه حصه ورکول ناممکن او متعذر دي، نو ځکه وصیت به د مطلق فردِ کامل یعني د اخصُ الخاص همسایه ګانو وطرف ته ګرځول کیږي، او اخصُ اخاص همسایه ګانَ هماغه دي چې کورونه یې د موصي د کور سره جوخت او متصل وي، نو ځکه په دې حواله سره به هم له جیران څخه ملاصق او متصل همسایه ګان مرادیږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دلیل دا دی چې کوم خلک په یوه محله کې اوسیږي او په یوه مسجد کې لمونځونه کوي، عُرفاً هغوی ټولو ته یو د بل همسایه ګان ویل کیږي؛ د دې تائید د نبي کریم ﷺ په دې فرمان سره هم کیږي "لاصلاة لجَار المسجد إلّا في المسجد" چې د مسجد د همسایه لمونځ صرف په مسجد کې قبلیږي او له حضرت علي رضی الله عنه څخه د دې تفسیر دا نقل سوی دی چې کوم څوک هم د مسجد اذان اوري هغه جَار دی، له دې څخه معلومه سوه چې جَار صرف هغه کس نه دی چې کور یې د مسجد سره متصل وي، نو همدغسې په مذکوره مسئله کې به هم د جَار او جیران اطلاق د هغه همسایه ګانو سره خاص نه وي چې د هغوی کورونه د موصي د کور سره متصل وي. بلکې په دې کې به هغه ټول خلک داخلیږي کوم چې د موصي د محلې اوسېدونکي وي او د هغه د مسجد لمونځ کونکي وي.

ولأن المقصد إلخ: دویم دلیل دا دی چې په دغه وصیت سره د موصي مقصد دا دی چې د خپلو همسایه ګانو سره نېکي او احسان وکړي او دا مستحب کار دی، لېکن دغه د نېکۍ مستحب کېدل فقط د جارِ ملاصق لپاره مخصوص نه دی، بلکې ملاصق او غیرِ ملاصق دواړو لره شامل دي، او پاته سوه دا خبره چې د موصي او موصیٰ لهٗ همسایه تر مینځ څه نا څه اختلاط کېدل خو پکار دي، نو فرمایي

دلته (د غیر ملاصق سره) اختلاط په مسجد سره راځي یعني په یوه مسجد کې د لمونځ کولو په وجه اختلاط ثابت دی.

## د همسایه په باره کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله رایه او د هغه جواب

وَمَا قَالَهُ الشَّافِعِيُّ: اَلْجِوَارُ إِلَى أَرْبَعِيْنَ دَارًا بَعِيْدٌ او کوم څه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله ویلي دي: چې همسایه والی تر څلوېښتو کورونو پورې دی دا لیرې خبره ده وَمَا يُرْوٰى [1] فِيْهِ ضَعِيْفٌ او په دې باره کې چې کوم حدیث روایت کیږي هغه ضعیف دی قَالُوْا: وَيَسْتَوِيْ فِيْهِ السَّاكِنُ وَالْمَالِكُ مشایخو فرمایلي دي: چې په دې [جَار (همسایه)] کې اوسېدونکی او مالک سره برابر دي [یعني ساکن کوم چې په کور کې د کرایې، غیره په توګه اوسیږي او د کور اصلي مالک وي دواړه سره برابر دي] وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى وَالْمُسْلِمُ الذِّمِّيُّ [همدارنګه] نر او ښځه او مسلمان او ذمي [سره برابر دي] لِأَنَّ اِسْمَ الْجَارِ يَتَنَاوَلُهُمْ ځکه چې نوم د "جَار" دوی ټولو لره شاملیږي وَيَدْخُلُ فِيْهِ الْعَبْدُ السَّاكِنُ عِنْدَهُ او په دې [جَار] کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز اوسېدونکی غلام هم داخلیږي لِإِطْلَاقِهِ ځکه چې [لفظ د] جَار مطلق دی وَلَا يَدْخُلُ عِنْدَهُمَا او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا غلام نه [پکښې] داخلیږي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَهُ وَصِيَّةٌ لِمَوْلَاهُ ځکه چې د غلام لپاره وصیت د هغه د مالک لپاره وصیت دی وَهُوَ غَيْرُ سَاكِنٍ حال دا چې مالک اوسېدونکی نه دی.

**اللغات:** ﴿جوار﴾ همسایه والی (همسایه کېدل). ﴿ساكن﴾ د ضرب د باب فاعل دی: اوسېدونکی. استوګن. ﴿الذَّكَر﴾ مذکر.

**تشریح:** فرمایي چې له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه کوم دا خبره نقل سوې ده چې جوار او همسایه والی تر څلوېښتو کورونو پورې دی یعني له هر طرف څخه تر لسو کورونو پورې (یعني له هر طرف څخه لس کورونه د کور په جوار کې داخل دي او د هغوی اوسېدونکي جیران [همسایه ګان] شمېرل کیږي). دا خبره له فهم څخه لیرې ده او په دې باره کې چې امام شافعي رَحِمَهُ الله په کوم روایت سره دلیل نیولی دی

هغه ضعیف دی. او امام شافعي رَحِمَهُ الله د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دې روایت سره دلیل نیولی دی کوم چي په بیهقي کي نقل سوی دی "عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عن النبي ﷺ قال: أوصاني جبرئيل عليه السلام بالجار إلى أربعين دارا عشرة من هٰهنا وعشرة من هٰهنا وعشرة من هٰهنا وعشرة من هٰهنا" لېکن دا روایت ضعیف او ناقابلِ استدلال دی، ځکه د دې په راویانو کي یو رَواي منکر الحدیث دی.

**قالوا ویستوي إلخ:** مشایخ رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په لفظ د "جَار" کي مالک او کرایه دار، نر او ښځه، مسلمان او ذمي ټوله داخلیږي، ځکه چي لفظ د "جَار" دوی ټولو لره شامل دی. همدارنګه که یو غلام د موصي په محله کي په کرایه اوسیږي. نو هغه هم په جَار کي داخلیږي، ځکه لفظ د "جَار" مطلق دی. لېکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز غلام په هغه کي نه داخلیږي، ځکه د غلام لپاره چي کوم وصیت سوی دی. هغه په حقیقت کي د هغه د مالک لپاره وصیت دی او مالک یې د دې محلې اوسېدونکی نه دی. نو ځکه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز عبد ساکن په وصیت کي نه داخلیږي.

### د خسر خېلو مصداق (د اصهارُ په وصیت کي کوم کسان داخلیږي؟)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِأَصْهَارِهِ فرمایي: او څوک چي د خپل خسر خېلو [خسرګنیو] لپاره وصیت وکړي فَالْوَصِيَّةُ لِكُلِّ ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنِ امْرَأَتِهِ نو دا وصیت د هغه د ښځي د هر ذو رحم محرم قریب لپاره دی لِمَا رُوِيَ: أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ لَمَّا تَزَوَّجَ صَفِيَّةَ[1] ځکه روایت سوی دی: چي کله نبي ﷺ د حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره نکاح وکړه أَعْتَقَ كُلَّ مَنْ مَلَكَ مِنْ ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهَا نو هر هغه کس آزاد ول وکړه کوم چي د هغې د یو ذو رحم محرم مالک وو [یعني د حضرت صفیه (رض) ذوي رحم محرم قریبان چي د کومو صحابه وو په ملکیت کي وه. هغو د حضرت صفیه (رض) په اکرام کي هغوی آزاد کړل] إِكْرَامًا لَهَا د هغې د اکرام [او احترام] لپاره وَكَانُوْا يُسَمَّوْنَ أَصْهَارَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ او هغوی به [یعني د حضرت صفیه ذوي رحم محرم به] د نبي کریم ﷺ په خسر خېلو سره نومول کېدل وَهٰذَا التَّفْسِيْرُ اِخْتِيَارُ مُحَمَّدٍ وَأَبِيْ عُبَيْدَةَ او دغه تفسیر د امام محمد او د ابو عبیده اختیار کړی سوی دی.

---

[1] تخریج: أخرجه أبو داؤد في كتاب العتق، باب بيع المكاتب إذا فسخت المكاتبة، حديث رقم: ۳۹۳۱. (احسن الحداد)

**اللغات:** ﴿أصهار﴾ جمع د صِهْرٌ ده: خسر، خسرخیل (خسرګنی، سخرګنی)، القرابة بالزواج، أهل بیت المرأة. ﴿لتزوّج﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: نکاح کول، واده کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي څوک د خپل خسر خېلو (اصهار) لپاره وصيت وکړي، نو په دې وصيت کي د ښځي ټوله ذو رحم محرم قريبان داخليږي او هغوی ټولو ته وصيت (موصیٰ به) حاصليږي؛ د دې دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ چي کله د حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره نکاح وکړه، نو په هغه وخت کي چي د هغې څومره ذو رحم محرم قريبان د صحابه وو په ملکيت کي (غلامان) وه، ټولو هغه آزاد کړل او هغوی ته د نبي کريم ﷺ اصهار او خسرخېل ويل کېدل.

**يادونه:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دلته حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ذکر کړې ده، لېکن دا به ياد کاتب سهو وي، يا به د مصنف رَحِمَهُ الله تسامح وي؛ ځکه د اصهارُ دا واقعه د حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نکاح په هکله نه ده، بلکي دا واقعه د حضرت جويريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نکاح په هکله نقل سوې ده. حضرت جويريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په غزوهٔ بنو المصطلق کي د څو قيديانو سره په قيد راوستل سوه او د ثابت بن قيس ﷺ په حصه کي راغله، لېکن بيا هغې د ثابت بن قيس ﷺ سره کتابت وکړی او د نبي کريم ﷺ دربار ته حاضره سوه او نبي ﷺ ته يې وويل چي آيا زه د کتابت اداء کولو په باره کي ستا څخه سوال وکړم، نو نبي ﷺ وفرمايل چي آيا ته له دې څخه بهتر شی غواړې!، نو هغې وويل چي هغه بهتر څه شي دی، نو نبي ﷺ وفرمايل هغه دا چي ستا بدل کتابت زه اداء کړم او ستا سره نکاح وکړم، هغې دا منظور کړه او نبي کريم ﷺ بدل کتابت اداء کړی او د هغې سره يې نکاح وکړه، کله چي صحابه په دې خبر سوه چي نبي کريم ﷺ د حضرت جويريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره نکاح کړې ده. نو د کومو صحابه وو په قبضه کي چي د بنو مصطلق قيدي غلامان وه، دوی هغه ټوله آزاد کړل چي دا خلک خو د نبي کريم ﷺ خسر خېل دي. همدا ده اصل واقعه، لېکن دلته سهواً د حضرت جويريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا پر ځای د حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نوم ليکل سوی دی.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَكَذَا يَدْخُلُ فِيهِ كُلُّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْ زَوْجَةِ أَبِيهِ او همدارنګه په دې کي داخليږي د هغه [موصي] د پلار د ښځي هر ذو رحم محرم وَزَوْجَةِ ابْنِهِ او د هغه د ځوی د ښځي هر ذو رحم محرم وَزَوْجَةِ كُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او د موصي د هر ذی رحم محرم د ښځي هر ذو رحم محرم [دا ټوله پکښي

داخلیږي] لِأَنَّ الْكُلَّ أَصْهَارٌ ځکه چي دا ټوله خسر خېل دي.

**تشریح: صورت د مسئلي**: دا دی چي لفظ د اصهار عام دی، لهذا څرنګه چي په دې کي د موصي د خپلي ښځي ذو رحم محرم قریبان (خسرګنی) داخل دي. همداسي په دې کي د هغه د پلار د ښځي ذو رحم محرم قریبان او د هغه د ځوی د ښځي ذو رحم محرم قریبان او د هغه د هر ذو رحم محرم قریب د ښځي ذو رحم محرم قریبان پکښي داخل دي؛ ځکه چي دا ټوله خسر خېل دي او په لفظ د اصهار کي داخل دي. (لېکن دا د عربو عرف دی او زموږ په عرف کي له دې ځخه فقط د سړي خسرګنی مرادیږي (اشرف الهدایه))

## اصهار تر کوم وخته پوري د وصیت مستحق کیږي؟

وَلَوْ مَاتَ الْمُوصِيْ وَالْمَرْأَةُ فِيْ نِكَاحِهِ او که موصي [وصیت کونکی] مړ سي او ښځه د هغه په نکاح کي وي أَوْفِيْ عِدَّتِهِ مِنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ یا د هغه د طلاق رجعي په عده کي وي فَالصِّهْرُ يَسْتَحِقُّ الْوَصِيَّةَ نو خسر [خسرخېل] د وصیت مستحق کیږي وَإِنْ كَانَتْ فِيْ عِدَّةٍ مِنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ او که ښځه د هغه د طلاق بائن په عده کي وي لَا يَسْتَحِقُّهَا نو خسرخېل د وصیت نه مستحق کیږي لِأَنَّ بَقَاءَ الصِّهْرِيَّةِ بِبَقَاءِ النِّكَاحِ ځکه چي د خسرتوب بقاء د نکاح په بقاء سره وي [یعني خسرخېلي او خېښي هغه وخت پاتیږي کله چي د سړي (موصي) او ښځي تر مینځ نکاح پاته وي] وَهُوَشَرْطٌ عِنْدَ الْمَوْتِ او دا د نکاح بقاء [د موصي] د مرګ په وخت کي شرط ده.

**اللغات**: ﴿صهریّة﴾ خسرتوب (سخرتوب)، د خسرتوب قرابت.

**تشریح**: صورت د مسئلي خو بالکل ښکاره دی چي که د موصي د مرګ په وخت کي ښځه د هغه په نکاح کي وي، یا د هغه د طلاقِ رجعي په عده کي وي، نو اصهار (خسرخېل) د وصیت مستحق کیږي؛ ځکه په دې صورتونو کي نکاح پاته ده او د نکاح پاتېدلو په وجه د صِهریّت (خسرتوب) قرابت پاته دی. لېکن که ښځه د طلاقِ بائن په عده کي وي، نو بیا اصهار د وصیت نه مستحق کیږي؛ ځکه چي د نکاح نه پاتېدلو په وجه د صهریت قرابت ختم سو، او اصهار هغه وخت د وصیت مستحق کیږي کله چي د موصي د مرګ په وخت کي نکاح پاته وي.

## د اخښیانو مصداق (د اختانُ په وصیت کي څوک داخلیږي؟)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِأَخْتَانِهِ فرمايي: او څوک چي د خپلو اخښیانو لپاره وصیت وکړي فَالْوَصِيَّةُ لِزَوْجِ كُلِّ ذَاتِ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو دا وصیت د هغه [موصي] د هري ذو رحم محرم ښځي د خاوند لپاره دی [مثلاً د موصي د خور د خاوند لپاره وغیره] وَكَذَا مَحَارِمُ الْأَزْوَاجِ او همدارنګه د خاوندانو محارم هم [پکښي داخل دي] لِأَنَّ الْكُلَّ يُسَمّٰى خَتَنًا ځکه ټولو ته ختن ویل کیږي قِيلَ: هٰذَا فِي عُرْفِهِمْ ویل سوي دي: چي دا د هغو [اهل کوفه] په عُرف کي دي وَفِي عُرْفِنَا لَا يَتَنَاوَلُ إِلَّا أَزْوَاجَ الْمَحَارِمِ او زموږ په عُرف کي دا نه شاملیږي مګر صرف د محارمو خاوندانو لره [مثلاً د لور خاوند وغیره] وَيَسْتَوِي فِيهِ الْحُرُّ وَالْعَبْدُ وَالْأَقْرَبُ وَالْأَبْعَدُ او په دې کي آزاد او غلام، لیري او نژدې ټوله برابر دي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَتَنَاوَلُ الْكُلَّ ځکه لفظ [د ختن] ټولو لره شاملیږي.

**اللغات**: ﴿أُختان﴾ جمع د خَتَن ده (بفتح الخاء والتاء): اخښی، كل من كان من جهة المرأة كأبيها وأخيها، وكذلك زوج البنت أو زوج الأخت. د ښځي (مایني) ورور، د لور خاوند، د خور خاوند او داسي نور (معجم لغة الفقهاء). ﴿لا يتناول﴾ د تفاعل له بابه د نفي صیغه ده: شاملېدل. ﴿أقرب﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات نژدې.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که یو سړی د خپلو اخښیانو (أَختان) لپاره وصیت وکړي، نو په دې وصیت کي د موصي د هري ذو رحم محرم ښځي خاوند داخلیږي. مثلاً د خور خاوند، د لور خاوند، د امه خاوند او داسي نور، دغه ټولو ته دا وصیت (موصیٰ به) حاصلیږي. او که چیري مذکوره وصیت د ښځي له طرفه وي (یعني ښځه د خپلو أختانو لپاره وصیت وکړي)، نو د هغې د خاوند ذو رحم محرم قریبان په دې کي داخلیږي: ځکه دوی ټولو ختن ویل کیږي. خو په دې هکله د بعضي مشایخو قول دا دی چي دا صرف د اهلِ کوفې عُرف دی، کنې زموږ په عُرف کي له "أَخْتَان" څخه د محارمو ښځو خاوندان مرادیږي.

او کله چي له دې څخه مراد د محارمو ښځو خاوندان دي، نو بیا په دې خاوندانو کي عموم دی. برابره هغه آزاد وي او که غلام وي، د موصي نژدې قریب وي او که لیري: ځکه چي لفظ د "خَتَن" دغه ټولو لره شامل دی.

## د اقاربو (قريبانو) په وصيت کې کوم کسان داخليږي؟

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِأَقَارِبِهٖ فرمايي: او څوک چې د خپلو قريبانو لپاره وصيت وکړي فَهِيَ لِلْأَقْرَبِ فَالْأَقْرَبِ مِنْ كُلِّ ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو دا وصيت د موصي له ذو رحم محرم څخه د اقرب فالاقرب [ډېر نژدې ذو رحم محرم] لپاره دی وَلَا يَدْخُلُ فِيْهِ الْوَالِدَانِ وَالْوَلَدُ او په دې کې مور وپلار او بچی نه داخليږي وَيَكُوْنُ ذٰلِكَ لِلْاِثْنَيْنِ فَصَاعِدًا او دا وصيت به [په هغو کې] د دوو کسانو يا زياتو لپاره وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ صَاحِبَاهُ ﷺ: الْوَصِيَّةُ لِكُلِّ مَنْ يُنْسَبُ إِلٰى أَقْصٰى أَبٍ لَهُ فِي الْإِسْلَامِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې دا وصيت د هر هغه کس لپاره دی کوم چې په اسلام کې د موصي د آخري پلار وطرف ته منسوب کيږي وَهُوَ أَوَّلُ أَبٍ أَسْلَمَ او هغه [د اسلام آخري پلار] اول هغه پلار دی کوم چې مسلمان سوی وي أَوْ أَوَّلُ أَبٍ أَدْرَكَ الْإِسْلَامَ وَإِنْ لَمْ يُسْلِمْ يا اول هغه پلار دی کوم چې [زمانه د] اسلام ميندلې وي که څه هم هغه مسلمان سوی نه وي عَلٰى حَسَبِ مَا اخْتَلَفَ فِيْهِ الْمَشَايِخُ په مطابق د هغه اختلاف کوم چې مشايخو کړی دی [د مشايخو د اختلاف مطابق] وَفَائِدَةُ الْاِخْتِلَافِ تَظْهَرُ فِيْ أَوْلَادِ أَبِيْ طَالِبٍ او د اختلاف فايده د ابو طالب په اولاد کې ښکاره کيږي فَإِنَّهُ أَدْرَكَ الْإِسْلَامَ وَلَمْ يُسْلِمْ ځکه ابو طالب د اسلام زمانه وميندله لېکن مسلمان نه سو لَهُمَا: أَنَّ الْقَرِيْبَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْقَرَابَةِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې قريب له قرابت څخه مشتق دی فَيَكُوْنُ اِسْمًا لِمَنْ قَامَتْ بِهٖ نو قريب به د هر هغه چا نوم وي چې په هغه سره قرابت قائم وي [د هغه سره د موصي قرابت موجود وي] فَيَنْتَظِمُ بِحَقِيْقَتِهٖ مَوَاضِعَ الْخِلَافِ نو قريب به د خپل حقيقت [حقيقي معنیٰ] په اعتبار سره مواضعِ خلاف لره [هم] شامل وي [يعني غير ذوي المحارم او ليري قريبان] وَلَهُ: أَنَّ الْوَصِيَّةَ أُخْتُ الْمِيْرَاثِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې وصيت د

---

ﷺ قال صاحب القول الراجح: هذا الاختلاف اختلاف عصر وزمان،لأنه قال في حاشية الهداية...وفي المبسوط: كان هذا في زمن محمد رَحِمَهُ الله؛ لأنّ ما كان في زمنه في أقرباء الإنسان الذين ينسبون إلى أقصى أب له كثرة، وأما في زماننا ففيهم كثرة ولا يمكن احصاؤهم، فتصرّف الوصية إلى أولاد ابيه وجدّه وجدّ أبيه و أولاد أمّه وجدّته وجدّة أمّه، ولا تصرف الوصية إلى أكثر من ذلك (القول الراجح ج:٢، ص:٣٨٢) بحواله حاشيةالهداية (ج:۴، ص:۴۸۰).

میراث خور ده وَفِي الْمِيرَاثِ يُعْتَبَرُ الْأَقْرَبُ فَالْأَقْرَبُ او په میراث کې د الاقرب فالاقرب اعتبار کول کیږي وَالْمُرَادُ بِالْجَمْعِ الْمَذْكُورِ فِيهِ اِثْنَانِ [همدارنګه] په میراث کې په ذکر سوي جمع سره مراد دوه [فرده] وي فَكَذَا فِي الْوَصِيَّةِ نو همداسې به په وصیت کې هم [له جمع څخه دوه فرده مراد] وي.

**اللغات**: ﴿أقارب﴾ جمع د قریبٌ ده: قریبان، خپلوان. ﴿فصاعدًا﴾ یا تر دې زیات. ﴿أقصٰی﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: دآخري درجې، تر ټولو لیري.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د خپلو قریبانو (اقرباؤ) لپاره وصیت وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دغه وصیت د هغه په ذو رحم محرم قریبانو کي اقرب فالاقرب ته حاصلیږي (یعني که أقرب موجود وي، نو تر هغه أبعد ته وصیت نه حاصلیږي)، او په دې وصیت کي به کم از کم دوه دا قریبان داخلیږي، او د موصي اولاد او مور وپلار په دې وصیت کي نه داخلیږي.

صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي د قریبانو(اقرباؤ) په وصیت کي هغه ټوله خلک داخلیږي چي هغوی د موصي وهغه آخري پلار ته منسوب وي، کوم چي اول اسلام قبول کړی وی، لکه حضرت علي ﷺ چي اول اسلام قبول کړی دی نو که د هغه د خاندان یو فرد د خپلو قریبانو (اقرباؤ) لپاره وصیت وکړي،نو تر حضرت علي ﷺ پوري د هغه ټوله اولاده د مذکوره وصیت مستحق کیږي.

یا د دې مطلب دا دی چي د موصي هغه پلار کوم چي تر ټولو مخکي د اسلام زمانه میندلې وي او هغه مسلمان سوی نه وي، لکه ابو طالب چي هغه تر ټولو مخکي د اسلام زمانه ومیندله او مسلمان نه سو، نو د دغه قول په اعتبار سره که د حضرت علي ﷺ د خاندان یو کس د خپلو قریبانو لپاره وصیت وکړي، نو په دې وصیت کي د حضرت علي ﷺ د اولاد تر څنګ د حضرت جعفر او د حضرت عقیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اولاد هم داخلیږي؛ ځکه دغه هر یو د ابوطالب ځوی دی چي د هغه اولاد د ابو طالب اولاده کیږي، لېکن د اول قول (یعني د أوّل أبِ أسلم) په اعتبار سره فقط د حضرت علي ﷺ اولاده د مذکوره وصیت مستحق کیږي. په "وفائدة الاختلاف إلخ" سره مصنف رَحِمَهُ الله همدا بیان کړی دی.

لهما إلخ: په مذکوره مسئله کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي أقرباء جمع د قریب ده، او قریب له قرابت څخه مشتق دی، نو قریب هر هغه کس دی چي د هغه سره د انسان قرابت قائم وي. لهذا کوم کسان چي د موصي له خپل خاندان څخه وي برابره ده هغه ذو رحم محرم وي او که نه وي. قرابت د هر یوه سره موجود او متعلق دی، نو ځکه ټولو ته به قریب ویل کیږي او هر یو به د دغه

وصیت مستحق کیږي که څه هم هغه ذو رحم محرم نه وي او لیري قریب وي. په "مواضع الخلاف" سره مصنف رَحِمَهُ الله همدا بیان کړی دی.

وله إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې وصیت د میراث خور ده او په میراث کې د اقرب فالاقرب په اعتبار سره استحقاق ثابتیږي، نو ځکه په وصیت کې به هم د اقرب فالاقرب اعتبار سره استحقاق ثابتیږي، همدارنګه په میراث کې له جمع څخه کم از کم دوه فرده مرادیږي (یعني د جمع أقل مقدار دوه فرده دي)، نو ځکه په وصیت کې به هم له جمع څخه کم از کم دوه فرده مرادیږي، نو ځکه موږ د اقرب فالاقرب په اعتبار سره. په مذکوره مسئله کې استحقاق ثابت کړی دی او کم از کم دوه قریبان مو د دې وصیت حقدار ګرځولي دي.

**د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تعلیل**

وَالْمَقْصِدُ مِنْ هٰذِهِ الْوَصِيَّةِ تَلَافِيْ مَا فَرَطَ فِيْ إِقَامَةِ وَاجِبِ الصِّلَةِ او د دغه وصیت مقصد د هغه کوتاهۍ [او لاپروایۍ] تلافي کول دي کومه کوتاهي چې موصي د واجبې صله رحمۍ په اداء کولو کې کړې ده وَهُوَ يَخْتَصُّ بِذِي الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ مِنْهُ او دا [د صله رحمۍ وجوب] د موصي د ذو رحم محرم سره خاص دی وَلَا يَدْخُلُ فِيْهِ قَرَابَةُ الْوِلَادِ او په دې کې ولادتي قرابت [یعني اولاد او مور و پلار] نه داخلیږي فَإِنَّهُمْ لَا يُسَمَّوْنَ أَقْرِبَاءَ ځکه هغوی په قریبانو سره نه نومول کیږي وَمَنْ سَمّٰي وَالِدَهُ قَرِيْبًا او څوک چې خپل پلار په قریب سره نوموي كَانَ مِنْهُ عُقُوْقًا نو دا [په قریب سره نومول] به د هغه له طرفه نافرماني وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْقَرِيْبَ فِيْ عُرْفِ اللِّسَانِ مَنْ يَتَقَرَّبُ إِلَى غَيْرِهِ بِوَسِيْلَةِ غَيْرِهِ او دا ځکه چې قریب په ژبني عرف کې هغه کس دی کوم چې د د غیر سره د غیر [بل چا] په واسطه نژدېکت لري [یعني چې د یو چا سره د بل چا په واسطه قرابت لري] وَتَقَرُّبُ الْوَالِدِ وَالْوَلَدِ بِنَفْسِهِ لَا بِغَيْرِهِ او د پلار او بچي قرابت بذات خود وي نه په بل چا سره وَلَا مُعْتَبَرَ بِظَاهِرِ اللَّفْظِ بَعْدَ انْعِقَادِ الْإِجْمَاعِ عَلٰى تَرْكِهِ او د ظاهر لفظ پر ترک [پرېښودلو] د اجماع منعقد کېدلو څخه وروسته ظاهر لفظ لره هیڅ اعتبار نشته فَعِنْدَهُ يُقَيَّدُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز اقرباء به په هغه څه سره مقید کیږي کوم چې موږ [څه مخکې] ذکر کړل وَعِنْدَهُمَا بِأَقْصَى الْأَبِ فِي الْإِسْلَامِ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په

نېږ په اسلام کي په آخري پلار سره [مقید کیږي] وَعِندَ الشَّافِعِيِّ بِالْأَبِ الْأَدْنٰى او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېږ په نژدې پلار سره [مقید کیږي].

**اللغات:** ﴿تلافی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: کمي پوره کول. د تاوان بدله ورکول (د فوت سوي شي د نقصان عوض ورکول). د تاوان جبیره. ﴿یتقرّب﴾ د تفعل د باب مضارع ده: قربت لټول. قربت لرل. ﴿فرط﴾ د نصر او ضرب د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: کوتاهي کول. قصور. ﴿صلة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځیني دا دي: صله رحمي. (د قریب سره) ښه سلوک کول. عطیه. ﴿یختص﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مختص کېدل. خاص کېدل. ﴿عَقوق﴾ د نصر د باب مصدر دی. عَقَّ یَعُقُّ عَقُوْقًا و مُعَقَّةً: د پلار نافرماني کول او شفقت نه کول او سپکاوی کول.

**تشریح:** امام صاحب رَحِمَهُ الله له قریبانو (اقرباؤ) څخه ذو رحم محرم قریبان مراد کړي دي. د هغه یو دلیل خو مخکي بیان سو، او دویم دلیل دا دی چي د قریبانو لپاره په وصیت کولو سره د موصي مقصد دا وي چي د خپل هغه کمی او لاپروایی تلافي وکړي کوم چي له موصي څخه په صله رحمي کي واقع سوې ده (ځکه شریعت د صله رحمي حکم کړی دی او له قطع رحمي څخه یې منع کړې ده او د قاطع الرحم په هکله سخت وعید راغلی دی. نو موصي په دې وصیت سره په صله رحمي کي د واقع سوي کمی تلافي کوي) او صله رحمي فقط د ذو رحم محرم سره خاص ده، نو ځکه په دې حواله سره به هم له اقرباؤ څخه ذو رحم محرم قریبان مرادیږي؛ لېکن په دې کي اولاد او مور وپلار په دې وجه نه داخلیږي ځکه چي دوی په قریبانو (اقرباؤ) کي داخل نه دي او دوی ته قریبان نه ویل کیږي. لکه څرنګه چي په قرآن کي هم والدین له اقرباؤ څخه جلا سوي دي چي ﴿الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ﴾، نو معلومه سوه چي په اقرباؤ کي والدین داخل نه دي او کله چي والدین له اقرباؤ څخه خارج سوه نو اولاد هم ځني خارج سو، نو ځکه دوی ته قریبان نه ویل کیږي او کوم بدبخته چي خپل پلار ته قریب وایي لکه څرنګه چي د بعضي احمقانو طریقه همدا وي چي کله پر یو معمولي منصب راسي نو په پلار شرمیږي او خلکو ته وایي چي دا زموږ یو قریب دی، نو داسي څوک د پلار نافرمانه او ستر احسان فراموشه دی.

همدارنګه په عرف لساني کي هم قریب هغه چا ته وایي چي د هغه سره د انسان قرابت د بل چا په واسطه وی (د بل چا په ذریعه د دوی تر مینځ قرابت حاصل وي)، حال دا چي د اولاد او مور و پلار تر مینځ

قرابت بلا واسطه وي او بذات خود يو د بل سره قرابت لري. نو ځکه په دې حواله سره هم اولاد او مور وپلار د قريبانو له فهرس څخه وځي.

ولا معتبر بظاهر اللفظ إلخ: يعني لفظ د اقرباء (قريبان) كه څه هم په ظاهري اعتبار سره د موصي تمام قريبانو او تمام ذوي رحم محرم لره شامل دى كه هغه هر څومره ليري وي (نو د ظاهر لفظ په اعتبار سره د اقرب فالاقرب اعتبار نه سي پكښې كېدلاى). خو څرنګه چي دلته بالاجماع د ظاهر لفظ اعتبار نه دى سوى (ځكه كه د لفظ د ظاهر اعتبار وسي. نو بيا خو ټوله انسانان هم د موصي په اقرباؤ كي داخليږي چي ټوله په يوه پلار آدم عليه السلام كي سره شريكان دي). لهذا كله چي د ظاهر اعتبار نه دى سوى. نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د اقرباؤ په وصيت كي به د هغه قيدونو اعتبار كيږي كوم چي مخكي ذكر سوه چي له اقرباؤ څخه مراد د موصي اقرب فالاقرب دى له ذو رحم محرم قريبانو څخه. ويكون ذلك للاثنين فصاعدا....

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز له اقرباؤ څخه په اسلام كي د آخري پلار ټوله اولاد مراد دى (لكه مخكي چي ذكر سوه). او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز له اقرباؤ څخه د نژدې پلار اولاد مراد دى يعني كوم پلار چي نژدې وي د هغه رالاندي اولاد ټوله په اقرباؤ كي داخليږي.

**د امامانو د اختلاف ثمره (په اكاګانو او ماماګانو كي او په داسي نور وكي څوك زيات اقرب دي؟)**

قَالَ: وَإِذَا أَوْصَى لِأَقَارِبِهِ فرمايي: او څوك چي د خپلو قريبانو لپاره وصيت وكړي وَلَهُ عَمَّانِ وَخَالَانِ او د هغه دوه اكاګان او دوه ماماګان وي فَالْوَصِيَّةُ لِعَمَّيْهِ عِنْدَهُ اعْتِبَارًا لِلْأَقْرَبِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د اقرب [نژدې ترين قريب] په اعتبار كولو سره دا وصيت د هغه د دوو اكاګانو لپاره دى كَمَا فِي الْإِرْثِ لكه څرنګه چي په ميراث كي كيږي وَعِنْدَهُمَا بَيْنَهُمْ أَرْبَاعًا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا وصيت د دوى [دواړو اكاګانو او ماماګانو] ترمينځ په څلورو حصو سره دى إِذْ هُمَا لَا يَعْتَبِرَانِ الْأَقْرَبَ ځكه چي صاحبين رَحِمَهُما الله د اقرب اعتبار نه كوي وَلَوْ تَرَكَ عَمًّا وَخَالَيْنِ او كه موصي [خپل ترښا] يو اكا او دوه ماماګان پرې ايښي وي فَلِلْعَمِّ نِصْفُ الْوَصِيَّةِ نو د اكا لپاره د وصيت نصف [نيمه حصه] ده وَالنِّصْفُ لِلْخَالَيْنِ او نصف د دوو ماماګانو لپاره دى لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ مَعْنَى الْجَمْعِ ځكه چي د جمع د معنى اعتبار كول ضروري دي وَهُوَ الِاثْنَانِ فِي الْوَصِيَّةِ او د جمع معنى [يعني د جمع اقل مقدار] په وصيت كي دوه دي كَمَا فِي الْمِيرَاثِ لكه څرنګه

چي په میراث کي [دوه] دي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَىٰ لِذِي قَرَابَتِهِ په خلاف د هغه صورت کله چي موصي د خپل قرابت والا لپاره وصيت وکړي حَيْثُ يَكُونُ لِلْعَمِّ كُلُّ الْوَصِيَّةِ نو [په دې صورت کي] ټوله وصيت د اکا لپاره دی لِأَنَّ اللَّفْظَ لِلْفَرْدِ ځکه چي دا لفظ [ذي قرابة] د يوه نفر لپاره دی فَيُحْرِزُ الْوَاحِدُ كُلَّهَا نو ځکه يو نفر [اکا] به ټوله وصيت اخلي إِذْ هُوَ الْأَقْرَبُ ځکه چي هم هاغه اقرب دی وَلَوْ كَانَ لَهُ عَمٌّ وَاحِدٌ او که د هغه [موصي] يو اکا وي فَلَهُ نِصْفُ الثُّلُثِ نو د هغه لپاره د ثلث نصف [نيمه حصه] ده لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي مونږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿عمّ﴾ اکا، ﴿خال﴾ ماما، ﴿يُحرِزُ﴾ د افعال د باب مضارع ده: جمع کول او ذخيره کول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د وصيت په هکله څلور مسائل بيان سوي دي:

(۱)... که څوک د خپلو قريبانو لپاره وصيت وکړي او د هغه په قريبانو کي دوه اکاګان او دوه ماماګان وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ټوله وصيت د دواړو اکاګانو لپاره دی؛ ځکه د هغه په نيز د اقرب فالاقرب اعتبار کيږي او اکا (تره) له ماما څخه اقرب دی، نو ځکه اکاګان به مخکي کول کيږي او وصيت (موصیٰ به) به هملوی ته ورکول کيږي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ټوله وصيت به څلور حصې کول کيږي او ټولو ته به برابره برابره حصه ورکول کيږي؛ ځکه دا وصيت د قريبانو (اقاربو) لپاره سوی دی او په قريبانو کي ماماګان هم داخل دي، نو ځکه هغوی به هم په دې وصيت کي شريکان کيږي.

(۲)... ولوترك عمًا وخالين الخ: دويمه مسئله دا ده چي که موصي د قريبانو (اقاربو) لپاره وصيت کړی وي او د هغه په قريبانو کي صرف يو اکا او دوه ماماګان وي، نو په دې صورت کي نصف وصيت د اکا لپاره دی او بل نصف د دواړو ماماګانو لپاره دی؛ ځکه اقارب د جمع صيغه ده، او د جمع اقل مقدار (کمترين مقدار) دوه دي نو د جمع لپاره کم از کم دوه فرده ضروري دي، چي دلته يو فرد او فريق اکا دی او بل فريق دوه ماماګان دي، نو ځکه دلته به اکا او ماماګان دواړه د وصيت مستحق کيږي او هر فريق ته به نصف، نصف ورکول کيږي لکه څرنګه چي په ميراث کي هم داسي تقسيم جاري دی.

(۳)... بخلاف ما إذا الخ: دريمه مسئله دا ده چي که د جمع صيغه (قريبان) استعمال نه کړي بلکي د واحد صيغه استعمال کړي او داسي ووايي چي زما د قرابت والا لپاره يا زما د قريب لپاره وصيت دی، او د موصي په قريبانو کي يو اکا او دوه ماماګان وي، نو په دې صورت کي ټوله وصيت د اکا لپاره دی

او ماماګان محرومېږي؛ ځکه دلته اکا د موصي اقرب دی او د اقرب په وجود کي ابعد ته هيڅ حق نه حاصلېږي. نو ځکه په مذکوره صورت کي به صرف اکا د وصيت مستحق کيږي. نه ماماګان.

(۴)... ولوكان له عمّ إلخ: څلورمه مسئله دا ده چي که موصي د خپلو قريبانو (اقاربو) لپاره وصيت وکړي، او د هغه په قريبانو کي صرف يو اکا وي، نو د هغه اکا لپاره نصف وصيت يعني نصف ثلث دی او ما بقي نصف د موصي د وارثانو لپاره دی؛ ځکه اقارب د جمع صيغهٔ ده او د جمع اقل مقدار دوه فرده دي، نو ځکه د هر يوه لپاره به نصف وي يعني نصف د اکا لپاره او نصف به وارثانو ته واپس کول کيږي، چي د جمع پر مقتضا عمل وسي.

**د امامانو د اختلاف ثمره (د اکا او عمه قرابت د ماما او خاله له قرابت څخه اقویٰ دی)**

وَلَوْ تَرَكَ عَمًّا وَعَمَّةً وَخَالًا وَخَالَةً او که موصي [خپل ترشا] يو اکا، يوه عمه، يو ماما او يوه خاله پرې اېښې وي فَالْوَصِيَّةُ لِلْعَمِّ وَالْعَمَّةِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ نو وصيت د اکا او عمه لپاره دی د دواړو ترمينځ په برابرۍ سره [يعني د هر يوه لپاره نصف وصيت دی] لِاسْتِوَاءِ قَرَابَتِهِمَا ځکه چي د دوی دواړو قرابت سره برابر دی وَهِيَ أَقْوَىٰ او دا [د اکا او عمه] قرابت زيات قوي دی [د ماما او خاله له قرابت څخه] وَالْعَمَّةُ وَإِنْ لَمْ تَكُنْ وَارِثَةً او عمه که څه هم وارثه [ميراث خوره] نه ده فَهِيَ مُسْتَحِقَّةٌ لِلْوَصِيَّةِ خو هغه د وصيت حقداره ده كَمَا لَوْ كَانَ الْقَرِيبُ رَقِيقًا أَوْ كَافِرًا لکه کله چي [د موصي] قريب غلام يا کافر وي وَكَذَا إِذَا أَوْصَىٰ لِذَوِي قَرَابَتِهِ او همدارنګه کله چي موصي وصيت وکړي د خپل قرابت والا وو لپاره [يعني موصي داسي ووايي چي زما د قرابت والا وو لپاره دا وصيت دی...] أَوْ لِأَقْرِبَائِهِ يا [هغه وصيت وکړي] د خپلو قريبانو لپاره أَوْ لِأَنْسِبَائِهِ يا د خپل نسب والا وو لپاره [نو هم مخکينی حکم دی] فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا په هغه ټولو تفصيلاتو کي کوم چي موږ [مخکي] ذکر کړل [چي د امام صاحب رحمه الله په نيز دا وصيت له ذو رحم محرم څخه د اقرب فالاقرب لپاره دی او داسي نور. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ذو رحم محرم شرط نه دي او نه اقرب فالاقرب...] لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ لَفْظُ جَمْعٍ ځکه چي دا هر يو د جمع لفظ دی وَلَوِ انْعَدَمَ الْمَحْرَمُ او که چيري ذو رحم محرم معلوم سي [يعني که په مذکوره مسئلو کي د موصي لپاره هيڅ ذو رحم محرم نه وي] بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو وصيت باطلېږي لِأَنَّهَا مُقَيَّدَةٌ بِهٰذَا الْوَصْفِ ځکه چي وصيت په دغه وصف سره مقيد دی.

**اللغات**: ﴿بالتسوية﴾ په برابرۍ سره. ﴿وارثة﴾ د ضرب له بابه دواحد مؤنث فاعل صيغه ده: ميراث ترلاسه کونکې، ميراث خوره. ﴿مقيدة﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: قيد کړی سوی، مشروط.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د خپلو قريبانو (اقرباؤ) لپاره وصيت وکړي او د هغه په قريبانو کې اکا، عمه، خاله او ماما موجود وي، نو په دې صورت کې صرف اکا او عمه د وصيت مستحق کيږي او هر يوه ته به نصف وصيت ورکول کيږي، او خاله او ماما محروميږي؛ ځکه د اکا او عمه قرابت د خاله او ماما له قرابت څخه اقوی دی، او عمه که څه هم د خپل وراره (موصي) وارثه نه ده، لېکن هغه د ده په قريبانو کې داخله ده او عمه تر خاله او ماما نژدې قرابت والا ده. نو ځکه هغه به د اکا سره د وصيت مستحقه کيږي. مثال يې دا دی لکه څوک چې د خپلو قريبانو لپاره وصيت وکړي او د هغه په قريبانو کې صرف غلامان يا کافر قريبان موجود وي. نو که څه هم هغوی د موصي وارثان نه سي کېدلای خو بيا هم هغوی د دې وصيت مستحق کيږي، نو همدغه حال د عمه هم دی.

وكذا إذا أوصى إلخ: د دې حاصل دا دی چې که يو څوک د خپل قرابت والا وو (ذوي قرابت) لپاره وصيت وکړي، يا د خپلو قريبانو (اقرباؤ) لپاره وصيت وکړي، يا د خپل نسب والا وو (انسباؤ) لپاره وصيت وکړي، نو په دې صورتونو کې هاغه حکم او تفصيل دی کوم چې څه مخکې د قريبانو (اقاربو) لپاره د وصيت کولو په بيان کې ذکر سو؛ ځکه ذوي قرابت او انسباء هم د اقرباء او اقارب په څېر د جمع صيغې دي، لهذا کوم حکم چې د اقرباؤ دی، هغه به د دوی هم وي.

او که موصي د قريبانو لپاره وصيت کړی وي او د موصي هيڅ ذو رحم محرم نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وصيت باطليږي؛ ځکه د قريبانو لپاره د وصيت کولو غرض صله رحمي ده او صله رحمي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ذو رحم محرم سره خاص ده، لهذا کله چې دا وصف معدوم سو، نو موصوف يعني مذکوره وصيت به هم باطليږي.

## که د "اهل فلان" لپاره وصيت وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى لِأَهْلِ فُلَانٍ فرمايي: او څوک چې د فلانکي د اهل لپاره وصيت وکړي فَهِيَ عَلَى زَوْجَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا وصيت د هغه [فلانکي] پر ښځې [محمول] دی وَقَالَا[*]: يَتَنَاوَلُ مَنْ يَعُوْلُهُمْ وَتَضُمُّهُمْ نَفَقَتُهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې دا

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتوضيح والتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۳]

وصیت هغه کسانو لره شامليږي چې موصي د هغوی د معاش کفالت کوي او چې د موصي نفقه هغوی سره جمع کوي [یعنې هغه کسان کوم چې د موصي په عیال او پالنه کې وي او موصي هغو ته نفقه ورکوي] اِعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ د عُرف په اعتبار کولو سره وَهُوَ مُؤَيَّدٌ بِالنَّصِّ او دا په نصّ [آیت] سره تائید سوي دي قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ﴿وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ [یوسف: ۹۳] الله تعالیٰ فرمایلي دي [چې یوسف ﷺ وویل...]: او تاسي خپل ټوله اهل ما ته راولئ! وَلَهُ: أَنَّ اسْمَ الْأَهْلِ حَقِيقَةٌ فِي الزَّوْجَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې نوم د "اهل" د ښځي [ماینې] لپاره حقیقت دی [یعنې حقیقي معنیٰ یې زوجه ده] يَشْهَدُ بِذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَىٰ چې په دې هکله ګواه د الله تعالیٰ دا فرمان دی ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهِ﴾ [القصص: ۲۹] او هغه [حضرت موسیٰ ﷺ] روان [رهي] سو سره له خپل ښځي [خپل زوجه محترمه یې رهي کړه] وَمِنْهُ قَوْلُهُمْ: تَأَهَّلَ بِبَلْدَةِ كَذَا او له همدې څخه د عربو دا قول دی: چې هغه په فلانکي ښار کې اهل داره سو [یعنې زوجه یې وکړه (واده یې وکړی)] وَالْمُطْلَقُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْحَقِيقَةِ او مطلق لفظ د حقیقت [حقیقي معنیٰ] وطرف ته ګرځي.

**اللغات**: ﴿یعولهم﴾ د نصر د باب مضارع ده. عَالَ يَعُولُ: د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي. کله چې د دې باب په صله کې اولاد وغیره ذکر سي، نو معنیٰ یې ده: د معاش کفالت کول. یعنې د خوراک، څښاک او کپړو خرچه او ذمه واري په خپله غاړه اخیستل. ﴿تضمّهم﴾ د نصر د باب مضارع ده، ضَمَّ يَضُمُّ ضَمًّا، د دې باب څو معناوي دي: ضمول. جمع کول (سره یو ځای کول). خپل طرف ته کشول. قبضه کول. ﴿سَارَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تګ کول. روانېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک داسي وصیت وکړي چې د فلانکي (مثلاً د حامد) د اهل لپاره زما له مال څخه دومره مال ورکړئ!، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز له "اهل" څخه مراد زوجه (ماینه) ده او صرف زوجه د دې وصیت مستحقه کیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په "اهل" کې هغه ټوله کسان داخليږي کوم چې د سړي (موصي) په عیال کې داخل وي یعنې هغه کسان چې سړی د هغو د نفقې ذمه واره وي او خرچه ورکوي لکه ښځه، بچیان، غلام او نوکر وغیره.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي په عُرف عام کي دا ټوله خلګ په "اهل" کي داخل شمېرل کیږي، او بل دا چي د قرآن کریم په دې آیت سره هم د دې تائید کیږي ﴿وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ﴾، یعني حضرت یوسف الطَّلِیْلا خپلو ورونو ته وویل چي تاسي خپل اهل وعیال ما ته را ولئ!، نو دلته په "اهل" کي ټوله داخل دي یعني ښځه او بچیان او خادمان، نو ځکه د "اهل" لپاره چي کوم وصیت سوی وي، په هغه کي به هم ښځه او بچیان او خادمان ټوله داخلیږي.

دامام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د "اهل" د لفظ حقیقي معنیٰ صرف زوجه ده؛ لکه څرنګه چي په قرآن کي د حضرت موسیٰ الطَّلِیْلا په هکله ذکر سوي دي ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهِ﴾ یعني موسیٰ الطَّلِیْلا خپله ښځه رهي کړه، دلته له "اهل" څخه د هغه زوجه مراد ده، همدارنګه د عربو په محاوره کي هم له "اهل" څخه زوجه مرادیږي لکه څرنګه چي عرب وایي "تأهّل ببلدة کذا" یعني فلانکي سړي په فلانکي ښار کي اهل داره سو یعني واده یې وکړی او زوجه یې پیدا کړه، معلومه سوه چي "اهل" په حقیقت کي د زوجه لپاره وضع سوی دی، او د یو قرینې پر بنیاد په هغه کي عموم راځي او مجازاً د نورو لپاره استعمالیږي، لکه څرنګه چي د حضرت یوسف الطَّلِیْلا په قول کي د "أجمعین" اضافه دا ښیي چي له اهل څخه دلته له زوجه څخه بغیر نور کسان هم مراد دي، او که اهل مطلق ذکر وي، نو له هغه څخه صرف زوجه مرادیږي او بلا وجه په هغه کي عموم پیدا کول مناسب نه دي.

## د "آل فلان" لپاره د وصیت کولو حکم

قَالَ: وَلَوْ أَوْصَىٰ لِآلِ فُلَانٍ فرمایي: او څوک چي د فلانکي د آل لپاره وصیت وکړي فَهُوَ لِأَهْلِ بَيْتِهِ نو دا وصیت د هغه د کورنۍ لپاره دی لِأَنَّ الْآلَ الْقَبِيلَةُ الَّتِي يُنْسَبُ إِلَيْهَا ځکه آل هغه قبیله ده چي انسان د هغې وطرف ته منسوب کول کیږي وَلَوْ أَوْصَىٰ لِأَهْلِ بَيْتِ فُلَانٍ او که څوک د فلانکي د کورنۍ لپاره وصیت وکړي يَدْخُلُ فِيهِ أَبُوهُ وَجَدُّهُ نو په دې وصیت کي د هغه پلار او نیکه داخلیږي لِأَنَّ الْأَبَ أَصْلُ الْبَيْتِ ځکه چي پلار د کور اصل دی.

**اللغات:** ﴿أوصیٰ﴾ د افعال د باب ماضي ده: وصیت کول. ﴿جدّ﴾ نیکه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د یو چا (مثلاً د حامد) د آل لپاره وصیت وکړي، نو دا وصیت د موصیٰ لهٗ (حامد) د کورنۍ لپاره دی او د هغه ټوله کورنۍ د دې وصیت مستحقه کیږي.

او که يو سړی د يو چا د اهلِ بيت (کورنۍ) لپاره وصيت وکړي، نو په دې وصيت کې د هغه د کورنۍ سره د هغه پلار او نيکه هم داخليږي؛ ځکه د کورنۍ اصل خو همدا پلار او نيکه دي او له همدوی څخه کورنۍ په وجود کې راغلې ده.

## د "اهل نسب" يا د "اهل جنس" لپاره د وصيت کولو حکم

وَلَوْ أَوْصٰى لِأَهْلِ نَسَبِهٖ أَوْ لِجِنْسِهٖ او که موصي د خپل اهلِ نسب [نسب والا] لپاره يا د خپل جنس لپاره وصيت وکړي فَالنَّسَبُ عِبَارَةٌ عَمَّنْ يُنْسَبُ إِلَيْهِ نو نسب عبارت دی له هغو خلکو څخه چې د هغه وطرف ته موصي منسوب کول کيږي وَالنَّسَبُ يَكُوْنُ مِنْ جِهَةِ الْآبَاءِ او نسب د پلرونو له طرفه وي وَجِنْسُهٗ أَهْلُ بَيْتِ أَبِيْهِ دُوْنَ أُمِّهٖ او د موصي جنس د هغه د پلار کورنۍ ده، نه د مور کورنۍ لِأَنَّ الْإِنْسَانَ يَتَجَنَّسُ بِأَبِيْهِ ځکه چې انسان د خپل پلار له جنسه کيږي [د پلار له جنس څخه شمېرل کيږي] بِخِلَافِ قَرَابَتِهٖ په خلاف د هغه د قرابت حَيْثُ تَكُوْنُ مِنْ جَانِبِ الْأُمِّ وَالْأَبِ ځکه چې قرابت د مور او پلار دواړو له طرفه وي.

**اللغات:** ﴿جهة﴾ طرف، اړخ، ﴿آباء﴾ جمع د أبٌ ده: پلرونه، پلار، نيکه وغيره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که موصي د خپل اهلِ نسب (نسب والا) لپاره وصيت وکړي، يا د خپل جنس لپاره وصيت وکړي، نو په دې دواړو صورتونو کې په وصيت کې د موصي د کورنۍ هغه خلک داخليږي کوم چې د موصي سره په نسب کې شريکان وي، يعني هغه خلک چې د موصي نسب کوم چا ته رسيږي د هغو نسب هم هغه ته رسيږي، د مثال په توګه که د حضرت علي ﷺ د خاندان يو کس د خپل اهلِ نسب يا د خپل جنس لپاره وصيت وکړي، نو په دې وصيت کې هغه ټول موجوده کسان داخليږي چې د هغو نسب د پلار له طرفه حضرت علي ﷺ ته رسيږي (يعني چې د پلار له طرفه هغوی علويان وي)، ځکه د نسب اعتبار د پلار له طرفه کيږي، نه د مور له طرفه. او له "جنس" څخه هم د موصي د پلار کورنۍ او خاندان مراد دي؛ ځکه چې انسان د خپل پلار د کورنۍ هم جنسه وي، نه د مور د کورنۍ.

لېکن لفظ د "قرابت" د دواړو لپاره عام دی، نو که څوک د خپل قرابت والا (اهلِ قرابت) لپاره وصيت وکړي، نو په هغه کې د مور او پلار دواړو کورنۍ او قريبان داخليږي او ټول د وصيت مستحق کيږي؛ ځکه قرابت عام دی.

## د قبيلې د يتيمانو، ړندو، شلانو او د كونډو ښځو لپاره د وصيت كولو حكم

وَلَوْ أَوْصٰى لِأَيْتَامِ بَنِيْ فُلَانٍ او كه هغه وصيت وكړي د فلانكي زيو د يتيمانو لپاره أَوْ لِعُمْيَانِهِمْ يا د هغو د ړندو [ړندیانو] لپاره أَوْ لِزَمْنَاهُمْ يا د هغو د شلانو [شل وشوټ كسانو] لپاره أَوْ لِأَرَامِلِهِمْ يا د هغو د كونډو ښځو [كونډيانو] لپاره إِنْ كَانُوْا قَوْمًا يُحْصَوْنَ نو كه هغوى [موصىٰ لهم] دومره كسان وي چې شمېرل كېدلاى سي دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ فُقَرَاؤُهُمْ وَأَغْنِيَاؤُهُمْ ذُكُوْرُهُمْ وَإِنَاثُهُمْ نو په وصيت كې د هغو فقيران او مالداران [شتمن] نر او ښځې ټوله داخليږي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيْقُ التَّمْلِيْكِ فِيْ حَقِّهِمْ ځكه چې د هغو په حق كې تمليک ثابتول ممكن دي [ځكه چې بې شمېره نه دي. بلكې شمېرل كېدلاى سي] وَالْوَصِيَّةُ تَمْلِيْكٌ او وصيت تمليک [مالک جوړول] دي [چې په هغه كې موصىٰ لهٔ د موصىٰ بهٖ مالک جوړول كيږي] وَإِنْ كَانُوْا لَا يُحْصَوْنَ او كه هغوى [موصىٰ لهم] نه سي شمېرل كېدلاى فَالْوَصِيَّةُ فِي الْفُقَرَاءِ مِنْهُمْ نو وصيت له دوى څخه د فقيرانو لپاره دي [يعني د دوى د محتاجانو او غريبانو لپاره دي] لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنَ الْوَصِيَّةِ الْقُرْبَةُ ځكه چې مقصود له وصيت څخه عبادت [او ثواب ترلاسه كول] دي وَهِيَ فِيْ سَدِّ الْخَلَّةِ وَرَدِّ الْجَوْعَةِ او هغه د حاجت په ختمولو كې او د لوږې په لیرې كولو كې دي وَهٰذِهِ الْأَسَامِيْ تُشْعِرُ بِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ او دغه نومونه [يتيمان. شلان وغيرهم] د حاجت [احتياج] د ثابتېدلو خبر وركوي فَجَازَ حَمْلُهُ عَلَى الْفُقَرَاءِ نو ځكه پر فقيرانو [محتاجانو] د هغه حمل كول جائز دي.

**اللغات:** ﴿أيتام﴾ جمع د يتيم ده. ﴿أرامل﴾ جمع د أَرْمَلَةٌ او أَرْمَلٌ ده: كونډه. او كونډ. يعني هغه ښځه چې خاوند نه لري. او هغه سړى چې ښځه نه لري. ﴿يحصون﴾ د افعال له بابه د جمع مذكر غائب مضارع صيغه ده؛ شمېرل كېدل. ﴿قربة﴾ نېكي او د نېكۍ كار. عبادت. ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: مالک كول. مالک جوړول. ﴿سدّ﴾ د نصر د باب مصدر دى: بندول. ختمول. خَلَّة: حاجت. ضرورت. سَدُّ خَلَّة: حاجت ختمول. ضرورت پوره كول. ﴿جوعة﴾ وږه (لوږه). ﴿أسامي﴾ جمع د إسم ده: نومونه. ﴿تشعر﴾ د افعال د باب مضارع ده: احساس وركول. اطلاع او خبر وركول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه څوک د يوې قبيلې يا مثلاً د يو كلي د يتيمانو لپاره وصيت وكړي. يا د يوې قبيلې د ړندو (ړندیانو) يا د شلانو لپاره وصيت وكړي. يا د يوې قبيلې د كونډو ښځو

(کونډیانو) لپاره وصیت وکړي، نو دې ته به کتل کیږي چې موصیٰ لهم (یعني یتیمان. یا رنډیان. یا شلان...) شمېرل کېدلای سي، که نه؟ که چیري اول صورت وي یعني هغوی شمېرل کېدلای سي، نو په دې صورت کي د موصیٰ لهم هر فرد په وصیت کي داخلیږي. برابره ده هغه فقیر او محتاج وي او که مالدار وي، په هر صورت کي ټوله د وصیت مستحق کیږي؛ ځکه کله چې د موصیٰ لهم احصاء او شمېر ممکن دی، نو هغوی د وصیت مالک جوړول ممکن دي، نو ځکه هغوی ټوله به د وصیت مستحق کیږي که څه هم هغوی مالداران (شتمن) وي.

او که چیري د موصیٰ لهم احصاء او شمېر ممکن نه وي، نو په دې صورت کي له هغو څخه صرف فقیران او محتاجه کسان د وصیت مستحق کیږي او کوم چې مالداران دي. هغوی له وصیت څخه محرومیږي؛ ځکه په دې صورت کي د موصي مقصد او غرض دا وي چې د موصیٰ لهم حاجت او ضرورت دفع سي او د هغو لوږه ختمه سي، او د یتیمانو، رنډیانو، شلانو له نامه څخه هم غربت او محتاجي ښکاریږي چې داسي کسان عموماً غریبان او محتاجه وي؛ نو همدوی ته په وصیت ورکولو سره د موصي مقصد حاصلیږي، نو ځکه په مذکوره صورت کي به وصیت په موصیٰ لهم کي پر فقیرانو او غریبانو حمل کول کیږي.

**د قبیلې د ځوانانو او بې واده کسانو لپاره د وصیت کولو حکم**

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى لِشُبَّانِ بَنِي فُلَانٍ وَهُمْ لَا يُحْصَوْنَ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي د فلانکی زیو د ځوانانو لپاره وصیت وکړي حال دا چې هغوی شمېرل کېدلای نه سي [یعني بې شمېره وي] أَوْ لِأَيَامَى بَنِي فُلَانٍ وَهُمْ لَا يُحْصَوْنَ یا د فلانکی زیو د بې واده کسانو لپاره وصیت وکړي حال دا چې هغوی شمېرل کېدلای نه سي حَيْثُ تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ نو وصیت باطلیږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي اللَّفْظِ مَا يُنْبِئُ عَنِ الْحَاجَةِ ځکه په دې [د شبان او ایامیٰ] په لفظ کي داسي څه نسته کوم چې د حاجت [احتیاج] خبر ورکړي فَلَا يُمْكِنُ صَرْفُهُ إِلَى الْفُقَرَاءِ نو ځکه د فقیرانو [محتاجانو] وطرف ته د هغه ګرځول ممکن نه دي وَلَا يُمْكِنُ تَصْحِيحُهُ تَمْلِيكًا فِي حَقِّ الْكُلِّ او نه د ټولو [ځوانانو او بې واده کسانو] په مالک جوړولو سره د دغه وصیت صحیح کول ممکن دي [وضاحت به یې په تشریح کي وسي] لِلْجَهَالَةِ الْمُتَفَاحِشَةِ د ډېر زیات جهالت په وجه وَتَعَذُّرِ الصَّرْفِ إِلَيْهِمْ او د دوی ټولو وطرف ته د وصیت ګرځولو د متعذر

کېدلو په وجه [چي ټولو ته وصیت راجع کول او حصه پکښي ورکول نا ممکن دي] وَفِي الْوَصِيَّةِ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ يَجِبُ الصَّرْفُ إِلَى اثْنَيْنِ مِنْهُمْ او د فقیرانو او مسکینانو لپاره د وصیت کولو په صورت کي له هغو څخه دوو کسانو ته وصیت ګرځول [دوو فقیرانو او مسکینانو ته ورکول] واجب دي اِعْتِبَارًا لِمَعْنَى الْجَمْعِ د جمع د معنیٰ په اعتبار کولو سره وَأَقَلُّهُ اثْنَانِ فِي الْوَصَايَا او په وصیتونو کي د جمع اقل مقدار دوه دي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه.

**اللغات:** ﴿شُبَّان﴾ جمع د شَابٌ ده: ځوان. ﴿أَيَامَىٰ﴾ جمع د أَيِّمٌ ده: بې واده ښځه. برابره ده هغه باکره وي او که مطلقه یا کونډه وي، همدارنګه بې واده سړی، برابره ده هغه مخکي واده کړی وي او که یې نه وي کړي (معجم لغة الفقهاء). ﴿صَرْف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګرځول، خرچول (مصرفول).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که څوک د یوې قبیلې یا مثلاً د یو کلي د ځوانانو لپاره وصیت وکړي. یا د یوې قبیلې د بې واده خلګو یا د بې واده ښځو لپاره وصیت وکړي. او هغه ښځي یا هغه ځوانان او خلګ دومره زیات وي چي شمېرل کېدلای نه سي، نو وصیت باطلیږي: ځکه دلته دوه صورتونه دي او هغه دواړه نا ممکن او متعذر دي. یو خو هغه مخکینی صورت دی چي مذکوره وصیت په شبان او ایامیٰ (ځوانانو او بې واده کسانو) کي صرف د فقیرانو او غریبانو لپاره وګرځول سي. دا صورت نا ممکن دی: ځکه د شبان او ایامیٰ (یعني د ځوانانو او بې واده کسانو) د لفظ څخه هیڅ د فقر او حاجت معنیٰ نه ښکاریږي لکه څرنګه چي د ایتام او عمیان (یتیمانو او ړندیانو) د لفظ څخه د فقر او احتیاج معنیٰ ښکاریږي. لهذا دلته د هغو د فقراؤ لپاره وصیت متعین کول متعذر دي. او بل صورت دا دی چي مذکوره وصیت د ټولو ځوانانو او ټولو بې واده کسانو لپاره وګرځول سي او ټوله د وصیت (موصیٰ به) مالکان کړل سي، دا صورت هم نا ممکن دی: ځکه دلته موصیٰ لهم بې شمېره دي چي شمېرل یې ممکن نه دي او د بې شمېره کېدلو په وجه په هغوی کي جهالت فاحشه دی. او جهالت فاحشه د وصیت له نفاذ څخه مانع دی. لهذا کله چي دواړه صورتونه نا ممکن دي. نو ځکه موږ په مذکوره مسئله کي وصیت باطل ګرځولی دی.

وفي الوصيّة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که یو څوک د فقیرانو او مسکینانو (فقراء او مساکین) لپاره وصیت وکړي، نو کم از کم دوو فقیرانو او دوو مسکیانو ته وصیت (موصیٰ به) ورکول ضروري دي: ځکه فقراء او مساکین دواړه د جمعي صیغې دي او د جمع فرد اقل (کمترین فرد) دوه دي. نو ځکه د هر فریق دوو نفرو ته وصیت ورکول ضروري دي.

## د "بنو فلان" (فلانكى زيو) لپاره د وصيت كولو حكم

وَلَوْ أَوْصٰى لِبَنِيْ فُلَانٍ فرمايي: او كه څوک د فلانكي زيو لپاره وصيت وكړي يَدْخُلُ فِيْهِمُ الْإِنَاثُ فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَوَّلِ قَوْلِهٖ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله د اول قول مطابق په هغه [بنو فلان] كي ښځې [هم] داخليږي وَهُوَ قَوْلُهُمَا او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دى لِأَنَّ جَمْعَ الذُّكُوْرِ يَتَنَاوَلُ الْإِنَاثَ ځكه چي جمع مذكر ښځو لره [هم] شامليږي ثُمَّ رَجَعَ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله [له دې قول څخه] رجوع وكړه وَقَالَ: يَتَنَاوَلُ الذُّكُوْرَ خَاصَّةً او ويې فرمايل: چي دا جمع [بنو فلان] فقط نارينه وو لره شامليږي لِأَنَّ حَقِيْقَةَ الْاِسْمِ لِلذُّكُوْرِ ځكه د دې لفظ [بنو] حقيقت د نارينه وو لپاره دى وَانْتِظَامُهُ لِلْإِنَاثِ تَجَوُّزٌ او ښځو لره دا لفظ شاملېدل د مجاز په توګه دي وَالْكَلَامُ لِحَقِيْقَتِهٖ او كلام د خپل حقيقت لپاره وي [يعني پر خپل حقيقي معنىٰ حمل كول كيږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بَنُوْ فُلَانٍ اِسْمَ قَبِيْلَةٍ أَوْ فَخِذٍ په خلاف د هغه صورت كله چي بنو فلان د يوې قبيلې يا د يوې پښې نوم وي حَيْثُ يَتَنَاوَلُ الذُّكُوْرَ وَالْإِنَاثَ نو [په دې صورت كي] هغه نارينه وو او ښځينه وو دواړه لره شامليږي لِأَنَّهٗ لَيْسَ يُرَادُ بِهَا أَعْيَانُهُمْ ځكه چي مراد په هغه سره د دوى اعيان نه وي إِذْ هُوَ مُجَرَّدُ الْاِنْتِسَابِ كَبَنِيْ آدَمَ ځكه هغه محض انتساب دى لكه بنو آدم وَلِهٰذَا يَدْخُلُ فِيْهِ مَوْلَى الْعَتَاقَةِ وَالْمُوَالَاةِ وَحُلَفَاؤُهُمْ په همدې وجه په هغه كي مولى العتاقه، مولى الموالاة او د دوى حلفاء داخليږي.

**اللغات:** ﴿إناث﴾ جمع د أُنْثٰى ده: ماده، ښځينه. ﴿فخذ﴾ په قوم كي يو پښه، جلا پښه، په عربو كي د قوم او قبيلې د بيان او پېژندګلوۍ لپاره شپږ نومان استعمالول كېده چي هغه به تر تشريح وروسته ذكر كړو. ﴿مولى العتاقة﴾ د يو سړي يا د يو قوم له طرفه آزاد كړى سوى غلام چي ولاء يې هغه ته حاصليږي، نو دا غلام د هغه سړي له قوم او قبيلې څخه شمېرل كيږي نو ځكه د بنو فلان په وصيت كي هغه هم داخليږي، حال دا چي د هغو له اولاد څخه نه دى. ﴿مولى الموالاة﴾ هغه كس چي د يو سړي سره يې د دوستۍ او ورورګلوۍ تړون كړى وي... چي كه زه مړ سوم نو زما ميراث ستا دى... (وضاحت يې مخكي تېر سو)، داسي كس د هغه سړي له قبيلې څخه شمېرل كيږي. او بل تفسير يې دا دى چي هغه كس كوم چي د يو سړي يا د يو قوم پر لاس مسلمان سوى وي، نو دا كس له هغو څخه شمېرل كيږي او مولى الموالاة ورته ويل كيږي. ﴿حلفاء﴾ جمع د حليفٌ ده: هغه كس چي يو

سړي يا يو قوم د هغه سره د کومک او مدد کولو تړون کړی وي (چي د ضرورت په وخت کي به موږ او تاسي يو د بل نصرت کوو)، د تناصر تړون کونکی (د تناصر پر تړون قسم اخيستونکی).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي که څوک د بنو فلان (فلانکی زیو) لپاره وصيت وکړي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دغه وصيت کي د بنو فلان نارينه او ښځينه ټول داخليږي (دا په هغه صورت کي چي بنو فلان د يو قبيلې نوم نه وي. يعني موصي د يو سړي د زامنو لپاره وصيت کړی وي)، او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول دی؛ ځکه "جمع مذکر" مؤنث لره هم شامليږي. ليکن امام صاحب رَحِمَهُ الله وروسته له خپل دې قول څخه رجوع وکړه او هغه وفرمايل چي په بنو فلان کي يوازي نارينه (سړيان) داخليږي او ښځي نه پکښي داخليږي؛ ځکه د "بنو" لفظ د سړيانو (نارينه زامنو) لپاره خاص دی او د مجاز په توګه ښځو لره شامليږي. او لفظ پر خپله حقيقي معنیٰ حمل کول زيات غوره دي پر مجازي معنیٰ له حمل کولو څخه. نو ځکه له "بنو" څخه به صرف نارينه خلګ مراديږي.

بخلاف ما إذا كان إلخ: د دې حاصل دا دی چي که "بنو فلان" د يوې قبيلې يا د يوې پښې (فخذ) نوم وي، يعني موصي د يوې قبيلې يا د يوې پښې لپاره وصيت وکړي (مثلاً د ښاديزو لپاره يا د ښاديزي قوم د يوې پښې لپاره) وصيت وکړي؛ نو بيا په بنو فلان (ښاديزو) کي نر او ښځي ټول داخليږي؛ ځکه په دې صورت کي له "بنو فلان" څخه مراد صرف سړيان نه وي، بلکي ښځي هم مراد وي (لکه څرنګه چي زموږ عرف هم داسي دی)؛ ځکه دا خو محض انتساب دی يعني فقط د نسبت لپاره "بنو" ته اضافت کول کيږي. لکه څرنګه چي په "بنو آدم" سره د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام ټوله اولاد ته نسبت کول کيږي. او په بنو فلان (ښاديزو) کي د هغو مولی العتاقه، مولی الموالات او د هغو حلفاء ټول داخليږي. لنډه دا چي په دې صورت کي امام صاحب رَحِمَهُ الله هم په بنو فلان کي ښځي داخلوي.

**﴿د قبيله، فخذ او داسي نورو وضاحت﴾**

په عربي ژبه کي د قوم او قبيلې د پېژندګلوۍ لپاره تقريباً شپږ نومان استعماليږي: ① شعب: د ډېرو قومونو او قبيلو مجموعه ته وايي، مثلاً ربيعه او مضر "شعب" دي (يا مثلاً په پښتو کي غلجي و دُراني او کرلاني وغيره د عربي ژبي پر بناء "شعب" دي). ② قبيله: دا تر شعب کوچنۍ وي، مثلاً کنانه "قبيله" ده. ③ عمارة: دا تر قبيلې کوچنۍ وي، مثلاً قريش "عماره" ده. ④ بطن: دا تر عمارې کوچنۍ وي، مثلاً قصی "بطن" دی. ⑤ فخذ: له بطن څخه کوچنۍ وي، مثلاً هاشم "فخذ" دی. ⑥ فصيلة: دا له فخذ څخه هم کوچنۍ وي، مثلاً عباس "فصيله" ده.

لکه څرنګه چي په پښتو ژبه کي هم په دې سلسله کي څو الفاظ استعماليږي. مثلاً قوم او ټبر، پښه (خېل)، کهول او داسي نور.

## د "ولد فلان" یا د "ورثه فلان" لپاره د وصیت کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِوَلَدِ فُلَانٍ فرمايي: او څوک چې د فلانکي د ولد لپاره وصيت وکړي فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ نو وصيت د هغو [اولاد فلان] تر مينځ [مشترک] دی وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى فِيْهِ سَوَاءٌ او مذکر او مؤنث په دې کي سره برابر دي لِأَنَّ اِسْمَ الْوَلَدِ يَنْتَظِمُ الْكُلَّ انْتِظَامًا وَاحِدًا ځکه لفظ د ولد ټولو لره په يوه شمول سره شامليږي وَمَنْ أَوْصٰى لِوَرَثَةِ فُلَانٍ او څوک چې د فلانکي د وارثانو لپاره وصيت وکړي فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ نو وصيت د هغو تر مينځ [مشترک] دی د نارينه [سړي] لپاره د دوو ښځو د حصې په څېر لِأَنَّهُ لَمَّا نَصَّ عَلٰى لَفْظِ الْوَرَثَةِ ځکه کله چې موصي د وارثانو په لفظ سره صراحت وکړی آذَنَ ذٰلِكَ بِأَنَّ قَصْدَهُ التَّفْضِيْلَ نو هغه د دې خبر ورکړی چې د هغه اراده [نارينه ته پر ښځي] د فضيلت ورکولو ده كَمَا فِي الْمِيْرَاثِ لکه څرنګه چې په ميراث کي دي.

**اللغات:** ﴿ينتظم﴾ د افتعال د باب مضارع ده: شامليدل، مشتمل کېدل، څو شيان سره جمع کول. ﴿نص﴾ د نصر د باب ماضي ده: صراحت کول، په صراحت سره بيانول، په ښکاره الفاظو سره ذکر کول. ﴿تفضيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فضيلت ورکول، ترجيح ورکول.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که څوک د فلانکي د ولد لپاره وصيت وکړي مثلاً داسي ووايي چې زما له مال څخه دي دومره مال د حُسين اولاد ته ورکول سي!، نو په دې وصيت کي د فلانکي (حُسين) ځامن او لوڼي ټول داخليږي، لهذا په وصيت کي به ټول شريکان کيږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که څوک د فلانکي د وارثانو لپاره وصيت وکړي مثلاً داسي ووايي چې دومره مال دي د حُسين وارثانو (ميراث خورو) ته ورکول سي!، نو وصيت (موصیٰ به) به د هغه په وارثانو کي د "للذّکر مثل حظ الأُنثيين" مطابق تقسيمول کيږي، يعني د هغه په وارثانو کي چې هري ښځي ته څومره حصه رسيږي، هغومره دوې حصې به هر سړي ته ورکول کيږي؛ ځکه کله چې موصي په صراحت سره د وارثانو (ميراث خورو) يادونه کړې ده، نو دا واضحه خبره ده چې موصي په وارثانو کي سړيانو ته پر ښځو ترجيح ورکول غواړي او د ترجيح طريقه همدا ده چې په وارثانو کي د "للذّکر مثل حظ الأُنثيين" مطابق تقسيم وکړی سي، لکه څرنګه چې په ميراث کي همدا طريقه جاري ده.

## د "موالي" لپاره د وصیت کولو حکم او تفصیل

وَمَنْ أَوْصٰى لِمَوَالِيهِ او څوک چې د خپل "موالي" لپاره وصیت وکړي وَلَهُ مَوَالٍ أَعْتَقَهُمْ او د هغه [موصي] څه موالي داسي وي کوم چې هغه [موصي] آزاد کړي وي وَمَوَالٍ أَعْتَقُوْهُ او څه موالي داسي وي چې هغو موصي آزاد کړی وي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصیت باطل دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي بَعْضِ كُتُبِهِ: إِنَّ الْوَصِيَّةَ لَهُمْ جَمِيعًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي په خپل بعضي کتابو کي فرمایي: چې وصیت د هغو ټولو لپاره دی وَذَكَرَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ أَنَّهُ يُوْقَفُ حَتّٰى تَصَالَحُوْا او په بل ځای کي یې ذکر کړي دي چې دا وصیت به درول کیږي [توقف به کیږي] تر دې چې هغوی ټوله صلح وکړي لَهُ: أَنَّ الِاسْمَ يَتَنَاوَلُهُمْ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې [د موالي] لفظ هغوی ټولو لره شامل دی لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمْ يُسَمّٰى مَوْلًى ځکه له هغوی څخه هر یوه ته مولیٰ ویل کیږي فَصَارَ كَالْإِخْوَةِ نو هغه د إخوة [ورونو] په څېر سو [چې هغه هر قسم ورونو لره شامل دی] وَلَنَا: أَنَّ الْجِهَةَ مُخْتَلِفَةٌ او زموږ دلیل دا دی: چې جهت مختلف دی لِأَنَّ أَحَدَهُمَا يُسَمّٰى مَوْلَى النِّعْمَةِ ځکه له هغوی دواړو څخه یو فریق ته مولی النعمة ویل کیږي وَالْآخَرُ مُنْعَمٌ عَلَيْهِ او بل فریق ته منعم علیه ویل کیږي فَصَارَ مُشْتَرَكًا نو دا مشترک لفظ سو فَلَا يَنْتَظِمُهُمَا لَفْظٌ وَاحِدٌ فِي مَوْضِعِ الْإِثْبَاتِ نو ځکه یو لفظ [موالي] به د اثبات په ځای کي دواړو قسمونو لره نه شاملیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ مَوَالِيَ فُلَانٍ په خلاف د هغه صورت کله چې موصي قسم واخلي چې د فلانکي د موالیو سره به خبري نه کوي حَيْثُ يَتَنَاوَلُ الْأَعْلٰى وَالْأَسْفَلَ نو دا قسم اعلیٰ او اسفل [دواړه ډوله موالیو] لره شاملیږي لِأَنَّهُ مَقَامُ النَّفْيِ ځکه چې دا د نفي مقام دی وَلَا تَنَافِيَ فِيهِ او په هغه کي هیڅ منافات نسته.

**اللغات:** ﴿موالي﴾ جمع د مَوْلیٰ ده: آزادونکی مالک، آزاد کړی سوی غلام (دا لفظ د دغه دواړو معناوو لپاره استعمالیږي). ﴿تصالحوا﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: یو د بل سره صلح کول، پر یو خبره اتفاق کول. ﴿یتناول﴾ د تفاعل د باب مضارع ده. د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: شاملېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې حامد مثلاً مخکې غلام وو. او د هغه یو مالک وو. یا یې ډېر مالکان وه. بیا هغه یوه مالک یا ډېرو مالکانو حامد آزاد کړی. نو دوی د حامد موالي سول. او تر دې وروسته حامد هم څو غلامان رانیول او آزاد یې کړل. نو حامد د هغو مولیٰ سو او غلامان د حامد موالي سول (ځکه مولیٰ مُعتِق او مُعتَق دواړو ته ویل کیږي او جمع یې موالي راځي. کما ذکرنا). اوس که حامد د خپل موالیو لپاره وصیت وکړي چې مثلاً زما له مال څخه دې دومره مال زما موالیو ته ورکول سي او دا ښکاره نه کړي چې زما مراد له موالي څخه څوک دی؟ مُعتَق او که مُعتِق. نو په دې صورت کې څه حکم دی؟.

زموږ په نېز حکم دا دی چې دا وصیت باطل دی.

او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې دوه قوله نقل سوي دي:

① د شوافعو په بعضې کتابو کې دي چې دا وصیت د ټولو موالیو (مُعتِق او مُعتَق دواړو) لپاره دی او د ټولو په مینځ کې به وصیت نافذول کیږي.

② دویم قول دا دی چې د دغه وصیت په هکله به توقف کول کیږي، او کله چې دواړه قسمه موالي پر دې خبره صلح او اتفاق وکړي چې د وصیت مال زموږ او ستاسو تر مینځ نیم په نیمه دی یعني مُعتِق او مُعتَق ټوله موالي په خپل مینځ کې د نصف، نصف وصیت په اخیستلو باندي راضي سي، نو بیا به دا وصیت نافذول کیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې لفظ د مَوَالِي هر قسم موالیو لره شامل دی (یعني هم معتِق لره او هم معتَق لره) لکه څرنګه چې لفظ د إِخْوَة هر قسم ورونو لره شامل دی، نو ځکه په موالیو کې به د موصي (حامد) معتِق او معتَق دواړه قسمه موالي شامل او داخل وي، او ټوله به د وصیت حقداره وي.

زموږ دلیل دا دی چې د لفظ په اعتبار سره موالي که څه هم دواړه قسمه موالیو لره شامل دی، لیکن د معنیٰ په اعتبار سره هغه دواړو لره شامل نه دی؛ ځکه د دواړو جهات مختلف دي، یوه ته په دې اعتبار سره موالي ویل کیږي چې هغه "مولیٰ نعمة" یعني معتِق (آزادونکي) دی او بل ته په دې اعتبار سره موالي ویل کیږي چې هغه "مُنعَم علیه" یعني معتَق (آزاد کړی سوی) دی یا په بله وینا دا چې یو د آزادۍ انعام ورکونکی او پر بل د آزادۍ انعام سوی دی، نو لفظ د موالي عام نه سو بلکې مشترک سو. او قاعده دا ده چې کله مشترک لفظ په موضع اثبات (مثبت مقام) کې مستعمل وي، نو هغه خپل ټولو افرادو لره نه شاملیږي یعني کوم افراد چې په هغه کې داخل وي. هغوی ټولو لره نه شاملیږي؛ ځکه په

مشترک کي عموم نه وي، همدارنګه دا هم ممکنه نه ده چي له هغه افرادو څخه يو فرد مراد کړی سي ځکه چي دا ترجيح بلا مجرح ده، نو ځکه دلته د وصيت له باطلولو څخه بغير بله چاره نسته.

او که مشترک لفظ په موضع نفي (منفي مقام) کي وي، نو هلته عموم پکښي راځي، مثلاً که څوک قسم واخلي چي زه به د فلانکي د مواليو سره خبري نه کوم، نو په دې کي هر قسم موالي شامليږي يعني مُعتِق هم او مُعتَق هم، ځکه مشترک لفظ د نفي په مقام کي عموم فايده کوي او د عموم په توګه اعلیٰ او اسفل ټولو لره شامليږي.

## د "موالي "لپاره د وصيت کولو نور وضاحت

وَيَدْخُلُ فِيْ هٰذِهِ الْوَصِيَّةِ مَنْ أَعْتَقَهُ فِي الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ او په دغه وصيت کي هغه موالي [تړله] داخليږي کوم چي موصي په [خالت د] صحت او مرض کي آزاد کړي وي وَلَا يَدْخُلُ مُدَبَّرُوْهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ او د موصي مدبر غلامان او اُم ولد مينځي نه [پکښي] داخليږي لِأَنَّ عِتْقَ هٰؤُلَاءِ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چي د دوی عتق [د موصي] تر مرګ وروسته ثابتيږي وَالْوَصِيَّةُ تُضَافُ إِلٰى حَالَةِ الْمَوْتِ او وصيت [د موصي] د مرګ وحالت ته مضاف کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ تَحَقُّقِ الِاسْمِ قَبْلَهُ نو تر مرګ مخکي د لفظ [عتق او مولیٰ (آزاد کرده)] ثابتېدل ضروري دي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُمْ يَدْخُلُوْنَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چي دوی هم [په وصيت کي] داخليږي لِأَنَّ سَبَبَ الِاسْتِحْقَاقِ لَازِمٌ ځکه چي [د دوی] د استحقاق سبب لازم دی وَيَدْخُلُ فِيْهِ عَبْدٌ قَالَ لَهُ مَوْلَاهُ: إِنْ لَمْ أَضْرِبْكَ فَأَنْتَ حُرٌّ او په دې کي هغه غلام هم داخليږي چي هغه ته مالک ويلي وي: که ما ته نه ووهلې نو ته آزاد يې! لِأَنَّ الْعِتْقَ يَثْبُتُ قُبَيْلَ الْمَوْتِ عِنْدَ تَحَقُّقِ عَجْزِهِ ځکه عتق تر مرګ لږ مخکي د هغه [مالک] د عاجزي د ثابتېدلو په وخت کي ثابتيږي [يعني تر مرګ څه مخکي چي له ضرب څخه مالک عاجزه سي، نو د مذکوره غلام عتق ثابتيږي].

**اللغات**: ﴿مدبروه﴾ جمع د مُدَبَّرده: هغه غلام چي مالک د هغه آزادي پر خپل مرګ معلقه کړې وي (يعني هغه ته يې ويلي وي چي زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!). ﴿أمهات اولاده﴾ جمع د اُمِّ وَلَد ده (د هلک مور)، هغه مينځي ته وايي چي مالک (مولیٰ) د هغې سره وطي وکړي او د هغه وطي په نتيجه کي له مينځي څخه بچی پيدا سي.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی کـه موصـي د خپـل "موالي" لپاره وصیت وکړي او د ده په موالیو کي صرف آزاد کړل سوي غلامان وي، نو په دغه وصیت کي هغوی ټوله داخلیږي که څه هم موصي هغوی بعضي په حالت د صحت کي او بعضي یې په حالت د مرض کي آزاد کړي وي؛ ځکه ټوله د ده موالي کیږي او په موالیو کي داخل دي، نو ځکه ټوله به د وصیت مستحق کیږي. ها! د موصي مدبر غلامان او اُم ولد مینځي له دغه وصیت څخه مستثنیٰ دي او هغوی په وصیت کي نه داخلیږي: ځکه د مدبر او اُم ولد عتق د موصي تر مرګ وروسته ثابتیږي، نو د وصیت د مستحق کېدلو لپاره د موصي د مرګ په وخت کي د هغو آزادېدل ضروري دي، حال دا چي وصیت تر مرګ وروسته حالت مضاف کیږي نو د موصي د مرګ په وخت کي هغوی آزا نه دي، نو ځکه هغوی به د وصیت هم نه مستحق کیږي.

وعن أبي یوسف إلخ : فرمایي چي د مدبر او اُم ولد په هکله له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا نقل سوی دی چي په مذکوره وصیت کي مدبر غلامان او اُم ولد مینځي هم داخلیږي: ځکه که څه هم فی الحاله هغوی آزاد نه دي، لېکن د هغو د آزادۍ سبب پوخ او لازمي دی چي د موصي تر مرګ وروسته حتماً هغوی آزادیږي.

ویدخل فیه إلخ : د دې حاصل دا دی چي که موصيٰ خپل غلام ته داسي ویلي وي چي که چیري ما ته نه ووهلې، نو ته آزاد یې! او تر وهلو مخکي موصي مړ سوی وي، نو دا غلام هم په مذکوره وصیت کي داخلیږي؛ ځکه کله چي موصي د مرګ تر وخته پوري هغه نه ووهلی، نو د مرګ په وخت کي له وهلو (ضرب) څخه د موصي عجز متحقق سو، لهذا تر مرګ مخکي هغه آزاد سو. نو ځکه هغه به د موصي د وصیت مستحق وي، ځکه د وصیت د استحقاق لپاره چي کوم شی شرط وو. هغه موجود سو.

## د موالیو لپاره د وصیت کولو په صورت کي د هغو اولاد هم په وصیت کي داخلیږي

| |
|---|
| وَلَوْ كَانَ لَهُ مَوَالٍ وَأَوْلَادُ مَوَالٍ وَمَوَالِي مُوَالَاةٍ او که د موصي لپاره موالي وي او د موالیو اولاد وي او د موالاة [عقدِ موالاة] موالي وي يَدْخُلُ فِيهَا مُعْتَقُوهُ وَأَوْلَادُهُمْ دُونَ مَوَالِي الْمُوَالَاةِ نو په دې وصیت کي د موصي آزاد کرده غلامان [موالي] او د هغو اولاد داخلیږي، نه د موالاة موالي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُمْ يَدْخُلُونَ أَيْضًا وَالْكُلُّ شُرَكَاءُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي موالی الموالاة هم [پکښي] داخلیږي او ټوله سره شریکان دي لِأَنَّ الِاسْمَ يَتَنَاوَلُهُمْ عَلَى السَّوَاءِ ځکه چي لفظ د موالي |

ټولو لره په برابره توګه شامليږي وَمُحَمَّدٌ يَقُوْلُ: الْجِهَةُ مُخْتَلِفَةٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جهت مختلف دی فِي الْمُعْتَقِ الْإِنْعَامُ وَفِي الْمَوَالِي عَقْدُ الْالْتِزَامِ چي په معتَق کي د انعام جهت دی او په موالي [موالی الموالاة] کي د عقد التزام جهت دی [يعني د عقد موالاة د التزام جهت] وَالْإِعْتَاقُ لَازِمٌ او اعتاق لازم دی فَكَانَ الْاِسْمُ لَهُ أَحَقَّ نو ځکه دا لفظ [د موالي] به صرف د معتَق لپاره زيات لائق وي وَلَا يَدْخُلُ فِيْهِمْ مَوَالِي الْمَوَالِي او په موالي [مُعتَقينو] کي د مواليو موالي [د مُعتَقينو مُعتَقين] نه داخليږي لِأَنَّهُمْ مَوَالِي غَيْرِهِ حَقِيْقَةً ځکه چي هغوی په حقيقت کي له موصي څخه بغير د بل چا موالي دي بِخِلَافِ مَوَالِيْهِ وَأَوْلَادِهِمْ په خلاف د موصي د خپل مواليو او د هغوی د اولاد [نو هغوی په دې وجه په وصيت کي داخليږي] لِأَنَّهُمْ يُنْسَبُوْنَ إِلَيْهِ بِإِعْتَاقٍ وُجِدَ مِنْهُ ځکه چي دا [موالي او اولاد يې] د داسي اعتاق په وجه د موصي وطرف ته منسوب دي کوم چي د موصي له طرفه موجود [واقع] سوی دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَوَالٍ وَلَا أَوْلَادُ الْمَوَالِي او په خلاف د هغه صورت کله چي د موصي لپاره نه موالي وي او نه د مواليو اولاد [نو بيا په وصيت کي موالی الموالی داخليږي] لِأَنَّ اللَّفْظَ لَهُمْ مَجَازٌ ځکه چي لفظ [د موالي] د هغو [موالی الموالی] لپاره مجاز دی فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ اعْتِبَارِ الْحَقِيْقَةِ نو ځکه د حقيقت [حقيقي معنی] د اعتبار متعذر کېدلو په وخت کي به دا لفظ [موالي] د مجاز وطرف ته ګرځول کيږي.

**اللغات**: ﴿على السواء﴾ په برابري سره. ﴿تعذُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: متعذر کېدل. ناممکن کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موصي د خپل "موالي" لپاره وصيت وکړی. او د موصي لپاره درې قسمه موالي دي ① موالي (کوم چي موصي آزاد کړي دي). ② د هغو اولاد. ③ موالي الموالاة يعني هغه خلک چي د موصي پر لاس يې اسلام راوړی دی او د هغه سره يې د دوستۍ عقد کړی دی. نو په داسي صورت کي د جمهورو د قول مطابق صرف د موصي موالي (آزاد کرده غلامان) او د هغو اولاد په وصيت کي داخليږي. او موالي الموالاة نه پکښي داخليږي او هغوی د وصيت نه مستحق کيږي. او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چي موالي الموالاة هم په وصيت کي داخليږي او هغوی د مواليو او د هغو د اولاد سره په وصيت کي شريکان کيږي؛ ځکه لفظ د موالي عام دی او دوی

ټولو ته په برابره توګه شامل دی او ټولو ته موالي ویل کیږي. او څرنګه چې موصي مطلق د موالي لفظ استعمال کړی دی. نو ځکه هر قسم موالي به په هغه کې شامل او داخل وي.

لېکن د جمهورو له طرفه امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله ته امام محمد رَحِمَهُ الله دا جواب ورکړی دی چې لفظ د موالي که څه هم عام دی. لېکن د هغه جهات مختلف دی (لکه مخکې چې هم ذکر سوه)، ځکه یو فریق (آزاد کرده غلامان) د مُعتَق او مُنعَم علیهم کېدلو په وجه موالي دی او بل فریق (موالي الموالاة) د عقدِ موالاة د التزام کولو په وجه موالي دي، او د جهاتو د اختلاف باوجود دلته ترجیح ممکنه ده،

ځکه د مُنعَم علیهم (آزاد کرده غلامانو) په حق کې اعتاق لازم دی کوم چې نه سي فسخ کېدلای. نو ځکه صرف همدوی د "موالي" جوړېدلو او د وصیت مستحق کېدلو زیات لائق دي. نو ځکه موږ صرف همدوی د وصیت مستحق ګرځولي دي او په موالی الموالاة کې اعتاق نسته او موالاة د فسخ احتمال لري، نو ځکه موالی الموالاة د موصي په وصیت کې نه دي داخل کړل سوي.

همدارنګه د موصي د موالیو موالي (د مُعتَقینو مُعتَقین) هم په دې وصیت کې نه داخلیږي یعني د موصي آزاده کرده غلامانو چې خپل کوم غلامان آزاد کړي دي، هغوی هم د وصیت نه مستحق کیږي؛ ځکه هغوی د موصي موالي نه دي، بلکي د بل چا (یعني د موصي د موالیو) موالي دي.

د دې په خلاف د موصي د موالیو اولاد په دې وجه په دغه وصیت کې داخلیږي او د وصیت مستحق کیږي؛ ځکه د موالیو اولاد د موصي د اعتاق په وجه د موصي وطرف ته منسوب دی او د موالیو په واسطه سره هغوی هم د موصي موالي دي، نو ځکه کوم چې بلا واسطه د موصي موالي دي، د هغو په متابعت کې به اولاد هم د موصي د موالیو په فهرس کې شاملیږي او د وصیت به مستحق کیږي.

او که د موصي لپاره نه موالي وي او نه د موالیو اولاد، بلکي صرف موالی الموالي (د مُعتَقینو مُعتَقین) وي، نو په دې صورت کې هغوی د وصیت مستحق کیږي؛ ځکه د "موالی" لفظ د موالیو (آزاد کرده غلامانو) لپاره حقیقت دی او د موالی الموالیّ لپاره مجاز دی، او څرنګه چې دلته موالي نسته او د دې لفظ پر حقیقي معنیٰ عمل کول ناممکن دي، نو ځکه اوس به د موالي پر مجازي معنیٰ عمل کول کیږي نو اوس به موالی الموالاة د وصیت مستحق کیږي، ځکه د فقهي دا مشهوره قاعده ده "إذا تعذّر العمل على الحقيقة يُصار إلى المجاز" چې کله پر حقیقت (حقیقي معنی) عمل کول متعذر وي نو د مجاز وطرف ته رجوع کول کیږي. او څرنګه چې دلته د "موالي" په حقیقي معني عمل کول نا ممکن دي. نو ځکه په مجازي معنیٰ عمل کول کیږي.

## د موالیو لپاره د وصیت کولو په صورت کې که صرف یو معتق او څو موالی الموالي وي

وَلَوْ كَانَ لَهُ مُعْتَقٌ وَاحِدٌ وَمَوَالِي الْمَوَالِيْ او که د موصي لپاره [صرف] یو آزاد کړی سوی غلام وي او نور د موالیو موالي [د مُعتَقینو مُعتَقین] وي فَالنِّصْفُ لِمُعْتَقِهِ نو نصف وصیت د هغه د آزاد کړی سوی غلام لپاره دی وَالْبَاقِي لِلْوَرَثَةِ او پاته نصف د وارثانو لپاره دی لِتَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْحَقِيقَةِ وَالْمَجَازِ ځکه چې د حقیقت او مجاز تر مینځ جمع ناممکنه ده.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موصي د خپل "موالي" لپاره وصیت وکړي، حال دا چې د هغه په موالیو کې صرف یو آزاد کړی سوی غلام (مُعتَق) وي او نور موالی الموالي (د مُعتَقینو مُعتَقین) وي یعني نور هغه غلامان وي کوم چې د موصي غلام آزاد کړي وي، نو په دې صورت کې نصف وصیت (نیم موصیٰ به) به د هغه یوه معتَق لپاره دی او پاته نصف به وارثانو ته ورکول کیږي؛ ځکه که موږ پاته نصف موالی الموالی ته ورکړو، نو په یوه شي کې به د حقیقت او مجاز یعني د معتَق او موالی الموالی دواړو اجتماع لازمه سي، حال دا چې د حقیقت او مجاز اجتماع متعذره او ناممکنه ده. نو ځکه په دې صورت کې په حقیقت له عمل کولو څخه وروسته پاته مال به وارثانو ته ورکول کیږي، د دې لپاره چې د حقیقت او مجاز اجتماع لازمه نه سي.

## د موالیو لپاره د وصیت کولو په صورت کې د ځوی او پلار موالي په وصیت کې نه داخلیږي

وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ مَوَالٍ أَعْتَقَهُمُ ابْنُهُ أَوْ أَبُوهُ او په دې کې هغه موالي [آزاد کرده غلامان] نه داخلیږي کوم چې د موصي ځوی یا د هغه پلار آزاد کړي وي لِأَنَّهُمْ لَيْسُوا بِمَوَالِيهِ لَا حَقِيقَةً وَلَا مَجَازًا ځکه چې هغوی د موصي موالي نه دي نه حقیقتاً او نه مجازاً وَإِنَّمَا يُحْرِزُ مِيرَاثَهُمْ بِالْعُصُوبَةِ او موصي خو د عصوبت په وجه د هغوی میراث حاصلوي بِخِلَافِ مُعْتَقِ الْمُعْتَقِ په خلاف [د موصي] د معتَق معتَق [یعني هغه آزاد غلام کوم چې (د موصي) آزاد کړی سوي غلام آزاد کړی وي] لِأَنَّهُ يُنْسَبُ إِلَيْهِ بِالْوَلَاءِ ځکه چې هغه د ولاء په ذریعه د موصي وطرف ته منسوب کول کیږي.

**اللغات**: ﴿أعتق﴾ د افعال باب ماضي ده: آزادول. ﴿يُحرز﴾ د افعال د باب مضارع ده: جمع کول او ذخیره کول. ﴿عصوبة﴾ عصبه کېدل، عصبه والی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: که موصي د خپل موالیو (آزاد کرده غلامانو) لپاره وصیت وکړي، نو په دغه وصیت کې هغه موالي نه داخلیږي کوم چې د موصي پلار یا د موصي ځوی آزاد کړي وي؛ ځکه د پلار یا ځوی موالي خو نه حقیقتاً د موصي موالي دي او نه مجازاً، نو آخر پر کوم بنیاد مونږ هغوی د دغه وصیت مستحق وګرځوو.

وإنما يحرز إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د موصي د پلار یا د هغه د ځوی له موالیو څخه یو مولیٰ مړ سي او د موصي پلار یا ځوی غائب وي، نو په دې صورت کې موصي د عصوبت په وجه د هغه مولیٰ د میراث مستحق کیږي او دا استحقاق د سببي عصوبت پر بنیاد وي یعني په دې صورت کې موصي د هغو وارث کیږي (د عصوبت دوه قسمه دي: نسبي او سببي)، لیکن هغوی (پلار او ځوی) په هیڅ صورت کې هم د موصي د وصیت نه مستحق کیږي.

بخلاف معتق المعتق إلخ: یعني د موصي د معتَق معتَق (یا په بله وینا مولی المولیٰ) یعني د موصي آزاد کرده غلام چې کوم غلام آزاد کړی دی، هغه د موصي د وصیت مستحق کیږي په دې شرط کله چې د موصي لپاره نه موالي وي او نه د هغوی اولاد وي (او مخکې چې د موالی الموالي کوم صورت ذکر سو په هغه کې د موصي موالي او د هغوی اولاد موجود وو)، نو کله چې هغوی نه وي، نو بیا معتَقُ المعتَق د وصیت مستحق کیږي؛ ځکه د معتَقُ المعتَق ولاء د موصي وطرف ته مجازاً منسوب کیږي، په خلاف د ځوی د معتَق؛ ځکه چې د هغه د ولاء د موصي وطرف ته نه حقیقتاً منسوب کیږي او نه مجازاً.

**یادونه**: د هدایې په بعضي نسخو کې عبارت داسي دی "بخلاف معتق البعض"، لیکن صحیح عبارت "بخلاف معتق المعتق" دی؛ ځکه معتق البعض صرف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په وصیت کې داخلیږي، نه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز، ځکه معتق البعض د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د مکاتب په څېر دی، والمکاتب لا یدخل تحت الوصیة للموالي، فکذا معتق البعض، لکه څرنګه چې په بنایه، عنایه او داسي نورو شروحو کې د دې پوره وضاحت سوی دی.



# بَابُ الْوَصِيَّةِ بِالسُّكْنٰى وَالْخِدْمَةِ وَالثَّمَرَةِ

(دا) باب د استوګنې، خدمت او د مېوې د وصيت کولو (په بيان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې د هغه وصايا (وصيتونو) بيان وو کوم چې د اعيانو سره متعلق وه. اوس له دې ځايه د هغه وصايا وو بيان دی کوم چې د منافعو سره متعلق دي لکه په کور وغيره کې اوسېدل. د غلام او نوکر خدمت او د باغ مېوه. او دا ښکاره خبره ده چې اعيان له منافعو څخه مؤخر وي، نو ځکه دا باب د اعيانو تر وصيت وروسته بيان کړی سو.

## د غلام د خدمت يا د کور د استوګنې يا د بل شي د منافعو وصيت جائز دی، که نه؟

قَالَ: وَتَجُوْزُ الْوَصِيَّةُ بِخِدْمَةِ عَبْدِهٖ وَسُكْنٰى دَارِهٖ سِنِيْنَ مَعْلُوْمَةً فرمايي: او جائز دي وصيت کول د خپل غلام د خدمت او د خپل کور د استوګنې د څو معلومو کالو لپاره وَتَجُوْزُ بِذٰلِكَ أَبَدًا او د دې شيانو [منافعو] وصيت د همېشه لپاره کول [هم] جائز دي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ يَصِحُّ تَمْلِيْكُهَا فِيْ حَالَةِ الْحَيَاةِ بِبَدَلٍ وَغَيْرِ بَدَلٍ ځکه د ژوند په حالت کې په بدل او غير بدل [دواړو] سره د منافعو تمليک صحيح دی فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ نو همداسې به تر مرګ وروسته هم [صحيح] وي لِحَاجَتِهٖ د موصي د حاجت په وجه كَمَا فِي الْأَعْيَانِ لکه څرنګه چې په اعيانو کې کيږي وَيَكُوْنُ مَحْبُوْسًا عَلٰى مِلْكِهٖ فِيْ حَقِّ الْمَنْفَعَةِ او موصىٰ به [غلام يا کور] د موصي پر ملکيت محبوس پاتېږي حَتّٰى يَتَمَلَّكَهَا الْمُوْصٰى لَهٗ عَلٰى مِلْكِهٖ تر دې چې موصىٰ لهٗ به د موصي پر ملکيت د دې منفعت مالک کيږي كَمَا يَسْتَوْفِي الْمَوْقُوْفُ عَلَيْهِ مَنَافِعَ الْوَقْفِ عَلٰى حُكْمِ مِلْكِ الْوَاقِفِ لکه څرنګه چې موقوف عليه د وقف منافع د واقف د ملکيت پر حکم ترلاسه کوي.

**اللغات:** ﴿سكنٰى﴾ اوسېدنه، استوګنه ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مالک کول، مالک جوړول. ﴿يتملّك﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مالک جوړېدل. ﴿يستوفي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پوره اخيستل، ترلاسه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک د خپلو منافعو وصیت وکړي، مثلاً د یو چا لپاره د خپل غلام د خدمت وصیت وکړي (چې زما تر مرګ وروسته به زما غلام ستا خدمت کوي)، یا د خپل کور د استوګنې وصیت وکړي، یا د یو چا لپاره د خپل باغ د مېوې وصیت وکړي، نو په دې ټولو صورتونو کې وصیت صحیح او جائز دی، په دې شرط چې د منافعو دا خیستلو مودت معلوم او متعیّن وي، یا د همېشه لپاره دا وصیت سوی وي؛ ځکه څرنګه چې انسان په خپل ژوند کې په اُجرت یا بلا اُجرته یو څوک د منافعو مالک جوړولای سي، نو همداسې هغه تر خپل مرګ وروسته هم یو څوک د منافعو مالک کولای سي؛ ځکه ځینې وخت د هغه دې ته حاجت او ضرورت وي. او بل دا چې کله د عَین یعنې د غلام او کور وغیره وصیت کول صحیح دي، نو د هغه د منافعو وصیت کول به په درجه اولیٰ صحیح وي. خو د منافعو د وصیت په صورت کې موصیٰ لهٗ صرف د منافعو مالک کېږي، نه د عَین، او عَین اصل د موصي په ملکیت کې پاتېږي، لکه څرنګه چې د وقف کولو په صورت کې وقف سوی شی اصل د واقف په ملکیت کې پاتېږي او موقوف علیه صرف د هغه د منافعو مالک کېږي، نو همداسې دلته به هم موصیٰ لهٗ صرف منافع ترلاسه کوي او اصل شی یعنې عَین به صرف د موصي په ملکیت کې وي.

**د منافعو وصیت د مقرره وخت لپاره وي او که د همېشه لپاره وي په هر صورت کې جائز دی**

وَتَجُوْزُ مُؤَقَّتًا وَمُؤَبَّدًا او دا [د منافعو] وصیت جائز دی د ټاکلي وخت لپاره او د همېشه لپاره كَمَا فِي الْعَارِيَةِ لکه څرنګه چې په عاریت کې دي فَإِنَّهَا تَمْلِيْكٌ عَلٰى أَصْلِنَا ځکه عاریت زموږ پر اصل تملیک دی بِخِلَافِ الْمِيْرَاثِ په خلاف د میراث لِأَنَّهٗ خِلَافَةٌ فِيْمَا يَتَمَلَّكُهُ الْمُوْرِثُ ځکه چې میراث خلافت [خلیفه کېدل] دی د هغه شي د کوم شي چې مورث [مړی] مالک دی وَذٰلِكَ فِيْ عَيْنٍ تَبْقٰى او خلافت په داسې عین [شي] کې کېږي کوم چې باقي پاتېږي وَالْمَنْفَعَةُ عَرَضٌ لَا يَبْقٰى او منفعت عرض دی کوم چې باقي نه پاتېږي وَكَذَا الْوَصِيَّةُ بِغَلَّةِ الْعَبْدِ وَالدَّارِ او همدارنګه د کور او غلام د اُجرت وصیت کول لِأَنَّهٗ بَدَلُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې دا اُجرت د منفعت بدل دی فَأَخَذَ حُكْمَهَا نو دا اُجرت به د منفعت حکم واخلي وَالْمَعْنٰى يَشْمَلُهُمَا او معنیٰ [یعنې د موصي حاجت] دې دواړو [منفعت او اُجرت] لره شاملېږي.

**اللغات:** ﴿مؤقت﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: د ټاکلي وخت والا، د مقرّره وخت لپاره. ﴿مؤبد﴾ مخکنی صیغه ده: همېشني، د همېشه لپاره. ﴿عارِيَة﴾ په عاريت (په خواست) اخیستل سوی شی، عاريتاً ورکول سوی شی، د إعاره معنیٰ ده: "تمليكُ المنافع بلا عوض على أن ترد العين" يعني چي څوک یوچا ته یو شی مفت (بېله عوضه) ورکړي او ورته ووايي چي ته خپل نفع ځني واخله! (یعني د هغه شي د نفع مالک یې کړي). یا په بله وینا دا چي يو سړی بل چا ته خواست وکړي چي تر یو څو وخته ستا فلانکی شی (مثلاً موټر سايکل) راکړه!، او هغه شی ورکړي چي ته خپل کار ځني واخله! او تر کار اخیستلو وروسته یې بېرته ما ته وسپاره!، نو دې ته عاريتاً ورکول وايي. ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مالک کول، مالک جوړول. ﴿عرض﴾ بذاتِ نه قائمېدونکی شی. ﴿غلّة﴾ د غَلَّة د لفظ څلور معناوي دي: ① د ځمکي پیداوار، کوم څه چي له ځمکي څخه اخيستل کیږي، حاصلات، آمدن، له ځمکي څخه راتونکی فصل او داني، لکه غنم، وريجي او داسي نور. ② أجرت او کرایه، یعني پر کور، دوکان او داسي نورو چي کومه کرایه اخیستل کیږي. ③ د غلام أجرت، یا په بله وینا د غلام مزدوري او ګټه (محاصل)، یعني غلام چي په خپل محنت او مزدوري سره کوم مال ګټي. ④ هغه کوټه دراهم کوم چي یې بیتُ المال (سرکار) نه قبلوي لېکن تاجران یې قبلوي، دلته دویمه او درېیمه معنیٰ مراد ده.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د منافعو وصيت مؤبد او مؤقت دواړه قسمه جائز دی، یعني د همېشه لپاره هم د منافعو وصيت جائز دی او د ټاکلي وخت لپاره هم دا وصيت جائز دی: ځکه منافع د عاريت په څېر دي او عاريت زموږ د اصل مطابق تمليک دی، نو ځکه منافع به هم د تمليک له قبيلې څخه وي؛ د دې په خلاف ميراث دی نو ميراث تمليک نه دی، بلکي خلافت دی (یعني وارث ته د مړي د خليفه او نائب کېدلو په توګه ميراث حاصلیږي، نه د مالک جوړېدلو په توګه)، او خلافت په باقي پاتېدونکو اعيانو کي جاري کیږي، حال دا چي منافع عرض دي او هغه باقي هم نه پاتیږي، نو ځکه په منافعو کي به خلافت يعني ميراث نه جاري کیږي.

**وكذا الوصية إلخ:** یعني څرنګه چي د غلام او کور د منافعو وصيت جائز دی، همداسي له غلام او کور څخه د حاصلېدونکي کرايې او أجرت وصيت کول هم جائز دي؛ ځکه دغه کرايه او أجرت د غلام او کور د منافعو بدل دی، لهذا کوم حکم چي د مبدل دی، هغه به د بدل هم وي او د مبدل (منافعو) وصيت جائز دی، نو ځکه د بدل وصيت به هم جائز وي.

## د خدمت د وصیت په صورت کې چې که غلام له ثلث څخه خارج سي (حکم او تفصیل)

قَالَ: فَإِنْ خَرَجَتْ رَقَبَةُ الْعَبْدِ مِنَ الثُّلُثِ فرمایي: نو که د دې غلام رقبه له ثلث څخه ووځي يُسَلَّمُ إِلَيْهِ لِيَخْدُمَهُ نو غلام به هغه [موصیٰ لهٔ] ته سپارل کیږي لِأَنَّ حَقَّ الْمُوصٰى لَهُ فِي الثُّلُثِ لَا تُزَاحِمُهُ الْوَرَثَةُ ځکه د موصیٰ لهٔ حق په ثلث [دریمه حصه] کې دی چې په هغه کې وارثان د ده نه مزاحم کیږي وَإِنْ كَانَ لَا مَالَ لَهُ غَيْرُهُ او که له دې غلام څخه بغیر د موصي لپاره نور مال نه وي خَدَمَ الْوَرَثَةَ يَوْمَيْنِ وَالْمُوصٰى لَهُ يَوْمًا نو غلام به دوې ورځې د وارثانو خدمت کوي او یوه ورځ د موصیٰ لهٔ لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الثُّلُثِ وَحَقَّهُمْ فِي الثُّلُثَيْنِ ځکه چې د موصیٰ لهٔ حق په ثلث کې دی او د وارثانو حق په دوو ثلثو کې دی كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ فِي الْعَيْنِ لکه څرنګه چې د عَین په وصیت کې کیږي وَلَا تُمْكِنُ قِسْمَةُ الْعَبْدِ أَجْزَاءً او د اجزاوُ [حصه. حصه کولو] په توګه د غلام تقسیم ممکن نه دی لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چې غلام جزء، جزء [حصه. حصه] نه کیږي فَصِرْنَا إِلَى الْمُهَايَأَةِ نو ځکه موږ د مهایاة [په نوبت سره د خدمت اخیستلو] وطرف ته رجوع وکړه إِيفَاءً لِلْحَقَّيْنِ د دواړو حقونو د پوره کولو لپاره بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ بِسُكْنَى الدَّارِ إِذَا كَانَتْ لَا تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ په خلاف د کور د استوګنې د وصیت کولو کله چې هغه کور له ثلث څخه نه وځي حَيْثُ تُقْسَمُ عَيْنُ الدَّارِ ثَلَاثًا لِلِانْتِفَاعِ نو [په دې صورت کې] به د کور عین [ذات] پر دریو حصو تقسیمول کیږي د نفع اخیستلو لپاره لِأَنَّهُ يُمْكِنُ الْقِسْمَةُ بِالْأَجْزَاءِ ځکه [په دې صورت کې] په اجزاوُ [حصو] سره تقسیم ممکن دی وَهُوَ أَعْدَلُ او همدا [په حصو سره تقسیم] عدل ته زیات نژدې دی لِلتَّسْوِيَةِ بَيْنَهُمَا زَمَانًا وَذَاتًا د زمان او ذات په اعتبار سره د دوی دواړو تر مینځ د برابرۍ راتللو په وجه [یعني په دې وجه أعدل دی چې په داسې تقسیم سره د موصیٰ لهٔ او وارثانو تر مینځ په وخت او د کور په ذات کې برابري راځي] وَفِي الْمُهَايَأَةِ تَقْدِيمُ أَحَدِهِمَا زَمَانًا او په مهایاة کې له دوی دواړو [موصیٰ لهٔ او وارثانو] څخه د یوه مخکې کول سته.

**اللغات**: ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات. ﴿موصٰی له﴾ د چا لپاره چې وصیت سوی وي. ﴿لا تـزاحم﴾ د مفاعلې له بابه د نفې صیغه ده: مقابل کېدل، مقابله کول. ﴿لایتجزّی﴾ د تفعّل له بابه د نفې صیغه ده: جزء، جزء کېدل، حصه، حصه کېدل، ټوټه ټوټه کېدل. ﴿مهایـاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: دیو

شي منافع په نوبت سره تقسيمول چي مثلاً يوه ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي او بله ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي، په نوبت. نوبت سره يو كار كول. ﴿ايفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) پوره كول. پوره اداء كول، پوره وركول. ﴿أعدل﴾ د كرُم له باب څخه اسمِ تفضيل دی. زيات عدل او انصاف والا. زيات برابري كونكی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه زيد مثلاً د خالد لپاره د خپل غلام د خدمت وصيت وكړي او له دې غلام څخه بغير د موصي (زيد) سره دومره مال نور هم وي كوم چي د غلام له قيمت څخه دوه ثلثه يا تر دې زيات وي (يا په بله وينا دا چي د موصي سره د غلام د قيمت په اندازه دوچنده نور مال هم موجود وي) يعني غلام له ثلث څخه وځي، نو هغه غلام به موصیٰ لهٗ (خالد) ته پوره سپارل كيږي د دې لپاره چي هغه د موصیٰ لهٗ خدمت كوي؛ ځكه چي موصیٰ لهٗ د موصي په مال كي د ثلث مستحق دی نو په ثلث كي د موصي وارثان د موصیٰ لهٗ مزاحم نه دي، نو ځكه هغه غلام به موصیٰ لهٗ ته سپارل كيږي.

او كه له هغه غلام څخه بغير د موصي سره نور مال نه وي، نو بيا به د غلام تقسيم داسي كيږي چي هغه به يوه ورځ د موصیٰ لهٗ خدمت كوي او دوې ورځي به د وارثانو خدمت كوي؛ ځكه چي موصیٰ لهٗ د يوه ثلث مستحق دی او وارثان د دوو ثلثو. نو ځكه د دوی تر مينځ به د همدې دريو حصو په حساب سره د غلام خدمت هم تقسيمول كيږي. لكه څرنګه چي د عَين شي د وصيت په صورت كي د هغه عَين تقسيم په همداسي حصو سره كيږي. او څرنګه چي غلام دوه ځايه كول او په حصو سره تقسيمول ممكن نه دي، نو ځكه دواړو فريقو ته د خپل حق وركولو لپاره د مهاياة وطرف ته رجوع سوې ده، د دې لپاره چي دواړو ته خپل حق ترلاسه سي.

د دې په خلاف كه يو څوك د يو سړي لپاره د كور د استوګني وصيت وكړي (چي زما تر مرګ وروسته به مثلاً خالد زما په كور كي اوسيږي)، او له هغه كور څخه بغير د موصي سره نور مال نه وي، نو په دې صورت كي به د وارثانو او موصیٰ لهٗ (خالد) تر مينځ كور په دريو حصو سره تقسيمول كيږي (يعني يوه حصه [يو ثلث] به موصیٰ لهٗ او دوې حصې [دوه ثلثه] به وارثانو ته وركول كيږي). د دې لپاره چي دواړو فريقو ته خپله حصه ورسيږي او له هغه څخه نفع ترلاسه كړی سي، او داسي كول ممكن هم دي ځكه په دې كي د حصو په حساب سره د كور تقسيم ممكن دی او په دې صورت كي به د زمان او ذات دواړو په اعتبار سره دواړه فريقه (مَوصیٰ لهٗ او وارثان) نفع واخيستلی سي، چي په يوه وخت كي په دې يوه كور كي به دواړو ته يو ځای خپله حصه ترلاسه سي. له ذات څخه مراد كور او ځای دی.

## په پورتني صورت کي کور د وخت په اعتبار سره تقسیمول (حکم او تفصیل)

وَلَوِ اقْتَسَمُوا الدَّارَ مُهَايَاةً مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ او که هغوی د وخت په اعتبار سره د مهایاة په توګه کور تقسیم کړي تَجُوزُ أَيْضًا نو هم جائز دي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چي حق د هغوی دی إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ وَهُوَ الْأَعْدَلُ أَوْلَىٰ خو اول کوم چي اعدل دی اولیٰ دی وَلَيْسَ لِلْوَرَثَةِ أَنْ يَبِيعُوا مَا فِي أَيْدِيهِمْ مِنْ ثُلُثَيِ الدَّارِ او وارثانو ته دا حق نسته چي د هغوی په قبضه کي چي د کور کوم دوه ثلثه دي هغه خرڅ کړي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ لَهُمْ ذٰلِكَ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چي وارثانو ته د دې حق سته لِأَنَّهُ خَالِصُ مِلْكِهِمْ ځکه دا خالص د هغو ملکیت دی وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ حَقَّ الْمُوصَىٰ لَهُ ثَابِتٌ فِي سُكْنَىٰ جَمِيعِ الدَّارِ د ظاهر روایت دلیل دا دی چي د موصیٰ لهٗ حق د ټوله کور په استوګنه کي ثابت دی بِأَنْ ظَهَرَ لِلْمَيِّتِ مَالٌ آخَرُ وَتَخْرُجُ الدَّارُ مِنَ الثُّلُثِ په دې توګه چي د مړي لپاره نور مال ښکاره سي او کور له ثلث څخه وځي وَكَذَا لَهُ حَقُّ الْمُزَاحَمَةِ فِيمَا فِي أَيْدِيهِمْ إِذَا خَرِبَ مَا فِي يَدِهِ او همدارنګه موصیٰ لهٗ ته د مزاحم کېدلو حق [هم] سته د کور په هغه حصه [دوو ثلثو] کي کوم چي د وارثانو په قبضه کي دی کله چي هغه حصه خرابه سي کوم چي د موصیٰ لهٗ په قبضه کي ده وَالْبَيْعُ يَتَضَمَّنُ إِبْطَالَ ذٰلِكَ او بیع [خرڅول] د دې حق باطلولو لره متضمن دي فَمُنِعُوا عَنْهُ نو ځکه وارثان به له بیع څخه منع کول کیږي.

**اللغات:** ﴿مهاياة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. په تېر عبارت کي یې معنیٰ ذکر سوه چي د یو شي منافع په نوبت سره تقسیمول چي مثلاً یوه ورځ یا یوه میاشت به زه په دې کور کي اوسېږم او بله میاشت به ته پکښې اوسېږې. ﴿أعدل﴾ د کَرُم له باب څخه اسمِ تفضیل دی. د دې معنیٰ هم په تېر عبارت کي ذکر سوه. عَدَلَ يَعْدُلُ عَدَالَةً: عدل کول. انصاف کول. ﴿يتضمّن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ضمناً شاملېدل.

**تشریح:** مخکي ذکر سوه چي اعدل او غوره همدا ده چي په مذکوره مسئله کي په اجزاؤ او حصو سره کور تقسیم کړی سوی دی: ځکه په دې تقسیم کي د موصیٰ لهٗ او وارثانو تر مینځ زیاته برابري راځي. خو که موصیٰ لهٗ او وارثان د مهایاة په توګه تقسیم وکړي چي مثلاً یوه میاشت به دا کور د موصیٰ لهٗ لپاره وي او دوې میاشتي د وارثانو لپاره. نو دا هم جائز دي. خو اولیٰ او غوره اول صورت دی.

او په اول صورت کې چې د وارثانو په قبضه کې د کور کوم دوه ثلثه دي. دوی که د هغه خرڅول وغواړي، نو د وارثانو لپاره دا جائز دي. که نه؟. نو ظاهر روایت دا دی چې د وارثانو لپاره دا جائز نه دي چې هغه خرڅ کړي، او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې د هغه خرڅول جائز دي؛ ځکه دا دوه ثلثه خالص د وارثانو خپل ملکیت دی، نو دوی خالص په خپل حق کي تصرف کونکي دي.

وجه الظاهرالخ: د ظاهر روایت د دلیل حاصل دا دی چې که له دې کور څخه بغیر د مړي (موصي) سره نور مال وي او دا کور له ثلث څخه وځي، نو موصیٰ لهٗ ته خو په ټوله کور کي د استوګني حق حاصلیږي. همدارنګه که د موصیٰ لهٗ حصه خرابه او ضایع سي، نو بیا کومه حصه چې د وارثانو په قبضه کي ده. په هغه کې موصیٰ لهٗ ته د مزاحمت حق هم حاصلیږي چې په هغه کي د وارثانو مزاحم سي او د خپلي حصې په اندازه له وارثانو څخه مطالبه وکړي، لهذا کله چې حکم داسي دی نو که موږ وارثانو ته د هغو د حق (دوو ثلثو) د خرڅولو اجازه ورکړو، نو د موصیٰ لهٗ دا حق به باطل سي. نو ځکه موږ وارثان له بیع څخه منع کړي دي.

## د استوګني د وصیت والا کور د موصیٰ لهٗ تر مرګ وروسته د وارثانو کیږي

قَالَ: فَإِنْ كَانَ مَاتَ الْمُوطَى لَهٗ فرمایي: بیا که چیري موصیٰ لهٗ مړ سي عَادَ إِلَى الْوَرَثَةِ نو موصیٰ بهٖ [کور] وارثانو ته واپس راګرځي لِأَنَّ الْمُوصِيَ أَوْجَبَ الْحَقَّ لِلْمُوطَى لَهٗ لِيَسْتَوْفِيَ الْمَنَافِعَ عَلٰى حُكْمِ مِلْكِهٖ ځکه موصي د دې لپاره د موصیٰ لهٗ لپاره حق ثابت کړی وو چې هغه د موصي د ملکیت پر حکم منافع ترلاسه کړی سي فَلَوِ انْتَقَلَ إِلٰى وَارِثِ الْمُوطَى لَهٗ نو که موصیٰ بهٖ د موصیٰ لهٗ د وارث وطرف ته منتقل سي اِسْتَحَقَّهَا ابْتِدَاءً مِنْ ذٰلِكَ الْمُوصِيْ مِنْ غَيْرِ مَرْضَاتِهٖ نو وارث به د هغه موصي له طرفه د موصي له خوښي څخه بغیر ابتداءً د منافعو مستحق سي وَذٰلِكَ لَا يَجُوْزُ او دا جائز نه دي وَلَوْ مَاتَ الْمُوطَى لَهٗ فِيْ حَيَاةِ الْمُوصِيْ او که چیري موصیٰ لهٗ د موصي په ژوند کي مړ سي بَطَلَتْ نو وصیت باطلیږي لِأَنَّ إِيْجَابَهَا تَعَلَّقَ بِالْمَوْتِ ځکه چې د وصیت ایجاب د موصي پر مرګ مُعلق دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ مخکي بیان کړی.

**اللغات**: ﴿عاد﴾ د نصر د باب ماضي ده: راګرځېدل، بیرته راتلل. ﴿یستوفی﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پوره اخیستل، ترلاسه کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که موصي مثلاً خالد ته د استوګنې لپاره د وصیت په توګه کور ورکړی وي او خالد یې د دې کور مالک نه وي جوړ کړی، نو تر څو چې موصیٰ لهٗ یعنې خالد ژوندی وي، تر هغه وخته پورې به له کور څخه نفع اخلي او کله چې موصیٰ لهٗ مړ سي، نو دا کور د موصي د وارثانو وطرف ته منتقل کیږي او د موصیٰ لهٗ (خالد) وارثانو ته نه حاصلیږي؛ ځکه موصي وموصیٰ لهٗ ته د خپل ملکیت پر بقاء له دې کور څخه د نفع اخیستلو (پکښې اوسېدلو) اجازه ورکړې وه. اوس که موږ دا کور د موصیٰ لهٗ وارثانو ته ورکړو، نو د موصي له رضاء څخه بغیر به ابتداءً په دې کې د وارثانو استحقاق ثابت کړی سي، حال دا چې د بل چا په کور کې د کور له مالک څخه بغیر استحقاق ثابتول جائز نه دي، نو ځکه د موصیٰ لهٗ تر مرګ وروسته به هغه کور د موصي وارثانو ته حاصلیږي. نه د موصیٰ لهٗ وارثانو ته.

ولومات إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د موصي په ژوند کې موصیٰ لهٗ مړ سي، نو وصیت باطلیږي؛ ځکه د موصي له طرفه وصیت کېدل "ایجاب" دی او د موصیٰ لهٗ له طرفه دا وصیت قبلول "قبول" دی، او د موصیٰ لهٗ د قبلولو اثر د موصي تر مرګ وروسته ښکاره کیږي، لېکن دلته قبلونکی (یعنې موصیٰ لهٗ) د موصي تر مرګ مخکې مړ سوی دی، نو د قبول لاره بنده سوه، نو ځکه د موصي ایجاب یعنې وصیت کول باطل سوه. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې مخکې په "فصل في اعتبار حالة الوصية" موږ د دې بیان کړی دی.

**د یو سړي لپاره د خپل غلام د مزدورۍ وصیت کول یا د کور د کرایې وصیت کول (حکم او تفصیل)**

| |
|---|
| وَلَوْ أَوْصٰى بِغَلَّةِ عَبْدِهٖ أَوْ دَارِهٖ او که چیرې موصي د خپل غلام یا د خپل کور د اُجرت وصیت وکړي فَاسْتَخْدَمَهُ بِنَفْسِهٖ أَوْ سَكَنَهَا بِنَفْسِهٖ بیا موصیٰ لهٗ خپله له غلام څخه خدمت واخلي یا خپله په کور کې استوګن سي قِیْلَ: یَجُوْزُ ذٰلِكَ نو ویل سوي دي: چې دا جائز دي لِأَنَّ قِیْمَةَ الْمَنَافِعِ كَعَیْنِهَا فِيْ تَحْصِیْلِ الْمَقْصُوْدِ ځکه چې د منافعو قیمت [اُجرت] د مقصود په حاصلولو کې د عین منافع په څېر دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهٗ لَا یَجُوْزُ او زیات صحیح قول دا دی چې دا جائز نه دي لِأَنَّ الْغَلَّةَ دَرَاهِمُ أَوْ |

دَنَانِيرُ ځکه چې [د غلام یا کور] أجرت دراهم یا دنانیر دي وَقَدْ وَجَبَتِ الْوَصِيَّةُ بِهَا او وصیت په همدوی [دراهمو او دنانیرو] سره ثابت سوی دی وَهٰذَا اِسْتِيفَاءُ الْمَنَافِعِ او دا [خدمت اخیستل او استوګنه] د منافعو حاصلول دي وَهُمَا مُتَغَايِرَانِ حال دا چې دا دواړه [أجرت اخیستل او منافع حاصلول] یو له بل څخه بېل دي وَمُتَفَاوِتَانِ فِيْ حَقِّ الْوَرَثَةِ او د ورثانو په حق کې متفاوت دي فَإِنَّهُ لَوْ ظَهَرَ دَيْنٌ ځکه که [پر مړي] قرض ښکاره سي يُمْكِنُهُمْ أَدَاؤُهُ مِنَ الْغَلَّةِ بِالْاِسْتِرْدَادِ مِنْهُ بَعْدَ اسْتِغْلَالِهَا نو وارثانو لره ممکن [او جائز دي] چې له دې أجرت څخه قرض اداء کړي [په دې توګه] چې أجرت له موصی لهٗ څخه واپس واخلي وروسته تر دې چې موصی لهٗ له منافعو څخه أجرت حاصل کړی وي[یعني د منافعو د أجرت تر حاصلولو وروسته له موصی لهٗ څخه دا أجرت واپس اخیستل او قرض په اداء کول د وارثانو لپاره ممکن دي] وَلَا يُمْكِنُهُمْ مِنَ الْمَنَافِعِ بَعْدَ اسْتِيفَائِهَا بِعَيْنِهَا او د عینِ منافع تر حاصلولو وروسته له منافعو څخه قرض اداء کول د وارثانو لپاره ممکن نه دي.

**اللغات**: ﴿غلّة﴾ څه مخکې ذکر سوه چې د غلّة د لفظ څلور معناوې دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ یې د أجرت ده، یعني د کور أجرت (پر کور وغیره چې کومه کرایه اخیستل کیږي)، یا د غلام أجرت او ګټه (یعني غلام چې په خپل محنت او مزدورۍ سره کوم مال ګټي). ﴿سکن﴾ د نصر د باب ماضي ده: اوسېدل، استېدل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پوره اخیستل، ترلاسه کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زید مثلاً د خالد لپاره دا وصیت وکړي چې زما تر مرګ وروسته دي زما د فلانکي غلام أجرت (مزدوري) خالد ته ورکول کیږي، یا زما د فلانکي کور أجرت (کرایه) دي خالد ته ورکول کیږي، لېکن خالد (موصیٰ لهٗ) د أجرت اخیستلو پر ځای هغه غلام د خپل ځان خادم جوړ کړي، یا خپله په هغه کور کې استوګن سي، نو د خالد (موصیٰ لهٗ) د دغه فعل په جواز او عدمِ جوز کې د مشایخو رَحِمَهُمُ الله دوه قوله دي: ① د بعضي حضراتو قول دا دی چې د خالد دا فعل صحیح او جائز دی او دلیل یې دا دی چې کله موصي (زید) و خالد ته د غلام او کور د أجرت اخیستلو اختیار ورکړی دی، نو خالد ته به د عینِ منافع د حاصلولو اختیار هم وي؛ ځکه چې د مقصود په تحصیل کې أجرت اخیستل یا منافع حاصلول دواړه سره برابر دي (یعني موصیٰ لهٗ که د غلام او کور أجرت اخلي یا که له غلام څخه د خدمت منفعت او له کور څخه د استوګنې منفعت اخلي. په هر یوه سره مقصود حاصلول کیږي)، نو ځکه د موصیٰ لهٗ (خالد) لپاره أجرت اخیستل یا منافع اخیستل دواړه جائز دي.

والأصح إلخ: ② او د دویم او اصح قول مطابق موصیٰ لهٗ (خالد) ته فقط د اُجرت اخیستلو حق سته او د منافعو د حاصلولو حق ورته نسته؛ ځکه موصیٰ بهٖ اُجرت دی. منافع نه دي او د اُجرت او منافعو تر مینځ ښکاره تضاد او تغایر دی. او دا شیان د وارثانو په حق کي هم متفاوت دي. ځکه که چیري تر وصیت وروسته ښکاره سي چي پر مړي د خلکو قرض باندي دی. نو وارثانو ته دا حق سته چي موصیٰ لهٗ چي کوم اُجرت اخیستی دی، هغه ځني واخلي او قرض په اداء کړي. لیکن که چیري موصیٰ لهٗ منافع حاصل کړي وي (یعني له غلام څخه يې خدمت اخیستی وي یا په کور کي اوسېدلی وي) نو ښکاره ده چي په هغه سره قرض نه سي اداء کېدلای. نو ځکه په دې حواله سره هم له موصیٰ بهٖ (اجرت) څخه بغیر بل شی یعني منافع حاصلول د موصیٰ لهٗ لپاره جائز نه دي.

**د غلام د خدمت او د کور د استوګني موصیٰ لهٗ هغه غلام او کور په أجرت نه سي ورکولای**

وَلَيْسَ لِلْمُوصَىٰ لَهُ بِالْخِدْمَةِ وَالسُّكْنَىٰ او د چا لپاره چي [د غلام] د خدمت او [د کور] د استوګني وصیت سوی وي هغه ته دا حق نسته أَنْ يُؤَاجِرَ الْعَبْدَ أَوِ الدَّارَ چي هغه غلام او کور په اُجرت ورکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ ذٰلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي هغه ته د دې حق سته لِأَنَّهُ بِالْوَصِيَّةِ مَلَكَ الْمَنْفَعَةَ ځکه چي د وصیت په وجه موصیٰ لهٗ د منفعت مالک سو فَيَمْلِكُ تَمْلِيكَهَا مِنْ غَيْرِهِ بِبَدَلٍ أَوْ غَيْرِ بَدَلٍ نو ځکه موصیٰ لهٗ ته دا ملکیت [او اختیار] لري چي بل څوک د دې منفعت مالک جوړ کړي په بدل [عوض] سره یا بغیر له بدله [بلا عوضه] لِأَنَّهَا كَالْأَعْيَانِ عِنْدَهُ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز منافع د اعیانو په څېر دي بِخِلَافِ الْعَارِيَةِ په خلاف د عاریت لِأَنَّهَا إِبَاحَةٌ عَلَىٰ أَصْلِهِ وَلَيْسَ بِتَمْلِيكٍ ځکه عاریت د هغه د اصل مطابق اباحت دی او تملیک نه دی.

**اللغات:** ﴿موصٰی لهٗ﴾ د چا لپاره چي وصیت سوی وي (د چا په حق کي چي د یو شي وصیت سوی وي)،
﴿یواجر﴾ د افعال د باب مضارع ده: په اجاره (په اُجرت) ورکول، په کرایه ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که څوک د بل چا لپاره د خپل غلام د خدمت یا د خپل کور د استوګني وصیت وکړي، نو په دې صورت کي موصیٰ لهٗ ته صرف د خدمت اخیستلو او اوسېدلو حق سته او دا حق ورته نسته چي مذکوره غلام یا کور په اُجرت او کرایه ورکړي. لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز موصیٰ لهٗ ته دا حق سته چي هغوی په کرایه ورکړي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي موصیٰ لهٗ د وصیت په وجه د غلام او کور د منفعت (یعني د خدمت اخیستلو او د اوسېدلو) مالک سو. نو ځکه موصیٰ لهٗ به بل څوک هم د هغوی د منفعت مالک کولای سي. برابره ده عوض ځني اخلي او که بلا عوضه یې مالک جوړوي. په هر صورت کي هغه ته دا حق حاصل دی؛ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز منفعت د عَین په څېر دی او موصیٰ لهٗ بالعَین ته دا حق سته چي بل څوک د عَین مالک جوړ کړي. نو ځکه موصیٰ لهٗ بالمنفعة ته به هم دا حق او اختیار وي چي بل څوک د منفعت مالک جوړ کړي.

بخلاف العارية إلخ: فرمایي د عاریت مسئله د وصیت په خلاف ده. یعني که څوک یو چا ته په عاریت یو شی ور کړي. نو مستعیر هغه شی بل چا ته په عاریت نه سي ور کولای: ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عاریت اباحت دی. تملیک نه دی. لهذا کله چي مستعیر خپله د دې مستعار شي مالک نه دی. نو بل څوک به څنګه د هغه مالک جوړ کړي!، دا د فقهي قاعده ده چي "مَنْ لَا يَمْلِكُ شَيْئًا لَا يُمَلِّكُهٗ" یعني څوک چي د یو شي مالک نه وي، هغه بل څوک د دې شي مالک نه سي جوړولای.

## زموږ دلیل

وَلَنَا: أَنَّ الْوَصِيَّةَ تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ مُضَافٍ إِلَىٰ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ او زموږ دلیل دا دی: چي وصیت بغیر له بدله [بلا عوضه] تملیک دی کوم چي تر مرګ وروسته [وخت] ته مضاف دی فَلَا يَمْلِكُ تَمْلِيكَهٗ بِبَدَلٍ نو ځکه موصیٰ لهٗ به په بدل [عوض] سره د هغه د مالک جوړولو ملکیت [او اختیار] نه لري اِعْتِبَارًا بِالْإِعَارَةِ پر اعاره [عاریت] په قیاس کولو سره فَإِنَّهَا تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ عَلَىٰ أَصْلِنَا ځکه زموږ د اصل مطابق اعاره [عاریت] د ژوند په حالت کي بغیر له بدله تملیک دی وَلَا يَمْلِكُ الْمُسْتَعِيرُ الْإِجَارَةَ او مستعیر د اجارې [په اُجرت ورکولو] ملکیت نه لري لِأَنَّهَا تَمْلِيكٌ بِبَدَلٍ ځکه چي اجاره په بدل [عوض] سره مالک جوړول دي كَذَا هٰذَا نو همداسي دا هم دي وَتَحْقِيقُهٗ أَنَّ التَّمْلِيكَ بِبَدَلٍ لَازِمٌ او د دې تحقیق دا دی چي په بدل سره مالک جوړول لازم دي وَبِغَيْرِ بَدَلٍ غَيْرُ لَازِمٍ او بغیر له بدله [بلا عوضه] مالک جوړول لازم نه دي وَلَا يَمْلِكُ الْأَقْوَىٰ بِالْأَضْعَفِ وَالْأَكْثَرَ بِالْأَقَلِّ او اقویٰ د اضعف په ذریعه او اکثر د اقل په ذریعه په ملکیت کي نه داخلیږي وَالْوَصِيَّةُ تَبَرُّعٌ غَيْرُ لَازِمٍ او

وصیت یو غیر لازم تبرّع ده إِلَّا أَنَّ الرُّجُوعَ لِلْمُتَبَرِّعِ لَا لِغَيْرِهِ لیکن د رجوع کولو حق صرف متبرع لره دی، نه بل چا لره وَالْمُتَبَرِّعُ بَعْدَ الْمَوْتِ لَا يُمْكِنُهُ الرُّجُوعُ او تر مرګ وروسته متبرّع [موصي] لره هم رجوع کول ممکن نه دي فَلِهٰذَا انْقَطَعَ نو په همدې وجه رجوع منقطع سوه أَمَّا هُوَ فِي وَضْعِهِ فَغَيْرُ لَازِمٍ او کوم چې وصیت کول دي نو هغه د خپل وضع په اعتبار سره لازم نه دي.

**اللغات**: ﴿تمليك﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مالک کول. مالک جوړول. ﴿اعارة﴾ د افعال د باب مصدر دی، څه مخکې یې معنیٰ ذکر سوه چې یو شی عاریتاً ورکول (په عاریت ورکول) چې د هغه معنیٰ ده": "تمليكُ المنافع بلا عوض على أن تردّ العين" یعني چې څوک یو چا ته یو شی بلا بدله (مفت) ورکړي او ورته ووایي چې ته خپل نفع ځني واخله! (یعني د هغه شي د نفع یې مالک کړي). مثلاً زید وحامد ته خواست وکړي چې د یو څو وخت لپاره ستا فلانکی شی (مثلاً موټر سایکل) راکړه!. او خالد هغه شی ورکړي چې ته خپل کار ځني واخله! او تر کار اخیستلو وروسته یې بیرته راکړه!. نو دې ته عاریتاً ورکول وایي، او زید (په خواست اخیستونکي) ته مُسْتَعِيْر وایي او خالد ته مُعِيْر وایي او هغه شي ته مُسْتَعَار وایي، ﴿تبرّع﴾ تفعّل د باب اسم مصدر دی: داسي کار کوم چې د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصیت، هبه او داسي نور، نېکي او احسان، بلا عوضه ورکړه (مفت ورکونه).

**تشریح**: په دې عبارت کي د مخکنی مسئلې په هکله زموږ دلیل بیان سوی دی، د دلیل حاصل دا دی چې د عاریت په څېر وصیت هم بغیر له بدله او بلا عوضه (مفت) تملیک دی کوم چې تر مرګ وروسته وخت ته مضاف دی، لهذا کله چې موصي بغیر له بدله د مُوصیٰ لهٗ لپاره وصیت کړی دی او بلا عوضه یې هغه د مُوصیٰ بهٖ (خدمت او سُکنیٰ) مالک جوړ کړی دی، نو مُوصیٰ لهٗ ته هیڅکله دا حق نسته چې پر مُوصیٰ بهٖ (خدمت او سُکنیٰ) باندې عوض واخلي او په عوض سره بل څوک د هغه مالک جوړ کړي، لکه څرنګه چې مستعیر بل څوک د مستعار شي مالک نه سي جوړولای او نه هغه په کرایه ورکولای سي، نو همداسي به مُوصیٰ لهٗ هم یو څوک د مُوصیٰ بهٖ مالک نه سي جوړولای او نه به هغه په اجاره او کرایه ورکولای سي.

د دې نور تحقیق دا دی چې تملیک بالبدل لازم وي او تملیک بدون البدل غیر لازم وي او قاعده دا ده چې د اضعف شي په ذریعه اقویٰ شی د سړي په ملکیت کي نه سي داخلېدلای او نه د اقل شي په ذریعه اکثر شی په ملکیت کي داخلېدلای سي. او څرنګه چې وصیت اضعف دی ځکه چې هغه غیر لازم تبرّع ده او اجاره اقویٰ ده ځکه چې هغه لازم عقد او لازم تبرّع ده، نو ځکه د وصیت په ذریعه اجاره

دموصیٰ لهٔ په ملکیت کي نه سي داخلیدلای، لهذا موصیٰ لهٔ ته به د اجارې او تملیک حق او ملکیت نه وي چي موصیٰ بهٖ په اجاره او کرایه ورکړي او بل څوک د هغه مالک جوړ کړي: او وصیت که څه هم غیرِ لازم عقد دی او غیرِ لازم تبرّع ده، لیکن په تبرّع کي صرف متبرّع ته د رجوع حق حاصل دی (چي هغه دلته موصي دی)، لهذا د موصي تر مرګ وروسته دا حق ختمیږي او د موصي تر مرګ وروسته هیچا ته دا حق نسته.

## زموږ دویم دلیل

وَلِأَنَّ الْمَنْفَعَةَ لَيْسَتْ بِمَالٍ عَلَى أَصْلِنَا او ځکه چي زموږ د اصل مطابق منفعت مال نه دی وَفِيْ تَمْلِيْكِهَا بِالْمَالِ إِحْدَاثُ صِفَةِ الْمَالِيَّةِ فِيْهَا او د مال په ذریعه د منفعت په مالک کولو کي په منفعت کي د مالیت صفت پیدا کول سته [یعني که موصیٰ لهٔ د مال په ذریعه څوک د منفعت مالک جوړ کړي (په اجاره یې ورکړي) نو منفعت به مال وګرځي] تَحْقِيْقًا لِلْمُسَاوَاةِ فِيْ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ په عقد معاوضه کي د مساوات ثابتولو لپاره فَإِنَّمَا تَثْبُتُ هٰذِهِ الْوِلَايَةُ لِمَنْ يَمْلِكُهَا تَبَعًا لِمِلْكِ الرَّقَبَةِ او دغه ولایت خو صرف هغه کس لره ثابتیږي کوم چي د ملک رقبه په متابعت کي د منفعت مالک سوی وي أَوْ لِمَنْ يَمْلِكُهَا بِعَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ یا هغه کس لره کوم چي د عقدِ معاوضه په ذریعه د منفعت مالک سوی وي حَتّٰى يَكُوْنَ مُمَلِّكًا لَهَا بِالصِّفَةِ الَّتِيْ تَمَلَّكَهَا چي دا کس به د منفعت مالک جوړونکی سي په هغه صفت سره چي په هغه سره دا کس د منفعت مالک سوی دی أَمَّا إِذَا تَمَلَّكَهَا مَقْصُوْدَةً بِغَيْرِ عِوَضٍ لیکن کله چي یو کس بغیر له عوضه د مقصود منفعت مالک سوی وي ثُمَّ مَلَّكَهَا بِعِوَضٍ بیا دا کس په عوض سره [یو څوک] د منفعت مالک جوړ کړي كَانَ مُمَلِّكًا أَكْثَرَ مِمَّا تَمَلَّكَهُ مَعْنًى نو معناً به دا کس تر هغه څه د زیات مالک جوړونکی سي د کوم څه چي هغه مالک سوی دی وَهٰذَا لَا يَجُوْزُ او دا جائز نه دي.

**اللغات**: ﴿منفعة﴾ د یو شي نفع، فایده، ﴿أصل﴾ بنیاده، قاعده کلیه، ﴿إحداث﴾ د افعال د باب مصدر دی: نوی پیدا کول، ﴿مساواة﴾ د مفاعلي د باب مصدر دی: برابري، یو د بل سره برابریدل، ﴿مملک﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: مالک کونکی، مالک جوړونکی، ﴿تملك﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مالک کیدل، ﴿عوض﴾ بدل.

**تشریح**: دا زموږ دویم دلیل دی او حاصل یې دا دی چې زموږ د اصل مطابق منفعت مال نه دی. او س که چیري موږ موصیٰ لهٔ بالخدمة یا بالسکنیٰ ته دا حق او اختیار ورکړو چې موصیٰ به (خدمت یا سکنیٰ) په اجاره ورکړي. نو منفعت (خدمت او سکنیٰ) کوم چې مال نه دی. هغه به مال وګرځول سي: ځکه چې اجاره عقد معاوضه دی چې په هغه کې له دواړو طرفونو څخه مال ضروري دی. لهذا کله چې له دواړو طرفونو څخه مال ضروري دی نو په عقد معاوضه کې د مساوات پیدا کولو لپاره به غیر مال (منفعت) مال ګرځول کیږي. حال دا چې موصیٰ لهٔ ته دا حق نسته چې په غیر مال کې د مال صفت پیدا کړي. نو ځکه په دې حواله سره هم موصیٰ لهٔ ته دا حق نسته چې موصیٰ به په اُجرت ورکړي.

**فإنما تثبت إلخ**: د دې حاصل دا دی چې په منفعت کې صرف دوه کسان د مال صفت پیدا کولای سي: ① یو هغه کس کوم چې د ملک رقبه په توګه د منفعت مالک سوی وي، لکه مشتري او وارث. ② دویم هغه کس کوم چې د عقد معاوضه په ذریعه د منفعت مالک سوی وي، لکه مستأجر. نو دې دواړو ته دا حق سته چې پر کوم صورت دوی د منفعت مالک سوي دي یعني د عوض (ثمن) او اُجرت په بدله کې، پر هاغه صفت یعني د عوض او اُجرت په بدله کې بل څوک د دې منفعت مالک جوړ کړي. لېکن څوک چې بلا عوضه او په مفته توګه د وصیت په ذریعه د منفعت مالک سوی دی، هغه ته هیڅکله دا حق نسته چې د عوض په بدله کې بل څوک د دې منفعت مالک جوړ کړي. کنې دا به لازمه سي چې د څومره شي هغه خپله مالک نه دی، بل څوک به د هغه مالک جوړ کړي، حالانکې دا جائز نه دي، نو ځکه زموږ فیصله دا ده چې په مذکوره مسئله کې موصیٰ لهٔ د اُجرت په بدله کې بل څوک د موصیٰ به (خدمت او سکنیٰ) مالک نه سي جوړولای.

## د خدمت د وصیت والا غلام له خپل ښار څخه بهر ایستل

وَلَيْسَ لِلْمُوْصٰى لَهٗ أَنْ يُخْرِجَ الْعَبْدَ مِنَ الْكُوْفَةِ او موصیٰ لهٔ ته دا حق نسته چې هغه [مُوصیٰ بالخدمة] غلام له کوفې څخه وباسي إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ الْمُوْصٰى لَهٗ وَأَهْلُهٗ فِيْ غَيْرِ الْكُوْفَةِ مګر دا چې موصیٰ لهٔ او د هغه کورنۍ په غیر کوفه [بل ښار] کې وي فَيُخْرِجُهٗ إِلٰى أَهْلِهٖ لِلْخِدْمَةِ هُنَالِكَ نو بیا دا غلام هلته خپل کورنۍ ته د خدمت لپاره باسلای سي إِذَا كَانَ يَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ [په دې شرط] کله چې غلام له ثلث څخه وځي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ إِنَّمَا تَنْفُذُ عَلٰى مَا يُعْرَفُ مِنْ مَقْصُوْدِ الْمُوْصِيْ ځکه وصیت پر هماغه طریقه نافذیږي کومه طریقه چې د موصي مقصود معلومه سي [چې د موصي مقصود او غرض په دې توګه د وصیت نافذېدل دي] فَإِذَا كَانُوْا فِيْ مِصْرِهٖ نو کله چې د موصیٰ لهٔ اهل [کورنۍ] د موصي په ښار کې وي

نَمَقْصُوْدُهٗ أَنْ يُمَكِّنَهُ مِنْ خِدْمَتِهِ فِيْهِ نو د موصي مقصود دا دى چي موصى لهٗ ته په همدې ښار کي له غلام څخه د خدمت اخيستلو قدرت ورکړي بِدُوْنِ أَنْ يُلْزِمَهُ مَشَقَّةُ السَّفَرِ بغير له دې چي موصي پر غلام د سفر مشقت لازم کړي وَإِذَا كَانُوْا فِيْ غَيْرِهٖ او کله چي د موصي اهل په بل ښار کي وي فمقصودهٗ أَنْ يَحْمِلَ الْعَبْدَ إِلٰى أَهْلِهٖ لِيَخْدُمَهُمْ نو د موصي مقصود دا دى چي موصى لهٗ دا غلام خپل کورنۍ ته بوځي د دې لپاره چي د هغو خدمت وکړي.

**اللغات**: ﴿تنفذ﴾ د نصر د باب مضارع ده: نافذېدل، جاري کېدل او پوره کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى که زيد مثلاً د خالد لپاره د خپل غلام د خدمت وصيت وکړي، نو آيا خالد ته دا حق سته چي هغه غلام له ښار څخه بهر وباسي، نو فرمايي چي د دې مدار د موصي (زيد) پر اراده او د هغه پر اجازه دى، او موصي اوس ژوندى نه دى لهذا په قرائنو سره به دا معلومول کيږي.

نو که چيري موصي او موصى لهٗ (زيد او خالد) دواړه د يوه ښار مثلاً د کوفې اوسېدونکي وي او د موصى لهٗ (خالد) اهل وعيال هم په کوفه کي اوسيږي، نو موصى لهٗ ته دا حق نسته چي غلام له کوفې څخه بهر بوځي؛ ځکه دلته د موصي (زيد) مقصد دا وو چي غلام صرف په همدې کوفه کي د موصى لهٗ خدمت کوي او پر غلام د سفر مشقت لازم نه وي.

او که چيري د موصى لهٗ (خالد) اهل وعيال په کوفه کي نه اوسيږي، بلکي بهر په يو بل ښار کي اوسيږي، نو په دې صورت د موصي مقصد دا وو چي موصى لهٗ دا غلام د ځان سره خپل اهل ته بوځي چي هلته د دوى خدمت وکړي، نو ځکه په دې صورت کي موصى لهٗ ته دا حق سته چي دا غلام بهر وباسي. لېکن په دې صورت کي هم موصى لهٗ ته صرف هغه وخت د بهر ايستلو حق سته کله چي غلام له ثلث څخه وځي، يعني له دې غلام څخه بغير د موصي لپاره نور دوه ثلثه مال يا تر دې زيات وي، لېکن که دا غلام له ثلث څخه نه وځي، نو بيا موصى لهٗ ته دا حق نسته چي غلام بهر وباسي مګر هغه وخت چي وارثان د دې اجازه ورکړي.

## د خپل غلام يا کور د أجرت د وصيت کولو حکم

وَلَوْ أَوْصٰى بِغَلَّةِ عَبْدِهٖ أَوْ بِغَلَّةِ دَارِهٖ او که چيري يو څوک د خپل غلام د أجرت يا د خپل کور د أجرت وصيت وکړي يَجُوْزُ أَيْضًا نو دا هم جائز دي لِأَنَّهٗ بَدَلُ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي دا أجرت د منفعت بدل دى فَأَخَذَ حُكْمَ الْمَنْفَعَةِ فِيْ جَوَازِ الْوَصِيَّةِ بِهٖ نو دا بدل [أجرت] به د منفعت حکم واخلي د وصيت جائز

کېدلو په هکله كَيْفَ وَأَنَّهُ عَيْنٌ حَقِيقَةً ځرنګه به جائز نه وي! حال دا چي اُجرت په حقیقت کي عین دی لِأَنَّهُ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ ځکه چي اُجرت خو دراهم دي یا دنانیر دي فَكَانَ بِالْجَوَازِ أَوْلَىٰ نو ځکه اُجرت به په جواز سره اولیٰ وي [یعني په درجه اولیٰ به جائز وي] وَلَوْلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ او که له هغه [غلام یا کور] څخه بغیر د موصي لپاره نور مال نه وي كَانَ لَهُ ثُلُثُ غَلَّةِ تِلْكَ السَّنَةِ نو د موصیٰ لهٗ لپاره د هغه کال د اُجرت ثلث [دریمه حصه] ده لِأَنَّهُ عَيْنُ مَالٍ يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ بِالْأَجْزَاءِ ځکه چي اُجرت عین مال دی کوم چي په اجزاؤ [حصو] سره د تقسیم احتمال لري.

**اللغات**: څه مخکي ذکر سوه چي د غلة د لفظ څلور معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ یې د اُجرت ده. یعني د کور اُجرت (پر کور وغیره چي کومه کرایه اخیستل کیږي) یا د غلام اُجرت او ګټه (یعني غلام چي کوم مال ګټي). ﴿عین﴾ معیّن، متعیّن کېدونکی شی.

**تشریح**: دا مسئله څه مخکي بیان سوه او هلته یې جواز معلوم سو. لېکن صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د آینده مسئلې (کوم چي په راروان بل عبارت کي ذکر سوې ده) لپاره د تمهید په توګه دا مسئله دوباره بیان کړې ده. صورت د مسئلې خو ښکاره دی چي که یو څوک دیو چا لپاره د خپل غلام د اُجرت یا د خپل کور د اُجرت او کرایې وصیت وکړي، نو دا وصیت جائز او صحیح دی؛ ځکه دا اُجرت د منفعت (خدمت او سکنیٰ) بدل دی، نو د وصیت جائز کېدلو په هکله به بدل (اُجرت) د مبدل یعني د منفعت حکم واخلي، او تاسي ته معلومه ده چي د منفعت (خدمت او سکنیٰ) وصیت جائز دی. نو د بدل وصیت به په درجه اولیٰ جائز وي. او بل دا چي بدل (اُجرت او کرایه) خو دراهم یا دنانیر دي او دراهم و دنانیر حقیقتاً عین دي او د عَین وصیت بالکل جائز دی. نو ځکه د بدل وصَیت خو به ښه شکه جائز وي..

ولولم یکن الخ: د دې حاصل دا دی چي که له موصیٰ بهٖ یعني له غلام یا کور څخه بغیر د موصي سره نور مال نه وي او د هغه وارثان په دې خبره راضي نه وي چي د موصیٰ بهٖ ټوله اُجرت موصیٰ لهٗ ته ورکول سي. نو په دې صورت کي به موصیٰ لهٗ ته د کال د اُجرت ثلث ورکول کیږي؛ ځکه دا اُجرت عَین دی او د اجزاؤ (حصو) په ذریعه د هغه تقسیمول ممکن دي، نو ځکه تقسیم بالاجزاء به کیږي. او تقسیم بالمهایاة به نه کیږي. (احسن الهدایه)

**که په مذکوره صورت کې موصیٰ لهٗ د کور ثلث په کرایه ورکول وغواړي نو جائز نه دي**

فَلَوْ أَرَادَ الْمُوصٰى لَهٗ قِسْمَةَ الدَّارِ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْوَرَثَةِ بیا که چیري موصیٰ لهٔ د خپل ځان لو وارثانو تر مینځ د کور تقسیمولو [وېش کولو] اراده وکړي لِيَكُوْنَ هُوَ الَّذِيْ يَسْتَغِلُّ ثُلُثَهَا د دې لپاره چې همدا موصیٰ لهٔ خپله د کور ثلث په اُجرت [په کرایه] ورکړي لَمْ يَكُنْ لَهٗ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق نسته إِلَّا فِيْ رِوَايَةٍ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ مګر له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په یوه روایت کې [موصیٰ لهٔ ته د دې حق سته] فَإِنَّهٗ يَقُوْلُ: الْمُوصٰى لَهٗ شَرِيْكُ الْوَارِثِ ځکه هغه فرمايي: چې موصیٰ لهٔ د وارث شریک دی وَلِلشَّرِيْكِ ذٰلِكَ او شریک ته د دې حق سته فَكَذٰلِكَ لِلْمُوصٰى لَهٗ نو همداسي به موصیٰ لهٔ ته هم د دې حق وي إِلَّا أَنَّا نَقُوْلُ: الْمُطَالَبَةُ بِالْقِسْمَةِ تَبْتَنِيْ عَلٰى ثُبُوْتِ الْحَقِّ لِلْمُوصٰى لَهٗ فِيْمَا يُلَاقِيْهِ الْقِسْمَةُ خو موږ [په جواب کې] وایو: چې د تقسیم مطالبه د موصیٰ لهٔ لپاره په هغه شي کې د حق پر ثابتېدلو مبني ده چې د هغه شي سره تقسیم متصل کیږي إِذْ هُوَ الْمُطَالِبُ ځکه چې هم هاغه مطالب دی وَلَا حَقَّ لَهٗ فِيْ عَيْنِ الدَّارِ او په عین کور کې د موصیٰ لهٔ هیڅ حق نسته وَإِنَّمَا حَقُّهٗ فِي الْغَلَّةِ او د هغه حق خو صرف [د کور] په اُجرت کې دی فَلَا يَمْلِكُ الْمُطَالَبَةَ بِقِسْمَةِ الدَّارِ نو ځکه موصیٰ لهٔ ته به د کور تقسیمولو د مطالبې ملکیت [او اختیار] نه وي.

**اللغات**: ﴿تبتنی﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مبني کېدل.

**تشریح**: مخکې ذکر سوه چې د موصیٰ لهٔ لپاره د کور د اُجرت وصیت جائز دی او که له دې کور څخه بغیر د موصي سره نور مال نه وي نو موصیٰ لهٔ ته د اُجرت ثلث حاصلیږي. اوس که چیري موصیٰ لهٔ اراده وکړي چې دا کور تقسیم کړي او د کور ثلث واخلي او خپله هغه په کرایه ورکړي او د هغه اُجرت اخلي، نو د جمهورو د قول مطابق موصیٰ لهٔ ته د دې حق او اختیار نسته. خو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه د یوه روایت مطابق موصیٰ لهٔ ته د دې حق سته. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د موصي په میراث کې موصیٰ لهٔ د موصي د وارث شریک دی. او شریک ته د کور د تقسیمولو د مطالبې حق سته. نو ځکه موصیٰ لهٔ ته به هم دا حق وي چې د کور د تقسیم مطالبه وکړي...

د جمهورو د قول دلیل دا دی چې موصیٰ لهٔ ته د کور تقسیمولو د مطالبې حق او اختیار هغه وخت سته کله چې په کور کې د هغه حق ثابت وي او دلته حالت دا دی چې په کور کې د موصیٰ لهٔ حق نسته بلکې د هغه حق صرف د کور په اُجرت (کرایه) کې دی، نو ځکه هغه ذا اُجرت خو په هره توګه تقسیمولای سي، لېکن د کور د تقسیم مطالبه نه سي کولای.

**د یوه کس لپاره د غلام د خدمت او د بل کس لپاره د غلام د رقبې وصیت کول (حکم او تفصیل)**

وَلَوْ أَوْصٰى لَهُ بِخِدْمَةِ عَبْدِهِ وَلِآخَرَ بِرَقَبَتِهِ او که موصي د یو چا لپاره د خپل غلا د خدمت وصیت وکړي او د بل چا لپاره د غلام د رقبې [وصیت وکړي] وَهُوَيَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ او هغه غلام له ثلث څخه وځي فَالرَّقَبَةُ لِصَاحِبِ الرَّقَبَةِ نو رقبه [یعني غلام] د رقبې والا لپاره دی وَالْخِدْمَةُ عَلَيْهَا لِصَاحِبِ الْخِدْمَةِ او پر هغه [غلام] خدمت دی د خدمت والا لپاره لِأَنَّهُ أَوْجَبَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَيْئًا مَعْلُومًا ځکه چې موصي له دوی دواړو څخه د هر یوه لپاره د معلوم شي ایجاب کړی دی عَطْفًا مِنْهُ لِأَحَدِهِمَا عَلَى الْآخَرِ له خپل طرفه له دوی څخه د یوه پر بل په عطف کولو سره [یعنی انه عطف قوله "لآخر برقبته" بالواو على قوله "أوصى له بخدمة عبده"] فَتُعْتَبَرُهٰذِهِ الْحَالَةُ بِحَالَةِ الِانْفِرَادِ نو دغه د عطف حالت به د انفراد په حالت باندې قیاسول کیږي.

**اللغات**: ﴿رقبة﴾ غاړه، د غلام ذات. ﴿أوجب﴾ د افعال د باب ماضي ده: ایجاب کول، واجبول او ثابتول. ﴿انفراد﴾ د انفعال د باب مصدر دی: یوازې والی، یو کېدل، منفرد کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زید مثلاً د خالد لپاره د خپل غلام د خدمت وصیت وکړي او د حامد لپاره د خپل غلام د رقبې (ذات) وصیت وکړي او یو پر بل عطف کړي مثلاً په یوه وینا داسې ووایې چې زما دا غلام د حامد لپاره دی او د خالد خدمت به کوي، او غلام له ثلث څخه وځي، نو د موصیٰ لهٔ بالخدمة (خالد) لپاره خدمت دی او د موصیٰ لهٔ بالرقبه (حامد) لپاره رقبه یعنې غلام دی؛ ځکه موصي له دوی څخه د هر یوه لپاره په علیحده توګه د یو معلوم شي ایجاب کړی دی. نو ځکه له دوی څخه هر یوه ته به د هغه مطابق خپله حصه ورکول کیږي. لکه کله چې موصي په انفرادي توګه د هر یوه لپاره جلا، جلا وصیت کړي وای، نو هم به د هغه مطابق دوی ته خپله حصه ورکول کېدای. یعنې د عطف والا حالت به پر انفرادي حالت قیاسول کیږي.

ثُمَّ لَمَّا صَحَّتِ الْوَصِيَّةُ لِصَاحِبِ الْخِدْمَةِ بیا کله چې د خدمت والا لپاره وصیت صحیح دی فَلَوْلَمْ يُوْصِ فِي الرَّقَبَةِ نو که موصي د رقبې په باره کې هیڅ وصیت نه وای کړی لَصَارَتِ الرَّقَبَةُ مِيْرَاثًا لِلْوَرَثَةِ نو رقبه [غلام] به د وارثانو لپاره میراث ګرځېدلی وای مَعَ كَوْنِ الْخِدْمَةِ لِلْمُوْصٰى لَهٗ سره د دې چې [د غلام] خدمت به د موصیٰ لهٗ لپاره وای فَكَذَا إِذَا أَوْصٰى بِالرَّقَبَةِ لِإِنْسَانٍ آخَرَ نو همداسي کله چې موصي د بل کس لپاره د رقبې وصیت کړی وي [نو همدا حکم به وي] إِذِ الْوَصِيَّةُ أُخْتُ الْمِيْرَاثِ ځکه چې وصیت د میراث خور ده مِنْ حَيْثُ إِنَّ الْمِلْكَ يَثْبُتُ فِيْهِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ په دې حیثیت سره چې ملکیت په دواړو کې تر مرګ وروسته ثابتیږي وَلَهَا نَظَائِرُ او دغه مسئلې لره څو مثالونه سته وَهُوَ مَا إِذَا أَوْصٰى بِأَمَةٍ لِرَجُلٍ وَبِمَا فِي بَطْنِهَا لِآخَرَ او هغه دا چې کله موصي د مینځې وصیت د یوه سړي لپاره وکړي او د هغې په ګېډه کې د موجود بچي وصیت د بل سړي لپاره وکړي وَهِيَ تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ او هغه مینځه له ثلث څخه وځي أَوْ أَوْصٰى لِرَجُلٍ بِخَاتَمٍ وَلِآخَرَ بِفَصِّهِ یا د یوه سړي لپاره د ګوتمۍ وصیت وکړي او د بل سړي لپاره د هغې د غمي وصیت وکړي أَوْ قَالَ: هٰذِهِ الْقَوْصَرَّةُ لِفُلَانٍ وَمَا فِيْهَا مِنَ التَّمْرِ لِفُلَانٍ یا داسي ووايي: چې دغه ټوکرۍ د فلانکي لپاره ده او کومه خرما چې پکښې موجوده ده هغه د فلانکي لپاره ده كَانَ كَمَا أَوْصٰى نو دا به هغسې وي لکه څرنګه چې موصي وصیت کړی دی وَلَا شَيْءَ لِصَاحِبِ الظَّرْفِ فِي الْمَظْرُوْفِ فِي هٰذِهِ الْمَسَائِلِ كُلِّهَا او په دغه ټولو [دريو] مسئلو کې به د ظرف والا لپاره په مظروف کې هیڅ حصه نه وي.

**اللغات**: ﴿قَوْصَرَةٌ﴾ او ﴿قَوْصَرَّةٌ﴾: ټوکرۍ، له مزرو او داسې نورو لرګيو څخه جوړه سوې ټوکرۍ چې په هغه کې خرماوې ساتل کیږي. ﴿ظرف﴾ لوښی، هر هغه څه چې په هغه کې بل څه قرار نیسي. هر هغه شی چې په هغه کې بل شی اېښول کیږي. ﴿مظروف﴾ هغه شی کوم چې په ظرف کې اېښول سوی وي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله د غلام د رقبې وصیت د یو چا (مثلاً د حامد) لپاره وي او د خدمت وصیت یې د بل چا (خالد) لپاره وي. نو دا صحیح دي؛ ځکه که موصي د یو چا لپاره د رقبې

وصیت نه وای کړی او صرف د خدمت وصیت یې کړې وای. نو ښکاره ده چې رقبه به د وارثانو لپاره وای او خدمت د موصیٰ لهٗ لپاره. او په دې صورت کې هیڅ اشکال نه کېدل پکار دي: ځکه وصیت د میراث خور ده. ځکه څرنګه چې په میراث کې د مورث تر مرګ وروسته د وارثانو لپاره ملکیت ثابتیږي. نو همداسې په وصیت کې هم د موصي تر مرګ وروسته د موصیٰ لهٗ لپاره ملکیت ثابتیږي. حاصل دا چې کله په یوه غلام کې موصیٰ لهٗ او وارثان ټوله شریک کېدلای سي. نو په هغه کې به دوه موصیٰ لهٗ په درجه اولیٰ شریک کېدلای سي چې دیوه لپاره به د غلام د خدمت وصیت صحیح وي او د بل لپاره به د رقبې وصیت صحیح وي.

ولها نظائر الخ: یعني په یوه شي کې د دوو کسانو اشتراک او اجتماع صرف دا نه چې په مذکوره مسئله کې صحیح ده بلکې د دې نور هم ډېر مثالونه سته چې له هغوی څخه درې مثالونه دلته بیان سوي دي.

(۱)... که څوک وصیت وکړي چې زما فلانکۍ حامله مینځه مثلاً د خالد لپاره ده او د هغې په نس کې چې کوم بچی (حمل) دی، هغه د حامد لپاره دی. او هغه مینځه د موصي د مال له ثلث څخه وځي، نو دا وصیت صحیح دی.

(۲)... که څوک د خپلې ګوتمۍ وصیت د خالد لپاره وکړي او د ګوتمۍ د غمي وصیت د حامد لپاره وکړي، نو دلته هم وصیت مشترک دی او صحیح دی.

(۳)... که څوک وصیت وکړي چې دا ټوکرۍ د خالد لپاره ده او په هغې کې چې کومه مېوه ده. هغه د حامد لپاره ده، نو د وصیت مطابق ټوکرۍ د خالد کیږي او مېوه د حامد کیږي.

تاسي وګورئ! په دې دریو سره مثالونو کې موصیٰ به یو شی دی او هغه په جلا جلا حواله سره د دوو کسانو تر مینځ مشترک دی. لهذا څرنګه چې په دې مثالونو کې په مشترکه توګه د یوه شي وصیت صحیح دی. نو همداسې به په مذکوره مسئله کې هم دیوه غلام وصیت په مشترکه توګه (د خدمت او رقبې په حواله سره) د دوو کسانو لپاره صحیح وي.

ولاشيء الخ: یعني دا کوم درې مثالونه چې ذکر سول. په هغوی کې مینځه، ګوتمۍ او ټوکرۍ ظرف دي او بچی (حمل) او غمی او مېوه مظروف دي. نو ځکه نه ظرف والا (خالد) ته په مظروف کې حصه حاصلیږي او نه مظروف والا (حامد) ته په ظرف کې حصه حاصلیږي.

## په مذكوره پورتنۍ مسئله كې د دواړو وصيتونو تر مينځ د فصل كولو حكم

أَمَّا إِذَا فَصَلَ أَحَدُ الْإِيجَابَيْنِ عَنِ الْآخَرِ فِيهَا لېكن كله چې موصي په دې مسئله كې له دوو ايجابونو څخه يو ايجاب له بل څخه جلا كړى وي [د دواړو تر مينځ يې فصل كړى وي] فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو همداسې جواب [حكم] دى د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ الْأَمَةُ لِلْمُوصَى لَهُ بِهَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول مطابق مينځه د هغه كس لپاره ده د كوم يوه لپاره چې د مينځې وصيت سوى دى وَالْوَلَدُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او بچى د هغوى دواړو تر مينځ نيم په نيمه دى وَكَذٰلِكَ فِي أَخَوَاتِهَا او همدا ډول [حكم دى] د دې مسئلې [مسئلة الأمة] په اخواتو كې لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ بِإِيجَابِهِ فِي الْكَلَامِ الثَّانِي تَبَيَّنَ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې د موصي د دويم كلام په ايجاب كولو سره دا خبره ښكاره سوه أَنَّ مُرَادَهُ مِنَ الْكَلَامِ الْأَوَّلِ إِيجَابُ الْأَمَةِ لِلْمُوصَى لَهُ بِهَا دُونَ الْوَلَدِ چې له اول كلام څخه د موصي مراد د موصى لهُ لپاره د مينځې ايجاب دى، نه د بچې. وَهٰذَا الْبَيَانُ مِنْهُ صَحِيحٌ وَإِنْ كَانَ مَفْصُولًا او د موصي له طرفه دا بيان صحيح دى كه څه هم هغه [له اول كلام] څخه جلا كړى سوى دى لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَا تُلْزِمُ شَيْئًا فِي حَالِ حَيَاةِ الْمُوصِي ځكه چې وصيت د موصي د ژوند په حالت كې هيڅ شى نه لازموي فَكَانَ الْبَيَانُ الْمَفْصُولُ فِيهِ وَالْمَوْصُولُ سَوَاءً نو ځكه په دې كې به مفصول بيان او متصل بيان سره برابر وي كَمَا فِي وَصِيَّةِ الرَّقَبَةِ وَالْخِدْمَةِ لكه څرنګه چې [د غلام] د رقبې او خدمت په وصيت كې [دواړه سره برابر] دي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ اسْمَ الْخَاتَمِ يَتَنَاوَلُ الْحَلْقَةَ وَالْفَصَّ او د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې لفظ د خاتم [ګوتمۍ] حلقې او غمې دواړو لره شامليږي وَكَذٰلِكَ اسْمُ الْجَارِيَةِ يَتَنَاوَلُهَا وَمَا فِي بَطْنِهَا او همدارنګه لفظ د جاريه هغې [مينځې] لره او د هغې په نس كې موجود بچي دواړو لره شامليږي وَاسْمُ الْقَوْصَرَةِ كَذٰلِكَ او لفظ د ټوكرۍ هم داسې دى [چې هغه ټوكرۍ او مافيها (مېوې) دواړو لره شامليږي] وَمِنْ أَصْلِنَا أَنَّ الْعَامَّ الَّذِي مُوجَبُهُ ثُبُوتُ الْحُكْمِ عَلَى سَبِيلِ الْإِحَاطَةِ بِمَنْزِلَةِ الْخَاصِّ او زموږ اصل دا دى چې د كوم عام موجب [مقتضا] چې د احاطې په توګه د حكم ثابتېدل وي هغه د خاص په درجه كې دى.

**اللغات**: ﴿فصل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جلا کول. علیحده کول. جلا ذکر کول. ﴿تبیّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ښکاره کېدل، واضح کېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې په مخکنۍ مذکوره مسئلو کې دا حکم هغه وخت دی کله چې د دواړو وصیتونو ذکر او بیان موصلاً (متصلاً) وي. خو که چیرې مفصولاً وي یعني موصي مثلاً اول د مینځې وصیت د خالد لپاره وکړي او بیا په یو بل شي لګیا سي او تر هغه وروسته د مینځې د بچي (حمل) وصیت د حامد لپاره وکړي، نو اوس څه حکم دی؟.

فرمايي چې په دې صورت کې د امام ابو یوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی. امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا صورت هم د مخکنۍ مسئلې په څېر دی یعني کوم حکم چې د وصل د صورت دی، هاغه حکم د فصل د صورت هم دی چې مینځه د خالد کیږي او بچی د حامد کیږي.

لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د وصل او فصل حکم سره جلا دی. د فصل په صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز مینځه د خالد کیږي خو د هغې په بچي کې خالد او حامد دواړه شریکان کیږي چې دواړو ته به نصف، نصف (نیمه حصه) ور کول کیږي.

او د دوی دا اختلاف د ګوتمۍ او غمي، او د ټوکرۍ او مېوې په وصیت کې هم دی.

لأبي يوسف إلخ: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې په مذکوره مسئله کې د موصي دویم کلام (یعني د بل چا (حامد) لپاره د مینځې د بچي وصیت کول) بیان تغییر نه دی بلکې دا دویم کلام بیان تفسیر دی، او کله چې دا دویم کلام تغییر نه دی نو په هغه کې وصل ضروري نه دی، ځکه وصل د تغییر لپاره ضروري دی. لهذا کله چې موصي په دویم کلام سره د حامد لپاره د بچي وصیت وکړي، نو له دې څخه دا خبره ښکاره سوه چې په اول کلام سره د موصي مراد فقط د مینځې وصیت دی او په هغه وصیت کې بچی داخل نه دی، بلکې د بچي وصیت د بل چا (حامد) لپاره دی او د موصي دا بیان صحیح دی که څه هم دا تر فصل وروسته دی ځکه چې دا بیان تغییر نه دی: او بیان تغییر ځکه نه دی چې د موصي په ژوند کې په وصیت سره هیڅ شی نه لازمیږي بلکې په وصیت سره د موصي تر مرګ وروسته شی لازمیږي، لهذا کله چې تر لازمېدلو مخکې د موصي له طرفه بیان راغلی، نو دا به محض بیان تفسیر وي، نو ځکه اوس دغه بیان که موصولاً وي او که مفصولاً وي د ټولو حکم سره برابر دی.

مثال یې دا دی لکه څوک چې د یوه کس مثلاً د خالد لپاره د خپل غلام د رقبې وصیت وکړي او د بل کس مثلاً د حامد لپاره د هغه د خدمت وصیت وکړي، نو برابره ده موصولاً یې وکړي او که

مفصولاً. په هر صورت کي همدا حکم دی چي د خالد لپاره خدمت دی او د حامد لپاره رقبه يعني غلام دی.

ولمحمد إلخ: د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي خاتم يعني ګوتمی او مينځه او ټوکری دري سره عام لفظونه دي، ځکه د خاتم (ګوتمی) لفظ هم حلقې (کړی) لره شامل دی او هم غمي لره شامل دی، همدارنګه د جاريه (مينځي) لفظ هم مينځي لره شامل دی او هم ما في بطنها (حمل) لره شامل دی، همدارنګه د قوصره لفظ ټوکري او مافيها (مېوې) دواړو لره شامل دی. او قاعده دا ده چي د کوم عام تقاضا په محيطه توګه د حکم ثابتېدل وي او کوم عام چي برسبيل احاطه شامليږي. هغه عام د خاص (قطعي) په درجه کي دی، يعني هغه عام هم قطعي دي، لهذا خاتم وغيره د خپل معنیٰ په باره کي قطعي دي، نو اوس چي کله موصي د ګوتمی وصيت د خالد لپاره وکړی نو په خاتم کي حلقه او غمي (همدارنګه په جاريه کي مينځه او بچی او په قوصره کي ټوکري او مېوه..) دواړه په قطعيت سر داخل دي او کله چي موصي تر فصل وروسته د غمي وصيت د حامد لپاره وکړي، نو اوس صورت دا سو چي په حلقه (او په مينځه او ټوکری) کي خو هيڅ تعارض نسته هغه خو فقط د خالد دي، خو په غمي (او بچي او مېوه) کي تعارض راغلی، نو د عام تقاضا دا ده چي غمی (او بچی او مېوه) هم د خالد سي او د خاص تقاضا دا ده چي هغه د حامد سي، او عام او خاص دواړه قطعي دي، نو موږ د تعارض ختمولو لپاره غمی (او مېوه او بچی) د دواړو تر مينځ مشترک وګرځوی او د هر يوه لپاره مو نصف (نيمه حصه) وټاکله، ځکه د تعارض ختمولو يوازينی لاره همدا ده چي په غمي يا بچي يا مېوه کي د دواړو اشتراک ثابت کړی سي او دواړو ته نصف، نصف ورکول سي. همدا د مصنف رَحِمَهُ الله د کلام خلاصه ده. د وضاحت لپاره وګورئ! نور الأنوار (ص: ۷۳).

## دُ پورتني تقرير نور وضاحت او د امام محمد له طرفه د امام ابو يوسف د دليل جواب

فَقَدِ اجْتَمَعَ فِي الْفَصِّ وَصِيَّتَانِ نو په غمي کي دوه وصيتونه جمع سول وَكُلٌّ مِنْهُمَا وَصِيَّةٌ بِإِيجَابٍ عَلَى حِدَةٍ او له دوی ځخه هر يو په بېل [جلا] ايجاب سره وصيت دی فَيُجْعَلُ الْفَصُّ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو ځکه غمی به د دوی تر مينځ نيم په نيمه کول کيږي وَلَا يَكُونُ إِيجَابُ الْوَصِيَّةِ فِيهِ لِلثَّانِي رُجُوعًا عَنِ الْأَوَّلِ او په دې کي به د دويم لپاره د وصيت ايجاب له اول ځخه رجوع نه وي كَمَا إِذَا أَوْصَى لِلثَّانِي بِالْخَاتَمِ لکه [په هغه صورت کي] کله چي موصي د دويم يوه لپاره د ګوتمی وصيت وکړي [او د اول يوه لپاره يې د ګوتمي د غمي وصيت کړی وي] بِخِلَافِ الْخِدْمَةِ مَعَ الرَّقَبَةِ په خلاف د رقبې سره د

خدمت [د وصيت کولو] لِأَنَّ اِسْمَ الرَّقَبَةِ لَا يَتَنَاوَلُ الْخِدْمَةَ ځکه چي لفظ د رقبه خدمت لره نه شامليږي وَإِنَّمَا يَسْتَخْدِمُهُ الْمُوصٰى لَهٗ بِحُكْمِ أَنَّ الْمَنْفَعَةَ حَصَلَتْ عَلٰى مِلْكِهٖ او مُوصیٰ لهٗ له رقبې څخه د دې حکم په وجه خدمت اخلي چي منفعت د هغه پر ملکيت حاصل سوی دی فَإِذَا أَوْجَبَ الْخِدْمَةَ لِغَيْرِهٖ بيا کله چي موصي له هغه [مُوصیٰ لهٗ بالرقبه] څخه بغير د بل چا لپاره د خدمت ايجاب وکړي لَا يَبْقٰى لِلْمُوصٰى لَهٗ فِيْهِ حَقٌّ نو بيا په خدمت کي د موصیٰ لهٗ هيڅ حق نه پاتيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْكَلَامُ مَوْصُوْلًا په خلاف د هغو صورت کله چي کلام موصول [متصلاً] وي لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلِيْلُ التَّخْصِيْصِ وَالْاِسْتِثْنَاءِ ځکه چي دا د تخصيص او استثناء کولو دليل دی فَتَبَيَّنَ أَنَّهٗ أَوْجَبَ لِصَاحِبِ الْخَاتَمِ الْحَلْقَةَ خَاصَّةً دُوْنَ الْفَصِّ نو دا څرګنده سوه چي موصي د ګوتمۍ والا لپاره صرف د حلقې ايجاب کړی دی، نه د غمي.

**اللغات:** ﴿موصول﴾ د ضرب د باب مفعول دی: وصل سوی، متصل. ﴿تخصيص﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو شی خاص کول (خاصول)، متعيّنول، عام شی خاص ګرځول.

**تشريح:** په دې عبارت کي د مخکيني تفصيل نور وضاحت کوي فرمايي چي په مذکوره مسئله کي د غمي (او د بچي او مېوې) په باره کي دوه وصيتونه جمع دي او دواړه په جلا، جلا ايجاب سره ثابت سوي دي، نو اوس دلته دوه صورتونه دي: ① يو صورت دا دی چي دغه غمی د دواړو (خالد او حامد) تر مينځ مشترک وګرځول سي. ② دويم صورت دا دی چي دويم ايجاب له اول څخه رجوع وګرځول سي. خو دا دويم صورت او طريقه دلته مناسب نه ده، بلکي اول صورت زيات مناسب دی، نو ځکه پر هغه عمل سوی دی او هغه له اول څخه رجوع نه دی ګرځول سوی.

مثال يې دا دی لکه موصي چي اول د خالد لپاره د غمي وصيت وکړي او تر دې وروسته د حامد لپاره د خاتم (ګوتمۍ) وصيت وکړي، نو په دې صورت کي غمی د خالد کيږي او په حلقه کي دواړه شريک کيږي.

بخلاف الخدمة إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله له طرفه و امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته جواب دی، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مذکوره دري مسئلې (يعني د حامله مينځي او د خاتَم او قوصره د وصيت مسئلې) د خدمت او رقبې د وصيت پر مسئله قياس کړي وې، د جواب حاصل دا دی چي ستاسي دا قياس مع الفارق دی: ځکه لفظ د رقبه په هيڅ توګه هم خدمت لره شامل او داخل نه دی، حال دا چي خاتم خو غمي

لره شامل دی او غمی پکښې داخل دی، همدارنګه په مینځه کې هم ما فی بطنها داخل دی. نو کله چې په مقیس علیه او مقیس کې دومره قدر تفاوت دی، نو آخر به قیاس څنګه صحیح وي!.

او پاته سو دا سوال چې کله رقبه خدمت لره شامل نه ده نو بیا د کوم کس لپاره چې د رقبې (غلام) وصیت سوی وی (مثلاً خالد) او د بل چا لپاره د رقبې د خدمت وصیت سوی نه وي، نو هغه کس (خالد) ته ولې له رقبې (غلام) څخه د خدمت اخیستلو حق سته؟.

نو د دې جواب دا دی چې موصیٰ لهٗ (خالد) ته چې کوم د خدمت اخیستلو حق حاصل سوی دی، هغه پر دې بناء نه دی چې رقبه خدمت لره شامل ده، بلکې پر دې بناء دی چې دلته منافع "خدمت" د موصیٰ لهٗ پر ملکیت حاصلیږي.

لېکن بیا که چیري موصي د خدمت ایجاب د بل چا لپاره وکړی، نو اوس په خدمت کې د اول موصیٰ لهٗ (خالد) حق پاته نه سو.

او دلته د اشتراک قول نه دی اختیار کړی سوی؛ ځکه رقبه له مخکې څخه خدمت لره شامل نه ده. نو ځکه مونږ وویل چې رقبه به د اول موصیٰ لهٗ لپاره وي او خدمت به یې د بل موصیٰ لهٗ لپاره وي.

بخلاف ما إذا إلخ: یعني که چیري په مذکوره دریو مسئلو کې دویم ایجاب موصولاً وي. یعني موصي د دویم چا لپاره متصلاً د غمي (یا د بچي یا د مېوې) وصیت وکړي، نو په دې صورت کې به دا دویم کلام یعني دویم وصیت د استثناء او تخصیص دلیل وي او دا به ګڼل کیږي چې موصي د اول موصیٰ لهٗ لپاره صرف د حلقې (او مینځې او توکرۍ) ایجاب کړی دی او هغه ته صرف حلقه ورکوي. او غمی (او بچی او مېوه) هغه دویم چا ته ورکوي. نو ځکه په دې صورت کې به غمی وغیره د دویم موصیٰ لهٗ لپاره وي او په هغه کې به د اول موصیٰ لهٗ (صاحب خاتم وغیره) هیڅ حق نه وي.

## د باغ د مېوې د وصیت کولو حکم او تفصیل

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِآخَرَ بِثَمَرَةِ بُسْتَانِهٖ فرمایي: او څوک چې د بل چا لپاره د خپل باغ د مېوې وصیت وکړي ثُمَّ مَاتَ بیا هغه موصي [وصیت کونکی] مړ سي وَفِيْهِ ثَمَرَةٌ او په باغ کې مېوه [موجوده] وي فَلَهٗ هٰذِهِ الثَّمَرَةُ وَحْدَهَا نو د موصیٰ لهٗ لپاره یوازي همدا [موجوده] مېوه ده [نه وروسته پیدا کېدونکې مېوه] وَإِنْ قَالَ: لَهٗ ثَمَرَةُ بُسْتَانِيْ أَبَدًا او که موصي ویلي وي: چې د هغه لپاره همېشه د زما د باغ مېوه ده فَلَهٗ هٰذِهِ الثَّمَرَةُ وَثَمَرَتُهٗ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُ مَا عَاشَ نو د هغه لپاره دغه مېوه [هم] ده او په مستقبل کې د

باغ راټلونکې مېوه [هم] ده تر څو چې هغه ژوندى وي وَإِنْ أَوْصٰى لَهُ بِغَلَّةِ بُسْتَانِهٖ او كه موصي د هغه لپاره د خپل باغ د پيداوار [حاصلاتو] وصيت وكړي فَلَهُ الْغَلَّةُ الْقَائِمَةُ وَغَلَّتُهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ نو د موصى لهٗ لپاره موجوده پيداوار او په مستقبل کې راتلونکى پيدوار [تولہ] دي وَالْفَرْقُ أَنَّ الثَّمَرَةَ اِسْمٌ لِلْمَوْجُودِ عُرْفًا او فرق دا دى چې ثمره [مېوه] عرفاً د موجوده مېوې نوم دى فَلَا يَتَنَاوَلُ الْمَعْدُومَ إِلَّا بِدَلَالَةٍ زَائِدَةٍ نو ځکه له يو زائد دلالت څخه بغير به هغه معدومه مېوې لره نه شامليږي مِثْلُ التَّنْصِيصِ عَلَى الْأَبَدِ [زائد دليل] لکه د أبد [همېشه توب] تصريح كول لِأَنَّهُ لَا يَتَأَبَّدُ إِلَّا بِتَنَاوُلِ الْمَعْدُومِ ځکه معدوم لره له شامليدلو څخه بغير مېوه نه ابدي كيږي وَالْمَعْدُومُ مَذْكُورٌ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ شَيْئًا او معدوم مذكور دى [يعني د ذكر كولو قابل دى] كه څه هم [فى الحاله] هغه هيڅ شى نه دى أَمَّا الْغَلَّةُ فَتَنْتَظِمُ الْمَوْجُودَ او كوم چې پيداوار دى نو هغه [عرفاً] موجوده پيداوار لره هم شامليږي وَمَا يَكُونُ بِعَرَضِ الْوُجُودِ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرٰى عُرْفًا او كوم پيداوار چې يو تر بل وروسته د وجود [پيدا كېدلو] پر مقام وي [يعني وروسته حاصلېدونکى پيداوار] هغه لره هم شامليږي.

**اللغات:** ﴿بستان﴾ باغ. ﴿غلة﴾ مخکې ذكر سوه چې د غَلَّة د لفظ څلور معناوي دي: ① د ځمکې پيداوار. كومه مېوه وغيره چې له ځمکې څخه اخيستل كيږي. حاصلات. آمدن. له ځمکې څخه راتونکى فصل او دانې. ② أجرت او كرايه. يعني پر كور. دوكان او داسې نورو چې كومه كرايه اخيستل كيږي. ③ د غلام أجرت. يا په بله وينا د غلام مزدوري او گټه (محاصل). يعني غلام چې په خپل محنت او مزدوري سره كوم مال گټي. ④ هغه كوټه دراهم كوم چې يې بيتُ المال (سركار) نه قبلوي لېکن تاجران يې قبلوي. دلته اوله معنىٰ مراد ده. ﴿عرض﴾ د دې لفظ ډېر معناوي دي: پېش كېدل وغيره. عرض الوجود: د وجود پر پېشگاه. د وجود پېش كېدلو پر مقام. ﴿لا يتناول﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: شاملېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید مثلاً د خالد لپاره د خپل باغ د مېوې وصیت وکړي. مثلاً داسې ووایې چې زما تر مرګ وروسته دې زما د باغ مېوه خالد ته ورکول سي. بیا موصي (زید) مړ سي. نو د هغه په باغ کې چې فی الحاله کومه مېوه موجوده وي، موصیٰ لهٗ (خالد) صرف د هغه مېوې مستحق کیږي او د آینده مېوې نه مستحق کیږي. ها! که چیرې موصي داسې وصیت وکړي چې زما د باغ مېوه د همېشه لپاره د خالد ده. یعنې په ابدي توګه د هغه لپاره د مېوې وصیت وکړي. نو بیا د دغه کال او د آینده کلونو یعنې تر څو چې موصیٰ لهٗ (خالد) ژوندی وي، تر هغه وخته پورې موصیٰ لهٗ د موصي د باغ د مېوې مستحق کیږي او په خپل ټوله ژوند کې به د هغه مېوه اخلي.

د دې په خلاف که موصي د خالد لپاره د خپل باغ د پیداوار او آمدن وصیت وکړي، نو موصیٰ له به د دې کال پیداوار هم اخلي او د آینده کلونو پیداوار به هم اخلي، که څه هم موصي د ابدیّت او همېشه توب صراحت نه وي کړی، بیا هم موصیٰ لهٗ (خالد) خپل ټوله ژوند د هغه مستحق کیږي.

<u>والفرق أن الثمرة إلخ</u>: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په ثمره او غلة یعنې په مېوه او پیداوار کې فرق دا دی چې په عُرف کې ثمره هغه مېوې ته وایي کوم چې فی الحاله موجوده وي، نو ځکه د ثمرة په وصیت کې به هغه مېوه نه داخلیږي کوم چې معدومه وي او فی الحاله موجوده نه وي. ها! که چیرې یو زائد لفظ داسې ذکر کړی سي کوم چې د همېشتوب پر معنیٰ دلالت وکړي لکه د أبد د لفظ صراحت کول، نو بیا د آینده وخت مېوه هم د ثمرة په وصیت کې شاملیږي.

ځکه په ثمره (مېوه) کې بذاتِ خود که دوام نسته خو که چیرې په هغه کې د دوام او ابدیّت ثابتولو لفظ ذکر سوی وو، نو بیا به په هغه کې د آینده وخت مېوه هم داخلول کیږي کوم چې فی الحاله معدومه وي، او معدوم که څه هم فی الحاله هیڅ شی نه دی، لېکن بیا هم هغه ذکر کېدلای سي (قابلِ ذکر دی)، لهٰذا که چیرې صراحتاً د هغه ذکر وسي نو تأبید به ثابتیږي.

او پاتې سو لفظ د غلّة (پیداوار)، نو هغه د عُرف او وضع دواړو په اعتبار سره مؤبد دی او موجود او معدوم دواړو لره شامل دی: ځکه پیداوار (آمدن) هماغه دی کوم چې یوماً فیوماً ترلاسه کیږي. نو ځکه د غلّة په لفظ سره د وصیّت کولو په صورت کې به په دائمي توګه د موصیٰ لهٗ لپاره پیداوار ثابتیږي، که څه هم موصي د تأبید صراحت نه وي کړی. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په را روان عبارت کې په یو مثال سره د دې نور وضاحت کړی دی.

## په یو مثال سره د پورتني تقریر وضاحت

يُقَالُ: فُلَانٌ يَأْكُلُ مِنْ غَلَّةِ بُسْتَانِهِ وَمِنْ غَلَّةِ أَرْضِهِ وَدَارِهِ ویل کیږي: چي فلانکی کس د خپل باغ پیداوار [حاصلات] خوري او د خپلي ځمکي او کور پیداوار [خوري] فَإِذَا أُطْلِقَتْ بیا کله چي [لفظ د] غله مطلق وویل سي يَتَنَاوَلُهُمَا عُرْفًا غَيْرَ مَوْقُوفٍ عَلَى دَلَالَةٍ أُخْرَى نو هغه عرفاً موجود او معدوم [مایکون بعرض الوجود] دواړو لره شامليږي کوم چي پر یو بل دلالت [دلیل] نه موقوف کیږي أَمَّا الثَّمَرَةُ إِذَا أُطْلِقَتْ او هر چي [لفظ د] ثمره چي کله مطلق وویل سي لَا يُرَادُ بِهَا إِلَّا الْمَوْجُودُ نو په هغه سره صرف موجود [موجوده مېوه] مرادیږي فَلِهَذَا يُفْتَقَرُ الِانْصِرَافُ إِلَى دَلِيلٍ زَائِدٍ نو په دې وجه [د أبد وطرف ته] ګرځېدل [ابدي کېدل] په یو زائد دلیل ته محتاج وي.

**اللغات**: ﴿غلّة﴾ پیداوار، حاصلات، څه مخکي د دې تفصیلي معنیٰ ذکر سوه. ﴿یفتقر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: محتاج کېدل. ﴿انصراف﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ګرځېدل.

**تشریح**: مخکي ذکر سوه چي د ثمرة او غلة (مېوه او پیداوار) تر مینځ فرق دی چي په اول کي تأبید نسته او په دویم کي سته. دلته صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په یو مثال سره د دې نور وضاحت کړی دی.

حاصل د عبارت دا دی چي کله د یو چا په باره کي مثلاً دا پوښتنه وسي چي فلانکی څه خوري یا مثلاً له کومه یې خوري یعني ضروریات له کومه پوره کوي؟، نو په جواب کي داسي ویل کیږي چي فلانکی د خپل باغ پیداوار (آمدن) یا د خپلي ځمکي پیداوار خوري، لېکن د مېوې په هکله داسي نه ویل کیږي چي هغه د خپل باغ مېوه خوري؛ ځکه مېوه همېشه نه خوړل کیږي.

کله چي د دواړو تر مینځ دا فرق څرګند سو، نو دا خبره معلومه سوه چي کله لفظ د غله (پیداوار) مطلق وویل سي، نو هغه عرفاً موجود او معدوم (غیرِ موجود) دواړو لره شامليږي او دواړو لره د شاملېدلو لپاره بل زائد دلیل ته ضرورت نه وي چي مثلاً لفظ د أبد ور سره ذکر کړی سي.

او کله چي لفظ د ثمره (مېوه) مطلق وویل سي، نو له دې څخه صرف هغه مېوه مرادیږي کوم چي موجوده وي، نو ځکه د أبد وطرف ته د ګرځولو (او معدوم لره د شاملېدلو) لپاره یو زائد دلیل ته ضرورت پېښ سو.

## د پسونو او میږو د وړیو، شیدو یا بچیانو د وصیت کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى لِرَجُلٍ بِصُوْفِ غَنَمِهٖ أَبَدًا فرمایي: او څوک چې دیو سړي لپاره په همیشه توګه د خپلو میږو [او پسونو] د وړیو وصیت وکړي أَوْ بِأَوْلَادِهَا أَوْ بِلَبَنِهَا یا د هغوی د اولاد [وریانو] یا شیدو [وصیت وکړي] ثُمَّ مَاتَ بیا موصی [وصیت کونکی] مړ سي فَلَهٗ مَا فِيْ بُطُوْنِهَا مِنَ الْوَلَدِ نو د موصیٰ لهٗ لپاره هغه بچیان [وریان] دي کوم چې د هغوی په نسونو کي [موجود] وي وَمَا فِيْ ضُرُوْعِهَا مِنَ اللَّبَنِ او هغه شیدې دي کوم چې د هغوی په غولانځو کي [موجود] وي وَمَا عَلٰى ظُهُوْرِهَا مِنَ الصُّوْفِ او هغه وړۍ دي کوم چې د هغوی پر شاګانو [موجوده] وي يَوْمَ يَمُوْتُ الْمُوْصِيْ په کومه ورځ چې موصي مړ سي [یعني د موصي د مرګ په ورځ چې د هغوی په نسونو کي...الخ] سَوَاءٌ قَالَ أَبَدًا أَوْ لَمْ يَقُلْ برابره ده موصي أبداً [د همیشه لپاره] ویلي وي او که نه وي لِأَنَّهٗ إِيْجَابٌ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه چې وصیت [د موصي] د مرګ په وخت کي ایجاب دی فَيُعْتَبَرُ قِيَامُ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ يَوْمَئِذٍ نو ځکه د دې شیانو موجودېدل به [د موصي] د مرګ په ورځ معتبر وي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ او دا د مخکنۍ مسئلې په خلاف دي وَالْفَرْقُ أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبٰى تَمْلِيْكَ الْمَعْدُوْمِ او فرق دا دی چې قیاس د معدوم [ناموجوده شي] د تملیک انکار کوي لِأَنَّهٗ لَا يَقْبَلُ الْمِلْكَ ځکه چې معدوم ملکیت نه قبلوي إِلَّا أَنَّ فِي الثَّمَرَةِ وَالْغَلَّةِ الْمَعْدُوْمَةِ جَاءَ الشَّرْعُ بِوُرُوْدِ الْعَقْدِ عَلَيْهَا خو [ځرنګه چې] په معدومه مېوه او معدوم پیداوار کي شریعت وارد سوی دی پر دوی [معدومه مېوه او غله] د عقد په باره کي [یعني کله چې د دوی د عقد په باره کي شریعت وارد سوی دی چې دا جائز دي] كَالْمُعَامَلَةِ وَالْإِجَارَةِ لکه مساقات او اجاره [له معامله څخه مساقات مراد دی چې مخکي یې باب تېر سو] فَاقْتَضٰى ذٰلِكَ جَوَازَهٗ فِي الْوَصِيَّةِ بِالطَّرِيْقِ الْأَوْلٰى نو ځکه دا به په درجه اولیٰ د دوی د جائز کېدلو مقتضي وي لِأَنَّ بَابَهَا أَوْسَعُ ځکه چې د وصیت باب ډېر وسیع دي [چې په هغه کي ډېر ګنجائش کېدلای سي] أَمَّا الْوَلَدُ الْمَعْدُوْمُ وَأُخْتَاهُ او کوم چې معدوم بچی دی او د هغه دوې خوندي [یعني صوف معدوم او لبن معدوم] فَلَا يَجُوْزُ إِيْرَادُ الْعَقْدِ عَلَيْهَا أَصْلًا نو پر هغوی د عقد واردول بالکل جائز نه دي وَلَا تُسْتَحَقُّ بِعَقْدٍ مَا او نه هغوی په یو عقد سره مستحق کېدلای

سي [یعني نه دیو عقد په ذریعه په هغوی کي د چا حق ثابتېدلای سي] فَکَذٰلِكَ لَایَدْخُلُ تَحْتَ الْوَصِیَّةِ نو همداسي به تر وصیت لاندي [هم] نه داخلیږي بِخِلَافِ الْمَوْجُوْدِ مِنْهَا په خلاف له دوی څخه د موجود [یعني موجود بچی. وړی او شیدې] لِأَنَّهٗ یَجُوْزُ اسْتِحْقَاقُهَا بِعَقْدِ الْبَیْعِ تَبَعًا ځکه چي په عقد بیع سره تبعاً [د تابع په توګه] د هغوی [موجوداتو] مستحق کېدل جائز دي وَبِعَقْدِ الْخُلْعِ مَقْصُوْدًا او په عقد خلع سره مقصوداً [د مقصود په توګه د هغوی مستحق کېدلو جائز دي] فَکَذَا بِالْوَصِیَّةِ نو همداسي به په وصیت سره هم [د هغوی استحقاق جائز] وي.

**اللغات:** ﴿صوف﴾ وړی. د پسونو او مېږو وربښته. ﴿غنم﴾ د "غَـنَم" لفظ اسم جنس دی، مذکر او مؤنث دواړو لره شامليږي، همدارنګه پسونه. مېږي (ګډي). او بزې (وزې) ټوله په دې لفظ کي داخل دي. په قرینه سره به یې معنیٰ متعیّنول کیږي، او دې ته د "غَـنَم" ویلو وجه دا ده چي پسونه او بزې نه د جهاد آلې دي او نه د دفاع آلې دي بلکي د هر چا لپاره غنیمت دي. ﴿ضروع﴾ جمع د ضَرْعٌ ده: غولانځه (د څاروي د بدن هغه برخه چي شیدې پکښي زېرمه کیږي). ﴿ظهور﴾ جمع د ظَهْرٌ ده: شا. ملا.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که زید مثلاً د خالد لپاره دا وصیت وکړي چي هغه ته دي همېشه زما د پسونو وړی ورکول کیږي. یا د هغوی اولاد (وربان) دي ورکول کیږي. یا هغه ته دي همېشه زما د مېږو یا بزو (وزو) شیدې ورکول کیږي او بیا موصي (زید) مړ سي. نو موصیٰ لهٗ (خالد) ته به هاغه وړی یا شیدې او اولاد (وربان) ورکول کیږي کوم چي د موصي د مرګ په وخت کي موجود وي: ځکه وصیت د همدې مړګ په وخت کي ایجاب ګرځي (لکه مخکي چي ذکر سوه). لهذا د موصي تر مرګ وروسته د دې شیانو موجودېدل ضروري دي. نو ځکه د موصي د مرګ په وخت کي چي کومي وړی. شیدې او بچیان (وربان) موجود وي. موصیٰ لهٗ به صرف د هغوی مستحق کیږي او د معدوم یعني د آینده پیدا کېدونکو وړیو او شیدو او بچیانو به نه مستحق کیږي. که څه هم موصي په هغه کي د تأبید شرط لګولی وي.

د دې په خلا ثمرة او غلة دي. نو ثمرة (مېوه) د تأبید په صراحت سره مؤبد کیږي او معدوم لره شامليږي او غلة (پیداوار) بیا خپله پر تأبید او دوام دلالت کوي (لکه مخکي چي ذکر سوه). نو ځکه په هغوی کي به په تأبید سره ابدیت او دائمیت ثابتیږي او هغوی به د موجود تر څنګ معدوم لره هم شامليږي. لېکن په صوف. اولاد او لبن کي په هیڅ توګه ابدیت نه ثابتیږي او معدوم (آینده صوف وغیره) لره نه شامليږي.

والفرق إلخ: له دې ځایه د دې فرق وجه ذکر کوي چې صُوف (وړی)، اولاد (بچیان) او لبن (شیدې) د تأبید د صراحت باوجود ولي معدوم لره نه شاملیږي؟ او ثمرة د تابید په صراحت سره ولي معدوم لره شاملیږي؟، نو فرمایي چې د قیاس تقاضا همدا ده چې د معدوم تملیک نه سي کېدلای (یعني بل څوک د هغه مالک نه سي جوړول کېدلای)؛ ځکه معدوم چې کله خپله ملکیت نه قبلوي، نو بل څوک ... د هغه مالک کېدلای سي!.

سوال: ثمرة او غلّة (مېوه او پیداوار) خو هم معدوم دي، حال دا چې په غله (پیداوار) کي تاسي د أبد له صراحت څخه بغیر او په ثمره (مېوه) کي د أبد په صراحت سره هغه پر معدوم مشتمل ګرځولی دی، د دې څه وجه ده؟.

**جواب**: د قیاس تقاضا خو همدا ده، خو څرنګه چې په ثمره او غله کي د مساقاة او اجارې په هکله شریعت وارد سوی دی او د دوی د معدوم کېدلو باوجود شریعت مساقاة او اجاره جائز ګرځولې ده (یعني په ثمره کي مساقات او په غله کي اجاره)، لهذا کله چې د دوی د معدوم کېدلو باوجود شریعت دوی جائز ګرځولي دي، نو د دوی وصیت خو به په دجه اولیٰ جائز او ثابت وي؛ ځکه چې د وصیت باب ډېر وسیع دی. لېکن صُوف، اولاد او لبن کوم چې تر اوسه معدوم وي دا ټوله داسي شیان دي چې پر هغوی د معدوم کېدلو په صورت کي هیڅ عقد نه سي کېدلای او نه په یو عقد سره د هغوی استحقاق ثابتېدلای سي، نو ځکه هغوی په وصیت کي نه سي داخلېدلای.

بخلاف الموجود منها إلخ: خو له هغوی (صُوف، اولاد او لبن) څخه چې کوم شیان فی الحاله موجود دي، نو د هغوی استحقاق د عقد بیع په ضمن کي تبعاً ثابتیږي، د مثال په توګه که یو څوک پسه یا مېږه رانیسي، نو تبعاً د هغه وړی، شیدې او بچی هم په بیع کي داخلیږي، همدارنګه په خلع کي مقصوداً دا شیان داخلیږي، مثلاً که ښځه خپل خاوند ته ووایي چې زما د مینځې یا زما د بزې په نس کي چې کوم بچی دی، د هغه په عوض کي زما سره خلع وکړه! او خاوند یې قبول کړي، نو قصداً پر هغه بچي خلع صحیح کیږي او هغه بچی به خاوند ته ورکول کیږي، نو کله چې دا درې شیان (کله چې موجود وي) تبعاً په بیع کي داخلیږي او په خلع کي قصداً داخلیږي، نو بیا به دوی په وصیت کي هم داخلیږي کله چې موجود وي او په دوی کي به وصیت صحیح کیږي. لېکن په معدوم کي نه صحیح کیږي، او د تأبید تعلق صرف د معدوم سره دی، نو ځکه موږ وایو چې د تأبید د صراحت باوجود په دوی کي تأبید نه ثابتیږي او معدوم لره نه شاملیږي.



# بَابُ وَصِيَّةِ الذِّمِّيِّ

(دا) باب د ذمي د وصيت (په بيان کي) دی

**تشريح:** مخکي تر دې د مسلمانانو د وصيت احکام بيان سول، اوس له دې ځايه د ذميانو د وصيت په هکله احکام او مسائل بيانول کيږي؛ ځکه د معاملاتو په حق کي ذميان د مسلمانانو تابع دي او ښکاره خبره ده چي د تابع نوبت تر متبوع وروسته راځي.

## د ذمي يهودي يا نصراني عبادت خانه د هغوی تر مرګ وروسته ميراث ګرځي

قَالَ: وَإِذَا صَنَعَ يَهُوْدِيٌّ أَوْ نَصْرَانِيٌّ بِيْعَةً أَوْ كَنِيْسَةً فِيْ صِحَّتِهِ فرمايي: او کله چي يو يهوي يا نصراني بيعه [ګرجا] يا کنيسه [کليسا] د خپل روغتيا په حالت کي جوړه کړي ثُمَّ مَاتَ بيا هغه مړ سي فَهُوَ مِيْرَاثٌ نو هغه [بيعه او کنيسه] ميراث ده لِأَنَّ هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْوَقْفِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ځکه چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د وقف په درجه کي دي وَالْوَقْفُ عِنْدَهُ يُوْرَثُ وَلَا يَلْزَمُ او وقف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ميراث کيږي او نه لازميږي فَكَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ هٰذِهِ مَعْصِيَةٌ او پاته سو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نو [په دې وجه ميراث کيږي] ځکه چي دا معصيت دی فَلَا تَصِحُّ عِنْدَهُمَا نو ځکه د دوی په نيز به صحيح نه وي.

**اللغات:** ﴿صنع﴾ د فتح د باب ماضي ده: جوړول. ﴿بِيعة﴾ (بكسر الباء): د يهودو او نصارىٰ وو عبادت خونه (عبادت خانه)، ګرجا. ﴿كنيسة﴾ د نصارىٰ وو (عيسايانو)، يهودو او عامو کفارو معبد (عبادت ځای)، يعني دا لفظ عام دی، کليسا.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو ذمي يهودي عبادت خانه (کنيسه) جوړه کړي، يا يو ذمي نصراني عبادت خانه (بيعه) جوړه کړي او د صحت په حالت کي يې جوړه کړي، بيا هغه مړ سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا کنيسه او بيعه ميراث کيږي او د هغه په وارثانو کي به تقسيمول کيږي؛ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا تعمير د وقف په درجه کي دی (ځکه چي هغه ذمي دا په خپل ژوند کي جوړ کړی دی، نو وصيت خو نه سي کېدلای بلکي وقف به وي) او وقف د امام صاحب رَحِمَهُ الله

په نېز لازم نه ګرځي بلکي میراث کیږي. نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا عبادت خانه به د مړي په وارثانو کي تقسیمول کیږي.

د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز وقف که څه هم لازمیږي. لېکن صرف هغه وقف لازمیږي کوم چي معصیت نه وي او کنیسه او بیعه معصیت دي. لهذا د هغه وقف له سره صحیح نه دی او کله چي یې وقف صحیح نه دی، نو هغه به میراث کیږي او په میراث کي به تقسیمول کیږي.

## که ذمي د یو معیّن قوم لپاره په خپل کور کي د عبادت خانې جوړولو وصیت وکړي؟

قَالَ: وَلَوْأَوْصٰى بِذٰلِكَ لِقَوْمٍ مُسَمَّيْنَ فرمایي: او که هغه [یهودي یا نصراني] د دې [بیعه یا کنیسه د جوړولو] وصیت د یو معیّن قوم لپاره وکړي فَهُوَمِنَ الثُّلُثِ نو دا وصیت له ثلث څخه [معتبر] دی مَعْنَاهُ إِذَا أَوْصٰى أَنْ تُبْنٰى دَارُهُ بِيْعَةً أَوْ كَنِيْسَةً د دې مطلب دا دی چي کله هغه دا وصیت وکړي چي د هغه کور دي بیعه یا کنیسه جوړه کړل سي فَهُوَ جَائِزٌ مِنَ الثُّلُثِ نو دا وصیت له ثلث څخه جائز دی لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ فِيْهَا مَعْنَى الِاسْتِخْلَافِ وَمَعْنَى التَّمْلِيْكِ ځکه په وصیت کي د استخلاف او تملیک معنیٰ سته وَلَهُ وِلَايَةُ ذٰلِكَ او ذمي لره د دې [استخلاف او تملیک دواړو] ولایت سته فَأَمْكَنَ تَصْحِيْحُهُ عَلٰى اِعْتِبَارِ الْمَعْنَيَيْنِ نو ځکه د دواړو معناوو په اعتبار سره د هغه صحیح ګرځول ممکن دي.

**اللغات**: ﴿مسمّين﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر مفعول صیغه ده: نومول سوي، متعیّن، ټاکل سوي. ﴿بِيعة﴾ او کنیسة: د تېر عبارت په لغاتو کي یې وضاحت وسو.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ذمي د یو معیّن قوم او معیّن جماعت لپاره دا وصیت وکړي چي هغوی دي زما په کور کي بیعه یا کنیسه جوړه کړي او زما کور دي بیعه یا کنیسه وګرځول سي. نو د هغه دا وصیت جائز او صحیح دی او د هغه د مال په ثلث (دریمه حصه) کي نافذیږي: ځکه په وصیت کي دوې معناوي سته: ① استخلاف (یعني مُوصي په وصیت سره مُوصیٰ لهٗ په موصیٰ بهٖ کي د ځان خلیفه جوړوي)، ② تملیک (یعني یا هغه د موصیٰ بهٖ مالک جوړوي). او ذمي لره د استخلاف ملکیت (اختیار) هم سته او د تملیک ملکیت هم ور لره سته، نو ځکه د دواړو معناوو په اعتبار کولو سره د هغه وصیت وصحیح دی، نو د استخلاف د معنیٰ په اعتبار کولو سره موږ په ثلث کي د هغه وصیت جائز

وګرځوی او د تملیک د معنیٰ په رعایت کولو سره موږ وویل چې د یو معیّن قوم لپاره د هغه وصیت صحیح دی، د دې لپاره چې معیّن قوم کما حقهٗ د وصیت (موصیٰ به) مالک جوړ کړل سي.

**که مذکوره وصیت د غیر معیّن قوم لپاره وکړي نو څه حکم دی؟**

قَالَ: وَإِنْ أَوْصَى بِدَارِهِ كَنِيسَةً لِقَوْمٍ غَيْرِ مُسَمِّيْنَ فرمايي: او که هغه د یو غیر معیّن قوم لپاره د خپل کور د کنیسه ګرځولو وصیت وکړي جَازَتِ الْوَصِيَّةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وصیت جائز دی وَقَالَا ۞: الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې وصیت باطل دی لِأَنَّ هٰذِهٖ مَعْصِيَةٌ حَقِيقَةً ځکه چې دا په حقیقیت کې معصیت دی وَإِنْ كَانَ فِي مُعْتَقَدِهِمْ قُرْبَةً که څه هم هغه د ذمیانو په عقیده کې قربت دی. وَالْوَصِيَّةُ بِالْمَعْصِيَةِ بَاطِلَةٌ او د معصیت وصیت باطل دی لِمَا فِي تَنْفِيذِهَا مِنْ تَقْرِيرِ الْمَعْصِيَةِ ځکه چې د هغه په نافذولو کې د معصیت ثابتول سته وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ هٰذِهٖ قُرْبَةٌ فِي مُعْتَقَدِهِمْ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې دغه د دوی په عقیده کې قربت دی وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِيْنُوْنَ او موږ ته حکم سوی دی چې هغوی او خپل دین [عقیده] سره پرېږدو فَتَجُوْزُ بِنَاءً عَلٰى اِعْتِقَادِهِمْ نو ځکه دا وصیت به د دوی پر اعتقاد په بناء کولو سره جائز وي أَلَا يَرٰى أَنَّهٗ لَوْ أَوْصٰى بِمَا هُوَ قُرْبَةٌ حَقِيقَةً مَعْصِيَةٌ فِي مُعْتَقَدِهِمْ آیا نه ګوري! چې که ذمي د یو داسي شي وصیت وکړي کوم چې په حقیقت کې قربت وي [لېکن] د ذمیانو په عقیده کې معصیت وي لَا تَجُوْزُ الْوَصِيَّةُ اِعْتِبَارًا لِاعْتِقَادِهِمْ نو د دوی د عقیدې په اعتبار کولو سره وصیت جائز نه دی فَكَذَا عَكْسُهٗ نو همداسي به د هغه برعکس [هم] وي.

**اللغات:** ﴿معصية﴾ ګناه، نافرماني، د ګناه کار. ﴿مُعتقد﴾ د افتعال د باب مفعول دی: د کوم څه چې انسان عقیده لري (کوم څه چې انسان خپل دین او عقیده ګرځولې وي)، اعتقاد. ﴿قربة﴾ نېکي، د نېکۍ کار، عبادت. ﴿يدينون﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده: دین اختیارول. عقیده لرل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که ذمي د یو غیر معیّن قوم لپاره د کنیسه (کلیسا) جوړولو وصیت وکړي، مثلاً داسي ووايي چې زما په کور کې دې کنیسه جوړه کړل سي او دا نه وښيي چې د

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۴]

جوړولو حق کومو خلګو لره دی او څوک دي يې جوړه کړي؟. نو د دې وصيت په جواز کې دامام صاحب او د صاحبينو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی. دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دغه صورت کې هم وصيت جائز دی، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا وصيت باطل دی.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې دا په حقيقت کې يو معصيت دی او د معصيت وصيت باطل دی که څه هم د ذميانو په دين او عقيده کې کنيسه او بيعه جوړول قربت او عبادت دی. ليکن زموږ په نيز دا معصيت دی او د دغه وصيت په نافذولو کې د معصيت اثبات لازميږي. کوم چې په هيڅ صورت کې صحيح نه دی.

ولأبي حنيفة إلخ: دامام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دليل دا دی چې کنيسه او بيعه جوړول د ذميانو په عقيده کې قربت او عبادت دی او موږ ته دا حکم سوی دی چې ذميان او خپل دين سره پرېږدو او د هغوی په اعتقاد کار نه ولرو!. نو ځکه په حقيقت کې د معصيت کېدلو باوجود به د ذميانو اعتقاد او دين ته په کتلو سره دا وصيت جائز ګرځول کيږي، همدا وجه ده که ذمي په خپل کور کې د مسجد جوړولو وصيت وکړي، نو في نفسه خو دا وصيت قربت دی، ليکن څرنګه چې د ذميانو په خپله عقيده کې دا معصيت دی او د جواز او د عدم جواز مدار د دوی پر عقيده دی، نو ځکه د دوی عقيدې ته په کتلو سره د ذمي د مسجد جوړولو وصيت باطل دی.

## پر اما صاحب رَحِمَهُ الله د يو واردېدونکي اعتراض جواب

ثُمَّ الْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ بَيْنَ بِنَاءِ الْبِيعَةِ وَالْكَنِيسَةِ وَبَيْنَ الْوَصِيَّةِ بِهِ بيا دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د بيعه او کنيسه جوړولو په مينځ کې او د هغه د وصيت کولو په مينځ کې فرق دی أَنَّ الْبِنَاءَ نَفْسَهُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِزَوَالِ مِلْكِ الْبَانِي چې نفس بناء [جوړول] د باني [جوړونکي] د ملکيت زائلېدلو سبب نه دي وَإِنَّمَا يَزُولُ مِلْكُهُ بِأَنْ يَصِيرَ مُحْرَزًا خَالِصًا لِلَّهِ تَعَالَى او د باني ملکيت په دې توګه زائليږي چې هغه محرز [محفوظ] او د الله تعالیٰ لپاره خالص سي كَمَا فِي مَسَاجِدِ الْمُسْلِمِينَ لکه د مسلمانانو په مسجدونو کې وَالْكَنِيسَةُ لَمْ تَصِرْ مُحْرَزَةً لِلَّهِ تَعَالَى حَقِيقَةً او کنيسه په حقيقت کې د الله تعالیٰ لپاره محرزه نه وي فَتَبْقَى مِلْكًا لِلْبَانِي نو کنيسه به د باني لپاره ملکيت پاته سي فَتُورَثُ عَنْهُ نو ځکه کنيسه به د باني له طرفه ميراث کيږي وَلِأَنَّهُمْ يَبْنُونَ فِيهَا الْحُجُرَاتِ وَيَسْكُنُونَهَا او ځکه چې

دوی [یهود او نصاری] په کنیسه کې خوني [کوټې] جوړې او په هغوی کې اوسیږي فَلَمْ يَتَحَرَّزْ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعِبَادِ بِهِ نو هغه محرزه نه سوه، د هغه سره د بندګانو د حق متعلق کېدلو په وجه وَفِي هٰذِهِ الصُّوْرَةِ يُوْرَثُ الْمَسْجِدُ أَيْضًا لِعَدَمِ تَحَرُّزِهِ او په دغه صورت کې د محرز نه کېدلو په وجه مسجد هم میراث کیږي بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ په خلاف د وصیت لِأَنَّهُ وُضِعَ لِإِزَالَةِ الْمِلْكِ ځکه چې وصیت [د موصي] د ملکیت زائلولو لپاره وضع سوی دی إِلَّا أَنَّهُ امْتَنَعَ ثُبُوْتُ مُقْتَضَاهُ فِيْ غَيْرِ مَا هُوَ قُرْبَةٌ عِنْدَهُمْ خو په هغه شي کې د وصیت د مقتضیٰ ثابتېدل ممتنع دي کوم چې د دوی په نېز قربت نه وي فَبَقِيَ مَا هُوَ قُرْبَةٌ عَلٰى مُقْتَضَاهُ نو د هغه شي وصیت کوم چې قربت وي پر خپل مقتضیٰ به باقي پاته وي فَيَزُوْلُ مِلْكُهُ نو د باني [موصي] ملکیت به زائل سي فَلَا يُوْرَثُ نو ځکه هغه به [د موصي د وارثانو تر مینځ] نه میراث کیږي.

**اللغات**: ﴿بناء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: جوړول، تعمیرول. ﴿بانی﴾ له مخکیني باب څخه د فاعل صیغهٔ ده: جوړونکی، تعمیرونکی. ﴿تورث﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صیغه ده، د دې باب له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: میراث ګرځېدل، میراث کېدل. ﴿مُحرز﴾ د افعال د باب مفعول دی، د دې باب څو معناوي دي: محفوظ (خوندي کړل سوی). ذخیره کړل سوی، جمع کړل سوی. ﴿حُجرات﴾ جمع د حُجْرَةٌ ده: خونه، هر احاطه کړی سوی ځای.

**تشریح**: په دې عبارت کې د یو اعتراض جواب ورکول سوی دی کوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مسلک واردیږي چې کله ذمي د کنیسه یا د بیعه د جوړولو وصیت وکړي، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه جائز ګرځوي خو که چیري ذمي په خپل ژوند کې کنیسه او بیعه جوړه کړي، نو امام صاحب هغه باطل او غیر لازم ګرځوي او په هغه کې میراث جاري کوي. آخر د دې څه وجه ده؟ د همدې په جواب کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په بناء او وصیت کې فرق دی. لهذا دواړو ته په یوه نظر کتل صحیح نه دي. هغه فرق دا دی چې په نفس بناء (جوړولو) سره د باني ملکیت نه زائلیږي: ځکه د کنیسه یا د بیعه په جوړولو سره به په هغه صورت کې د باني ملکیت زائلېدلای کله چې دا خالص د الله لپاره محرز وای، حال دا چې په کنیسه کې یهود خپل د استوګنې لپاره حجرې او ځایونه جوړوي او پکښې اوسیږي او په دې حواله د هغه سره حقُ العباد متعلق کیږي. لهذا کله چې په

کنیسه او بیعه کي د باني ملکیت باقي دی نو ښکاره ده چي د هغه تر مرګ وروسته به د هغه د وارثانو تر مینځ میراث کیږي او تقسیمیږي او په هغه کي به وصیت باطلیږي.

د دې په خلاف د مسلمانانو چي کوم مسجدونه دي. هغوی خالص د الله لپاره محرز او وقف وي او د واقف ملکیت په کامله توګه له مسجد څخه زائلیږي. په همدې وجه په دې مسجد کي وراثت نه جاري کیږي. ها! که چیري یو مسلمان په عارضي توګه په خپله ځمکه کي مسجد جوړ کړي. بیا پر هغه ځمکه خپل کور جوړ کړي. نو د عدم إحراز په وجه دا مسجد هم میراث کیږي او په وارثانو کي تقسیمیږي.

د دې په خلاف وصیت دی. نو وصیت خو وضع سوی د همدې لپاره دی چي له موصی به څخه د موصي ملکیت زائل سي او هغه د موصی له په ملکیت کي داخل سي، خو دلته به د دې خیال ساتل کیږي چي وصیت صرف په همغه شي کي صحیح او مؤثر کیږي کوم چي د ذمیانو په اعتقاد کي قربت وي او کوم شی چي د دوی په اعتقاد کي قربت نه وي، په هغه کي وصیت نه صحیح کیږي او نه پکښي مؤثر کیږي. او په کوم شي کي چي وصیت صحیح کیږي، له هغه څخه د موصي ملکیت زائلیږي او د ملکیت له زوال څخه وروسته دا شی د موصي په وارثانو کي نه سي تقسیمېدلای (ځکه چي هغه د دوی د مورث [موصي] په ملکیت کي پاته نه دی).

## د ذمي د وصیت اقسام

ثُمَّ الْحَاصِلُ أَنَّ وَصَايَا الذِّمِّيِّ عَلَىٰ أَرْبَعَةِ أَقْسَامٍ بیا حاصل دا دی چي د ذمي وصیتونه پر څلور قسمه دي مِنْهَا أَنْ تَكُونَ قُرْبَةً فِي مُعْتَقَدِهِمْ وَلَا تَكُونَ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا له هغوی څخه یو دا دی چي هغه وصیت د ذمیانو په عقیده کي قربت وي او زموږ په حق کي قربت نه وي وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا هاغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَمَا إِذَا أَوْصَى الذِّمِّيُّ بِأَنْ تُذْبَحَ خَنَازِيرُهُ وَتُطْعَمَ الْمُشْرِكِينَ او دا چي ذمي داسي وصیت وکړي چي د هغه خنزیران دي ذبح کړل سي او په مشرکانو دي وخوړل سي وَهٰذِهِ عَلَى الْخِلَافِ إِذَا كَانَ لِقَوْمٍ غَيْرِ مُسَمَّيْنَ او دا صورت پر اختلاف دی. کله چي وصیت د غیر معین [نا متعین] قوم لپاره وي كَمَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چي [ څه مخکي] موږ ذکر کړه وَالْوَجْهُ مَا بَيَّنَّاهُ او وجه [دلیل] هاغه دی کوم چي موږ [ هلته] بیان کړی.

**اللغات**: ﴿قربة﴾ نېکي او د نېکۍ کار. عبادت. ﴿غیر مسمّین﴾ غیر نومول سوی. نا متعین. نا معلوم.

**تشريح**: د صاحبينو او د امام صاحب رَحِمَهُمُ الله د اختلاف او دلائلو له بيان څخه وروسته اوس صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د خلاصې په توګه فرمايي چې ورور! د ذمي وصيتونه پر څلور قسمه دي. له هغوی څخه يو قسم دا دی چې ذمي د داسې شي وصيت وکړي کوم چې د دوی په حق کې قربت وي او زموږ په حق کې معصيت او زحمت وي لکه د بيعه او کنيسه د جوړولو وصيت. يا مثلاً د ذمي دا وصيت چې زما خنزيران دې ذبح کړل سي او مشرکانو ته دې ورکول سي. نو دا هم د هغه په حق کې قربت دی او زموږ په حق کې معصيت دی. اوس که دا وصيت د غير معين قوم لپاره وي، نو په دې کې د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله مخکيني اختلاف دی يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا وصيت جائز دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز باطل دی: او مخکې چې د دوی کوم دلائل ذکر سول. هغه په دې کې هم جاري کيږي.

**دويم قسم**

وَمِنْهَا إِذَا أَوْصَى بِمَا يَكُونُ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا وَلَا يَكُونُ قُرْبَةً فِي مُعْتَقَدِهِمْ او له هغه قسمونو څخه بل قسم دا دی چې کله ذمي د داسې شي وصيت وکړي کوم چې زموږ په حق کې قربت وي او د ذميانو په عقيده کې قربت نه وي كَمَا إِذَا أَوْصَى بِالْحَجِّ لکه کله چې هغه د حج وصيت وکړي أَوْ بِأَنْ يُبْنَى مَسْجِدٌ لِلْمُسْلِمِينَ يا دا وصيت وکړي چې د مسلمانانو لپاره دې يو مسجد جوړ کړی سي أَوْ بِأَنْ يُسْرَجَ فِي مَسَاجِدِ الْمُسْلِمِينَ يا دا وصيت وکړي چې د مسلمانانو په مسجد کې دې څراغونه ولګول سي فَهٰذِهِ الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ بِالْإِجْمَاعِ نو دغه وصيت بالاجماع باطل دی اِعْتِبَارًا لِاعْتِقَادِهِمْ د ذميانو د اعتقاد په اعتبار کولو سره إِلَّا إِذَا كَانَ لِقَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ مګر دا چې کله دا وصيت د يو معين قوم لپاره وي [نو بيا جائز دی] لِوُقُوعِهِ تَمْلِيكًا ځکه [په دې صورت کې] وصيت تمليک واقع کيږي لِأَنَّهُمْ مَعْلُومُونَ ځکه چې هغه قوم [چې د هغوی لپاره وصيت سوی دی] معلوم دي وَالْجِهَةُ مَشُورَةٌ او جهت مشهوره ده [يعني د وصيت کوم جهت چې ذمي بيان کړی دی چې زما مال دې په حج يا په بناء المسجد يا په إسراج في المساجد کې صرف کړی سي. دا د ذمي له طرفه صرف مشهوره ده. ضروري امر نه دی].

**اللغات**: ﴿يسرج﴾ د افعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده. د دې باب دوې معناوي دي: څراغ روښانه کول (لګول). پر آس زين اېښوول. ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مالک کول. مالک جوړول.

**تشریح**: د ذمي د وصیت دویم قسم دا دی چې هغه د داسې شي وصیت وکړي کوم چې زمونږ په حق کې قربت وي لېکن د ذمیانو په عقیده او دین کې قربت نه وي. مثلاً ذمي دا وصیت وکړي چې زما له مال څخه دې په یو مسلمان حج وکړی سي (د حج لپاره دې مال او نفقه ورکول سي). یا زما له مال څخه دې د مسلمانانو عبادت خانه (مسجد) جوړ کړی سي. یا زما له مال څخه دې د مسلمانانو په مساجدو کې څراغونه ولګول سي. نو په دې صورتونو کې که چیرې وصیت د غیر معین قوم او جماعت لپاره وي، نو بیا د ذمیانو د عقیدې په اعتبار کولو سره بالاتفاق دا وصیت باطل دی. او که دا وصیت د معین قوم او معلوم جماعت لپاره وي، نو جائز دی: ځکه چې دلته موصیٰ لهم متعین او معلوم دي نو د دې وصیت مطلب به دا وي چې ذمي (موصي) دا معین قوم د دغه مال مالکان جوړ کړل.

او ذمي چې دلته کوم دا جهت بیان کړی دی چې زما دا مال دې په حج کې صرف کړی سي یا د مسجد په جوړولو یا د څراغو په لګولو کې دې صرف کړی سي، نو دا به د هغه له طرفه صرف مشوره شمېرل کېږي او د هغه له طرفه به ضروري امر نه ګرځول کېږي، نو ځکه موصیٰ لهم چې چیرې هم د دغه موصیٰ به مال مصرفول وغواړي، هغو ته به د دې اختیار وي.

## درېیم قسم

| |
|---|
| وَمِنْهَا إِذَا أَوْصٰى بِمَا يَكُوْنُ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا وَفِي حَقِّهِمْ او له هغوی څخه بل قسم دا دی چې کله ذمي د داسې شي وصیت وکړي کوم چې زمونږ او د دوی [تولو] په حق کې قربت وي كَمَا إِذَا أَوْصٰى بِأَنْ يُسْرَجَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ لکه کله چې هغه دا وصیت وکړي چې په بیت المقدس کې دې څراغونه ولګول سي أَوْ يُغْزَى التُّرْكُ وَهُوَ مِنَ الرُّوْمِ یا [دا وصیت وکړي چې] د تُرک یعني د روم والا سره دې جنګ وکړی سي وَهٰذَا جَائِزٌ او دا جائز دی سَوَاءٌ كَانَ الْقَوْمُ بِأَعْيَانِهِمْ أَوْ بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمْ برابر ده قوم معین وي او که غیر معین وي لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِمَا هُوَ قُرْبَةٌ حَقِيْقَةً ځکه چې دا د داسې شي وصیت دی کوم چې حقیقتاً قربت دی وَفِي مُعْتَقَدِهِمْ أَيْضًا او د دوی په عقیده کې هم [قربت دی]: |

**اللغات**: ﴿يُغزىٰ﴾ د افعال له بابه د مضارع مجهولي صیغه کول: جنګ او غزا لره ایستل، جهاد او غزا ته استول.

**تشریح**: دا د ذمي د وصیت درېیم قسم دی کوم چې زمونږ په نیز هم قربت دی او د دوی په عقیده کې هم قربت دی. مثلاً ذمي په بیتُ المقدس کې د څراغو د لګولو وصیت وکړي. یا د رومیانو سره د غزا کولو وصیت وکړي (چې مثلاً زما آسونه یا زما زغري دې د رومیانو سره په جنګ کې استعمال کړل سي او

داسي نور)، څرنګه چي زموږ او د دوی ټولو په نېز دا قربت دی. نو ځکه مطلقاً دا وصیت جائز دی. برابره ده موصیٰ لهم معیّن وي او که نه وي. په هر صورت کي وصیت جائز او صحیح دی؛ ځکه د وصیت صحیح کېدلو مدار پر قربت دی او دلته له دواړو طرفونو څخه قربت موجود دی.

## خلورم قسم

وَمِنْهَا إِذَا أَوْصَى بِمَا لَا يَكُونُ قُرْبَةً لَا فِي حَقِّنَا وَلَا فِي حَقِّهِمْ او له هغوی څخه یو قسم دا دی چي ذمي د داسي شي وصیت وکړي کوم چي نه زموږ په حق کي قربت وي او نه د ذمیانو په حق کي كَمَا إِذَا أَوْصَى لِلْمُغَنِّيَاتِ وَالنَّائِحَاتِ لکه کله چي هغه د بدلچي وو [سروز ګرو] او نوحه کونکو ښځو لپاره وصیت وکړي فَإِنَّ هٰذَا غَيْرُ جَائِزٍ نو دا جائز نه دي لِأَنَّهُ مَعْصِيَةٌ فِي حَقِّنَا وَفِي حَقِّهِمْ ځکه چي دا زموږ او د دوی [ټولو] په حق کي معصیت دی إِلَّا أَنْ يَكُونَ لِقَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ مګر دا چي دا وصیت د یو معیّن قوم لپاره وي. فَيَصِحُّ تَمْلِيكًا وَاسْتِخْلَافًا نو بیا صحیح دی د تملیک او استخلاف دواړو په اعتبار سره.

**اللغات**: ﴿مُغنيات﴾ جمع د مُغنّية ده: بدله او سندره ویونکي ښځه (سروز ګره ښځه)، هغه ښځه چي د هغې پېشه سروز، بدله او سندره ویل وي او همدا یې خپل کسب ګرځولی وي، ﴿نائحات﴾ جمع د نَائحةٌ ده: ژړونکي ښځه، کومه ښځه چي پر مړي ژړاوي کوي، هغه ښځه کوم چي په اُجرت او کرایه سره ژړا کوي چي د هغې کسب او پېشه همدا ژړا وي، ﴿استخلاف﴾ د استفعال د باب مصدر دی: خلیفه ټاکل، خلیفه جوړول.

**تشریح**: د ذمي له وصیتونو څخه دا آخري او څلورم قسم دی چي د هغه حاصل دا دی چي که ذمي د یو داسي شي وصیت وکړي کوم چي نه زموږ په حق کي قربت وي او نه د ذمیانو په حق کي قربت وي، مثلاً هغه د سندرغاړو سروز ګرو ښځو یا د نوحه کونکو ښځو لپاره وصیت وکړي، نو دا وصیت جائز نه دی؛ ځکه سندري او بدلي (ګانې) ویل او نوحه کول زموږ په حق کي هم معصیت دی او د ذمیانو په حق کي هم معصیت دی او د معصیت وصیت صحیح نه دی.

ها! که چیري دا وصیت د یو معیّن قوم لپاره وي؛ نو بیا دا وصیت صحیح دی. لېکن من حیث القربت نه، بلکي من حیث التملیک والاستخلاف (لکه مخکي چي د دې وضاحت وسو)، او په تملیک او استخلاف کي قربت نه کتل کیږي.

## د بدعتيانو د وصيت حکم او تفصيل

وَصَاحِبُ الْهَوَىٰ إِنْ كَانَ لَا يُكَفَّرُ او بدعت والا كه چيري هغه [د خپل بدعت په وجه] كافر نه ګرځول كيږي فَهُوَ فِي حَقِّ الْوَصِيَّةِ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْلِمِينَ نو د وصيت په حق كي هغه د مسلمانانو په درجه كي دى لِأَنَّا أُمِرْنَا بِبِنَاءِ الْأَحْكَامِ عَلَى الظَّاهِرِ ځكه چي موږ ته پر ظاهر د احكامو د مبني كولو حكم سوى دى وَإِنْ كَانَ يُكَفَّرُ او كه هغه [بدعتي] كافر ګرځول كيږي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُرْتَدِّ نو هغه د مرتد په درجه كي دى فَيَكُونُ عَلَى الْخِلَافِ الْمَعْرُوفِ فِي تَصَرُّفَاتِهِ بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَصَاحِبَيْهِ نو دا به پر هغه اختلاف وي كوم چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ كي د مرتد د تصرفاتو په هكله پېژندل سوى [او مشهوره] دى وَفِي الْمُرْتَدَّةِ الْأَصَحُّ أَنَّهُ تَصِحُّ وَصَايَاهَا او د مرتده ښځي په باره كي زيات صحيح قول دا دى چي د هغې وصيتونه صحيح كيږي لِأَنَّهَا تُبْقَى عَلَى الرِّدَّةِ ځكه چي مرتده ښځه پر ارتداد باقي پاتېدلاى سي بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ په خلاف د مرتد سړي لِأَنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُسْلِمُ ځكه چي هغه به قتلول كيږي يا به اسلام راوړي.

**اللغات**: ﴿هوىٰ﴾ د نفس ميلان. خواهش. خپل خوښ شي ته ميلان كول بغير له دې چي په هغه كي د شريعت حكم ته وكتل سي (معجم وسيط). صاحب الهوىٰ: مراد بدعتي (احسن الهدايه). ﴿لا يُكفر﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده. تكفير: د دې باب يوه معنىٰ ده: كفر ته منسوب كول. كافر ګرځول. كافر ګڼل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چي كه د اهلِ هوىٰ او بدعتيانو بدعت د كفر حد ته نه وي رسېدلى (چي د هغه په وجه دوى كافران وګرځول سي)، نو د وصيت په حق كي دوى د مسلمانانو په درجه كي دي او په كومو اُمورو كي چي د مسلمانانو وصيت نافذيږي. په هغه كي د دوى وصيت هم نافذيږي: ځكه موږ ته دا حكم سوى دى چي پر ظاهرِ حال حكم مبني كړو او پر ظاهر حكم ولګوو. لهذا د ظاهر حال مطابق به موږ دا د اسلام دعوىٰ كونكي خلك مسلمانان ګڼو او د هغو وصيت به نافذوو. لېكن كه د بدعتي بدعت د كفر حد ته رسېدلى وي (چي د هغه په وجه بدعتي كافر ګرځول كېدلاى سي) نو هغه د مرتد په درجه كي دى. او د مرتد په هكله د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله اختلاف مخكي (د هدايه ثاني په آخر كي) پېژندل سوى او مشهوره دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مرتد تصرفات موقوف

کیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه تصرفات نافذیږي. نو پر همدغه اختلاف د هغه وصیت هم دی.

لیکن که وصیت کونکې ښځه وي او هغه سخته بدعتي وي. نو د مرتد والي باوجود هغه د وصیت په حق کې د ذمیه ښځې په درجه کې ده او د ذمیه ښځې په څېر به د هغې تصرفات نافذیږي؛ ځکه ښځه په ارتداد باقي پاتېدلای سي. لیکن سړی که مرتد وي نو هغه په ارتداد قائم نه سي پاتېدلای: ځکه چې په شریعت کې د هغه مخ ته صرف دوې لارې دي: ① قتل. ② یا اسلام. لهذا مرتد سړی د وصیت په حق کې د ذمي په درجه کې نه سي کېدلای.

## د مستأمن حربي وصیت

قَالَ: وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ فرمايي: او کله چې حربي کافر زموږ دار [دارُ الاسلام] ته په امان اخیستلو سره داخل سي فَأَوْصَى لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ بِمَالِهِ كُلِّهِ بیا هغه د یو مسلمان یا ذمي لپاره د خپل ټوله مال وصیت وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ امْتِنَاعَ الْوَصِيَّةِ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ ځکه چې له ثلث څخه د زیات مال وصیت ممتنع کېدل د وارثانو د حق په وجه دي وَلِهَذَا تَنْفُذُ بِإِجَازَتِهِمْ په همدې وجه دا [تر ثلث د زیات مال] وصیت د وارثانو په اجازه سره نافذیږي وَلَيْسَ لِوَرَثَتِهِ حَقٌّ مَرْعِيٌّ او د مستأمن حربي وارثانو لره څه داسې حق نسته چې د هغه رعایت وکړی سي لِكَوْنِهِمْ فِي دَارِ الْحَرْبِ ځکه د هغه وارثان په دارُ الحرب کې دي إِذْ هُمْ أَمْوَاتٌ فِي حَقِّنَا ځکه چې هغوی [حربیان] زموږ په حق کې مړه دي وَلِأَنَّ حُرْمَةَ مَالِهِ بِاعْتِبَارِ الْأَمَانِ او ځکه چې د مستأمن حربي د مال حرمت د امان په وجه دی وَالْأَمَانُ كَانَ لِحَقِّهِ لَا لِحَقِّ وَرَثَتِهِ او امان د هغه د حق په وجه دی. نه د هغه د وارثانو د حق په وجه وَلَوْ كَانَ أَوْصَى بِأَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ او که مستأمن حربي له ټوله مال څخه د کم مال وصیت وکړي أُخِذَتِ الْوَصِيَّةُ وَيُرَدُّ الْبَاقِي عَلَى وَرَثَتِهِ نو د وصیت په اندازه به اخیستل کیږي او پاته مال به د مستأمن وارثانو ته واپس کول کیږي وَذَلِكَ مِنْ حَقِّ الْمُسْتَأْمَنِ أَيْضًا او دا هم د مستأمن د حق په وجه دي وَلَوْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عِنْدَ الْمَوْتِ او که مستأمن حربي د مرګ په وخت کې خپل غلام آزاد کړي أَوْ دَبَّرَ عَبْدَهُ یا خپل غلام مدبّر جوړ کړي فِي دَارِ الْإِسْلَامِ په دار الاسلام کې فَذَلِكَ

صَحِيْحٌ مِنْهُ مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ الثُّلُثِ نو دا د هغه له طرفه د ثلث له اعتبار کولو څخه بغیر صحیح دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی.

**اللغات:** ﴿مرعي﴾ د فتح د باب مفعول دی: رعایت کړی سوی، لحاظ کړی سوی (ملحوظ).

﴿مستأمن﴾ د استفعال له بابه اسم فاعل دی: امان غوښتونکی، امان اخیستونکی. هغه حربي کافر کوم چې امان طلب کړي او دارُ الاسلام ته راسي، او د دارُ اسلام له طرفه هغه ته د هغه پر ځان او مال امان ورکول سي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو حربي کافر امان طلب کړي او د امن په وېزه دار الاسلام ته راسي او بیا په دارُ الاسلام کي د یو مسلمان یا ذمي لپاره د خپل ټوله مال وصیت وکړي. نو دا وصیت جائز او صحیح دی که څه هم هغه د خپل مال له ثلث (درېیمي حصې) څخه د زیات مال وصیت وکړي؛ ځکه له ثلث څخه د زیات مال وصیت د وارثانو د حق په وجه ممتنع دی. حال دا چې د دغه مستأمن حربي د مال سره د هغه د وارثانو هیڅ حق متعلق نه دی؛ ځکه چې د هغه وارثان حربي کافران دي او حربیان زموږ په حق کي د مړو په درجه کي دي، همدارنګه د دې مستأمن حربي (موصي) د مال حرمت د هغه د خپل امان په وجه دی او امان صرف مستأمن حربي (موصي) ته حاصل دی. د هغه وارثانو ته حاصل نه دی. نو ځکه په دې حواله سره به هم د وارثانو د حق رعایت نه کول کیږي او د موصي په ټوله مال کي به وصیت صحیح وي.

ولوكان أوصى إلخ: د دې حاصل دا دی چې که حربي مستأمن د خپل ټوله مال وصیت نه وي کړی. بلکي د څه مال وصیت یې کړی وي. نو هغه چې د څومره مال وصیت کړی وي، هغومره مال به ځني اخیستل کیږي او ما بقي مال به د هغه وارثانو ته واپس کول کیږي. لېکن دا واپس کول د دغه مستأمن حربي (موصي) د حق په وجه دي. نه د وارثانو د حق په وجه. او په دې وجه به هغه ما بقي مال د ده وارثانو ته ورسپارل کیږي چې د مستأمن د حق رعایت وسي او د ده مال صحیح ځای ته ورسیږي.

ولوأعتق عبده إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مستأمن حربي په دارُ الاسلام کي مړ سي او د مرګ په وخت کي هغه خپل غلام آزاد کړي یا یې مدبر جوړ کړي، نو دا اعتاق او تدبیر صحیح دی او په هغه کي به د ثلث اعتبار نه کیږي بلکي په ټوله غلام کي اعتاق او تدبیر صحیح دی؛ ځکه د ثلث اعتبار د وارثانو د حق په وجه کیږي. حال دا چې د حربي کافر وارثان زموږ په حق کي مړه دي. نو ځکه د هغو د حق رعایت به نه کیږي.

## د مستأمن حربي لپاره د مسلمان يا ذمي د وصيت کولو حکم

وَكَذٰلِكَ لَوْ أَوْصٰى لَهُ مُسْلِمٌ أَوْ ذِمِّيٌّ بِوَصِيَّةٍ او همدارنګه که چيرې د مستأمن حربي لپاره يو مسلمان يا ذمي وصيت وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ مَا دَامَ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ ځکه تر څو چې هغه په دار الاسلام کې وي فَهُوَ فِي الْمُعَامَلَاتِ بِمَنْزِلَةِ الذِّمِّيِّ نو هغه په معاملاتو کې د ذمي په درجه کې دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ عُقُوْدُ التَّمْلِيْكَاتِ مِنْهُ فِيْ حَالِ حَيَاتِهِ په همدې وجه د مسلمان له طرفه د هغه په خپل ژوند کې د مستأمن حربي سره د تمليکاتو عقود [معاملات] کول صحيح دي وَيَصِحُّ تَبَرُّعُهُ فِيْ حَيَاتِهِ او د مسلمان په خپل ژوند کې [د مستأمن حربي سره] د هغه تبرع کول صحيح دي فَكَذَا بَعْدَ مَمَاتِهِ نو همداسې د مسلمان تر مرګ وروسته هم [صحيح] دي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ او له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دی چې دا جائز نه دي لِأَنَّهُ مُسْتَأْمَنٌ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ ځکه چې هغه داسې مستأمن [امان اخيستونکی] دی کوم چې له حربيانو څخه دی إِذْ هُوَ عَلٰى قَصْدِ الرُّجُوْعِ ځکه چې هغه د رجوع پر اراده دی [چې دارالحرب ته واپس ځي] وَيُمَكَّنُ مِنْهُ او هغه ته د رجوع قدرت [هم] ورکول کيږي وَلَا يُمَكَّنُ مِنْ زِيَادَةِ الْمُقَامِ عَلَى السَّنَةِ إِلَّا بِالْجِزْيَةِ او له جزيه ورکولو څخه بغير تر يوه کال د زيات وخت پاتېدلو قدرت نه ورکول کيږي.

**اللغات**: ﴿جزية﴾ ماليه، ټکس، هغه ماليه چې کفار يې اسلامي حکومت ته ورکوي او اسلامي حکومت د هغه په مقابله کې دوی ته امان ورکوي او د دوی د ځان او مال د حفاظت ذمه واري اخلي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو مسلمان يا ذمی د حربي مستأمن لپاره د يو شي وصيت وکړي، يا په خپل ژوند کې د هغه سره عقود يعني بيع، اجاره او يا بله معامله وکړي، يا تبرع مثلاً هغه ته يو شی هبه کړي، نو دا ټوله شيان جائز او صحيح دي او په دې کې د شريعت له طرفه هيڅ بنديز او ممانعت نشته، لهذا په خپل ژوند کې مسلمان د مستأمن حربي سره عقود کولای سي، همدغه ډول تر مرګ وروسته هم مسلمان د هغه سره عقد وصيت کولای سي: ځکه وصيت د موصي تر مرګ

وروسته ثابتیږي او د هغه د جواز او صحت وجه دا ده چې مستأمن حربي چې تر څو په دارُ الاسلام کي پاته وي، تر هغه وخته پوري په عقودو او معاملاتو کي هغه د ذمي په درجه کي وي او د ذمي سره د مسلمان عقود او وصایا صحیح دي، نو ځکه د مستأمن حربي سره به هم دا صحیح وي.

وعن أبي الخ: فرمایي چي له شیخینو رَحِمَهُمَاالله څخه په غیر ظاهر روایت کي نقل سوي دي چي د مستأمن حربي لپاره د مسلمان وصیت جائز نه دی: ځکه چي هغه حربي کافر دی او دارُالحرب ته د تللو اراده او ژمنه د هغه په زړه کي ده، او هغه خو صرف دیو څو وخت لپاره دارُ الاسلام ته راغلی دی او له جزیه ورکولو څخه بغیر هغه دلته تر یوه کال زیات وخت نه سي پاتېدلای. لهذا د هغه په حق کي وصیت فایده نه کوي، نو ځکه د هغه لپاره د مسلمان وصیت صحیح نه دی.

**که ذمي له ثلث مال څخه د زیات مقدار یا د خپل یوه وارث لپاره وصیت وکړي نو څه حکم دی؟**

وَلَوْ أَوْصَى الذِّمِّيُّ بِأَكْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ او که چیري ذمي له ثلث [دریېمي حصې] څخه د زیات مال وصیت وکړي أَوْ لِبَعْضِ وَرَثَتِهِ یا د خپل بعضي وارثانو لپاره وصیت وکړي لَا يَجُوزُ نو جائز نه دي اِعْتِبَارًا بِالْمُسْلِمِينَ په مسلمانانو باندي په قیاسولو سره لِأَنَّهُمْ اِلْتَزَمُوا أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْمُعَامَلَاتِ ځکه چي ذمیانو د اسلام د احکامو التزام کړی دی په هغه اُمورو کي کوم چي معاملاتو ته راجع دي [یعني د معاملاتو سره په اړوند اُمورو کي ذمیانو اسلامي احکام پر ځان لازم کړي] وَلَوْ أَوْصَى لِخِلَافِ مِلَّتِهِ او که ذمي د خپل ملت د خلاف [بل ملت والا] لپاره وصیت وکړي جَازَ نو جائز دي اِعْتِبَارًا بِالْإِرْثِ په وراثت باندي په قیاسولو سره إِذِ الْكُفْرُ كُلُّهُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ ځکه چي کفر ټوله یو ملت دی وَلَوْ أَوْصَى لِحَرْبِيٍّ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ او که ذمي په دارُ الاسلام کي د یو حربي لپاره وصیت وکړي لَا يَجُوزُ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْإِرْثَ مُمْتَنِعٌ لِتَبَايُنِ الدَّارَيْنِ ځکه چي د دارینو [دارُ الاسلام او دارُ الحرب] د تباین په وجه وراثت ممتنع دی وَالْوَصِيَّةُ أُخْتُ الْمِيرَاثِ او وصیت د میراث خور ده.

**اللغات:** ﴿التزموا﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: پر ځان لازمول. ﴿تباین﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو له بل څخه جلا کېدل، علیحده کېدل.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی که ذمي کافر د خپل مال له ثلث (دریمي حصې) څخه د زیات مال وصیت وکړي. یا په خپلو وارثانو کي صرف د یوه وارث لپاره وصیت وکړي (یو وارث په وصیت سره خاص کړي). نو دا وصیت جائز نه دی: ځکه په معاملاتو کي ذمي زموږ د اسلام احکام پر ځان لازم کړي دي (لکه مخکي چي هم ذکر سوه): او د مسلمان لپاره دا جائز نه دي چي د خپل مال له ثلث څخه د زیات مقدار وصیت وکړي. یا د خپل بعضي وارثانو لپاره وصیت وکړي. نو ځکه د ذمیانو لپاره هم دا کار جائز نه دی.

ولو أوصى لخلاف ملّته إلخ: مثلاً یهودي ذمي د نصراني ذمي لپاره وصیت وکړي. نو دا وصیت جائز دی: ځکه چي یهودي ذمي د نصراني ذمي وارث کېدلای سي: ځکه کفر ملت واحده دی. لهذا کله چي د دین د اختلاف باوجود یو کافر د بل کافر وارث کېدلای سي. نو یو کافر د بل کافر لپاره وصیت هم کولای سي.

خو که ذمي په دارالاسلام کي د داسي حربي لپاره وصیت وکړي کوم چي په دارالحرب کي وي. نو دا وصیت جائز نه دی: ځکه دارالاسلام او دارالحرب یو له بل څخه جلا دي او د دوی تر مینځ تباین او توپیر دی. او د همدې تباین په وجه د دوی تر مینځ میراث هم ممتنع دی. او څرنګه چي وصیت د میراث خور ده. نو ځکه وصیت به هم ممتنع او ناجائز وي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْوَصِيِّ وَمَا يَمْلِكُهُ

(دا) باب دوصي او د هغه څه (په بيان کي) دی چي وصي د هغه ملکيت(اختيار) لري (يعني دوصي داختياراتو په بيان کي دی)

**تشريح**: دموصي (وصيت کونکي) تر مرګ وروسته چي کوم کس د هغه د مالونو او د هغه د جايداد حفاظت او انتظام کوي او موصي د دغه کارونو لپاره هغه ټاکلی وي، داسي کس ته وصي وايي، څرنګه چي د وصي احکام د موصیٰ لهٗ له احکامو او مسائلو څخه کم دي او د موصیٰ لهٗ احکام زيات دي، نو ځکه اول د موصیٰ لهٗ احکام او مسائل بيان کړل سوه، اوس په دې باب کي د وصي (موصیٰ إليه) احکام او مسائل بيانول کيږي.

**د موصي په موجوديت او غير موجوديت کي د وصايت (وصي والي) د قبلولو او ردولو حکم**

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى إِلٰى رَجُلٍ فرمايي: او څوک چي يو سړي ته وصيت وکړي [يعني د ځان وصي يې جوړ کړي] فَقَبِلَ الْوَصِيُّ فِي وَجْهِ الْمُوصِيْ او وصي د موصي مخ ته وصايت قبول کړي وَرَدَّهَا فِي غَيْرِ وَجْهِهٖ او د ده په نا موجوديت کي وصي هغه رد کړي فَلَيْسَ بِرَدٍّ نو دا رد نه دی لِأَنَّ الْمَيِّتَ مَضٰى لِسَبِيْلِهٖ مُعْتَمِدًا عَلَيْهِ ځکه چي مړی [موصي] پر خپله لاره ولاړی [مړ سو] په داسي حال کي چي هغه پر وصي اعتماد کونکی وو فَلَوْصَحَّ رَدُّهٗ فِي غَيْرِ وَجْهِهٖ فِي حَيَاتِهٖ أَوْ بَعْدَ مَمَاتِهٖ نو که چيري د هغه په نا موجوديت کي د هغه په ژوند کي يا د هغه تر مرګ وروسته د وصي رد صحيح سي صَارَ مَغْرُوْرًا مِنْ جِهَتِهٖ نو هغه به د وصي له طرفه دوکه سوی [فريب خورده] وګرځي فَرُدَّ رَدُّهٗ نو ځکه د وصي رد به ردول کيږي بِخِلَافِ الْوَكِيْلِ بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِغَيْرِ عَيْنِهٖ أَوْ بِبَيْعِ مَالِهٖ په خلاف د هغه کس کوم چي د يو غير معيّن غلام د رانيولو وکيل وي يا د هغه د مال خرڅولو وکيل وي حَيْثُ يَصِحُّ رَدُّهٗ فِي غَيْرِ وَجْهِهٖ نو د هغه [وکيل] رد د مؤکل په نا موجوديت کي هم صحيح کيږي لِأَنَّهٗ لَا ضَرَرَ هُنَاكَ ځکه چي

هلته هیڅ ضرر نسته لِأَنَّهُ حَيٌّ قَادِرٌ عَلَى التَّصَرُّفِ بِنَفْسِهِ ځکه چي مؤکل ژوندی دی او بذات خود پر تصرف کولو قدرت لرونکی دی.

**اللغات**: ﴿قَبِلَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: قبلول، منل. ﴿ردّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: واپس کول، ردّ کول. ﴿مضی﴾ د ضرب د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي: تېرېدل، تلل او داسي نور. کله چي یې په صله کي سَبِیْل راسي لکه دلته، نو د مړ کېدلو معنیٰ ورکوي، مثلاً مضی سْبیله یا لسبیله یا بسبیله: مړ سو. ﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صیغه ده: دوکه کړی سوی (چا ته چي دوکه ورکول سوې وي). ﴿ضرر﴾ نقصان، تاوان.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي یو سړي مثلاً خالد په خپل مرضُ الموت کي حامد خپل وصي جوړ کړی او حامد د هغه مخ ته دا وصایت (وصي کېدل) قبول کړی، او بیا د خالد په ناموجودیت کي وصي یعني حامد وصایت رد کړی او انکار یې وکړی، نو د وصي دغه ردّ کول او انکار کول معتبر نه دي؛ ځکه موصي (خالد) پر حامد اعتماد وکړی او هغه یې خپل وصي مقرر کړی او حامد هم د هغه مخ ته وصیت قبول کړی او اوس هغه غریب له دنیا څخه تللی دی، نو اوس که موږ د موصي تر مرګ وروسته یا د موصي په خپل ژوند کي د هغه په ناموجودیت کي د وصي ردّ او انکار صحیح وګرځوو، نو په دې سره به موصي ته ضرر ورسیږي چي د هغه مالونه به ضایع سي او هغه به د وصي له طرفه دوکه کړی سي، حال دا چي مسلمان ته دوکه ورکول حرام دي، نو ځکه د وصي له حرام کاري او د موصي له دوکه کېدو څخه د بچ کېدلو لپاره موږ دلته د وصي ردّ بالکل نا معتبر او ردّ کړی دی.

بخلاف الوکیل الخ: یعني که چیري خالد مثلاً حامد د یو غیر معین غلام د رانیولو لپاره وکیل جوړ کړي، یا یې د خپل یو مال د خرڅولو لپاره وکیل جوړ کړی، او وکیل (حامد) د مؤکل (خالد) په ناموجودیت کي دا وکالت (وکیل کېدل) ردّ کړی او انکار یې وکړی، نو دا ردّ صحیح دی او معتبر دی؛ ځکه په وکالت کي په دغه ردّ او انکار سره هیڅ ضرر نه پېښیږي؛ ځکه مؤکل (خالد) ژوندی دی او پر تصرف قادر دی، لهذا له وکیل څخه بغیر هم د هغه کار کیږي، نو ځکه دلته د وکیل ردّ او نکار معتبر دی.

## د موصي په موجوديت کې د وصايت د ردولو حکم

فَإِنْ رَدَّهَا فِي وَجْهِهِ بيا كه چيري وصي د موصي مخ ته وصايت رد كړي فَهُوَ رَدٌّ نو دا رد دى ايعني په دې سره وصايت رديږي او ختميږي لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْمُوصِيْ وِلَايَةُ إِلْزَامِهِ التَّصَرُّفَ ځکه چې موصي ته پر وصي د تصرف لازمولو ولايت نسته وَلَا غُرُوْرَ فِيْهِ او نه په دې صورت کې دوکه سته لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُنِيْبَ غَيْرَهُ ځکه چې موصي لره دا ممکن دي چې له هغه ځخه بغير بل څوک نائب جوړ کړي وَإِنْ لَمْ يَقْبَلْ وَلَمْ يَرُدَّ حَتّٰى مَاتَ الْمُوصِيْ او که وصي نه اوصايت] قبول کړی او نه يې رد کړی تر دې چې موصي مړ سو فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَبِلَ نو هغه ته اختيار دی که خوښه يې وي نو قبول دې يې کړي وَإِنْ شَاءَ لَمْ يَقْبَلْ او که خوښه يې وي نو اوصايت] دې نه قبلوي لِأَنَّ الْمُوصِيَ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الْإِلْزَامِ ځکه چې موصي لره [پر وصي] د لازمولو ولايت نسته فَبَقِيَ مُخَيَّرًا لهذا وصي اختيار من پاته سو فَلَوْ أَنَّهُ بَاعَ شَيْئًا مِنْ تَرِكَتِهِ بيا كه وصي د موصي له ميراث ځخه يو شى خرڅ کړی فَقَدْ لَزِمَتْهُ نو پر هغه وصايت لازم سو لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلَالَةُ الْإِلْتِزَامِ وَالْقَبُوْلِ ځکه دا خرڅول [پر ځان د وصايت] د لازمولو او قبلولو دليل دی وَهُوَ مُعْتَبَرٌ بَعْدَ الْمَوْتِ او قبول [د موصي] تر مرګ وروسته معتبر دي.

**اللغات**: ﴿إلزام﴾ د افعال د باب ماضي ده: پر چا يو شی لازمول. ﴿غُرور﴾ د نصر د باب ماضي ده: دوكه وركول (فريب وركول). ﴿مُخيَّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: اختيار وركول سوی. اختيار من. ﴿التزم﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پر ځان لازمول. په خپله ذمه (په خپله غاړه) اخيستل.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي که وصي (حامد) تر قبول وروسته د موصي (خالد) په ناموجوديت کي وصايت رد کړي. نو دا رد صحيح نه دی. ليکن که وصي د موصي مخ ته هغه رد کړي او انکار وکړي. نو دا رد صحيح او معتبر دی: ځکه چې موصي ته پر وصي د هيڅ شي د لازمولو حق نسته د موصي مخ ته د رد او انکار په وجه د وصي له طرفه دوکه هم نسته: ځکه چي موصي له هغه ځخه بغير بل څوک هم د هغه نائب جوړولای سي. نو ځکه د موصي مخ ته د وصي رد او انکار کول صحيح دي. همدا خبره په عبارت کي بيان کړی سوې ده.

وإن لم يقبل إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د موصي مخ ته وصي نه وصايت قبول کړي او نه يې رد کړي او موصي مړ سي. نو بيا وصي ته اختيار دی که خوښه يې وي. وصايت دي قبول کړي. کنې

هغه دي رد کړي: ځکه کله چې موصي ته د إلزام ولايت حاصل نه دی، نو ابتداءً خو پر وصي دا وصايت لازم سوی نه وو. او څرنګه چې اوس موصي مړ سوی دی، لهذا اوس وصي ته درد او قبول دواړو اختيار سته. او په همدې صورت کې که چيرې وصي د موصي له ميراث څخه يو شی خرڅ کړي، نو بيا پر هغه وصايت لازميږي: ځکه د موصي له ميراث څخه د شي پر خرڅولو اقدام کول د هغه له طرفه د وصايت قبلولو او پر ځان د وصايت لازمولو دليل دی او د موصي تر مرګ وروسته قبول او التزام معتبر دی.

## که وصي د موصي له ميراث څخه يو شی خرڅ کړي نو دا بيع نافذه ده که نه؟

وَيَنْفُذُ الْبَيْعُ او دا بيع نافذيږي لِصُدُوْرِهِ مِنَ الْوَصِيِّ د وصي له طرفه د دې بيع د صادريدلو په وجه وَسَوَاءٌ عَلِمَ بِالْوِصَايَةِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ او برابره ده وصي په وصايت [يعني د ځان په وصي کيدلو] خبر وي او که خبر نه وي [په هر صورت کې بيع نافذيږي] بِخِلَافِ الْوَكِيْلِ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالتَّوْكِيْلِ فَبَاعَ په خلاف د وکيل کله چې هغه په توکيل [يعني د ځان په وکيل کيدلو] خبر نه وي او خرڅول وکړي حَيْثُ لَا يَنْفُذُ نو هغه بيع نه نافذيږي لِأَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ ځکه چې وصي کيدل [د مړي (موصي)] خليفه کيدل دي لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِحَالِ انْقِطَاعِ وِلَايَةِ الْمَيِّتِ ځکه وصايت د مړي د ولايت منقطع کيدلو د حالت سره خاص دی فَتَنْتَقِلُ الْوِلَايَةُ إِلَيْهِ نو ولايت [وصايت] به د وصي وطرف ته منتقل سي وَإِذَا كَانَتْ خِلَافَةً او کله چې وصايت خلافت دی لَا تَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ نو هغه به پر علم [خبريدلو] نه موقوف کيږي كَالْوِرَاثَةِ لکه وارثت [وارث کيدل] أَمَّا التَّوْكِيْلُ إِنَابَةٌ او پاته سو وکيل کول نائب جوړول دي لِثُبُوْتِهِ فِيْ حَالِ قِيَامِ وِلَايَةِ الْمُنِيْبِ ځکه چې هغه د مُنيب [نائب جوړونکي] د ولايت د موجود والي په حالت کې هم ثابتيږي فَلَا يَصِحُّ مِنْ غَيْرِ عِلْمِهِ نو د وکيل له خبريدلو څخه بغير به توکيل نه صحيح کيږي كَإِثْبَاتِ الْمِلْكِ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ لکه د بيع او شراء [خرڅولو او رانيولو] په ذريعه د ملکيت ثابتول وَقَدْ بَيَّنَّا طَرِيْقَ الْعِلْمِ وَشَرْطَ الْإِخْبَارِ فِيْمَا تَقَدَّمَ مِنَ الْكُتُبِ او د علم [خبريدلو] لار او د إخبار [خبرولو] شرط مور په مخکيني کتابونو کې بيان کړي دي.

**اللغات**: ﴿صدور﴾ د نصر د باب مصدر دی: صادريدل. واقع کيدل. ﴿توکيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: وکيل جوړول. وکيل جوړيدل (وکيل کيدل)، ﴿يختص﴾ د افتعال د باب مضارع ده: خاص

کېدل. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: پرېکېدل. ختمېدل. ﴿لا يتوقف﴾ د تفعل له بابه د نفي صيغه ده: موقوف کېدل. موقوف پاتېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که وصي د موصي له میراث (ترکه) څخه یو شی خرڅ کړي. نو د هغه بیع نافذیږي. برابره ده وصي په وصایت خبر وي او که نه وي او دا بیع د نافذېدلو سره. سره د وصایت قبلولو دلیل هم دی. د دې په خلاف که یو سړی مثلاً خالد د خپل یو سامان د خرڅولو لپاره حامد وکیل جوړ کړي او وکیل (حامد) په دې توکیل خبر نه سي او بیا په همدې ناخبرۍ کي وکیل هغه سامان خرڅ کړي. نو د هغه بیع نه نافذیږي. د وصایت او توکیل تر مینځ فرق دا دی چې وصایت خلافت دی او توکیل انابت دی. خلافت دا دی چې په هغه کي د "اصل" یعني د "موصي" تر مرګ وروسته "خلیفه" یعني "وصي" ته د تصرّف اختیار حاصلیږي. او انابت دا دی چې په هغه کي د "اصل" یعني د "مُنیب" (نائب جوړونکی) په موجودیت کي هم "نائب" یعني "وکیل" لره د تصرّف اختیار پاتیږي. اوس د خلافت او انابت په هکله یوه قاعده دا ده چې د خلافت په ثبوت کي علم (خبرېدلو) لره ضرورت نسته او په هغه له خبرېدلو څخه بغیر هم خلیفه لره خلافت ثابتیږي. لکه څرنګه چې په وراثت کي علم او خبر ته ضرورت نه وي چې بغیر له خبرېدلو څخه هم وراثت ثابتیږي. همدغه ډول د وصي له خبرېدلو څخه بغیر د هغه په حق کي وصایت هم ثابتیږي. د دې په خلاف په انابت کي چې تر څو نائب په هغه خبر نه وي، تر هغه وخته پوري نیابت نه ثابتیږي. لکه د بیع وشراء په ذریعه د ملکیت اثبات. مثلاً خالد د حامد لپاره یو پُسه رانیوی او خالد په هغه خبر نه سو. په همدې حال کي خالد په هغه پسه کي څه تصرف وکړی. نو پر هغه بیع نه لازمیږي: ځکه خالد تر اوسه د دې بیع په هکله خبر سوی نه دی او بغیر له علم او خبر څخه وکالت نه لازمیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د علم او خبر طریقه او د إخبار شرط موږ د هدایې په څو کتابونو کي بیان کړی دی یعني په کتاب أدب القاضي (فصل القضاء بالمواریث). کتاب الوکالة او کتاب الشفعة کي. لنډه دا چې کله دا ثابته سوه چې وصایت خلافت دی او په هغه کي علم او خبرېدل ضروري نه دي. نو د همدغه قاعدې پر بناء موږ وویل چې وصي که په وصایت خبر وي او که نه وي. په هر صورت کي د هغه بیع نافذیږي. او وکیل که په وکالت خبر نه وي، نو بیا د هغه وکالت نه معتبر کیږي.

## د موصي تر مرګ وروسته وصايت ردول او بيا قبلول (حکم او تفصيل)

وَإِنْ لَمْ يَقْبَلْ حَتّٰى مَاتَ الْمُوصِيْ او که چيري وصي [وصايت] قبول نه کړی تر دې چي موصي مړ سو فَقَالَ: لَا أَقْبَلُ بيا وصي ووېل: چي زه [وصايت] نه قبلوم ثُمَّ قَالَ: أَقْبَلُ بيا يې ووېل: چي زه [هغه] قبلوم فَلَهُ ذٰلِكَ إِنْ لَمْ يَكُنِ الْقَاضِيْ أَخْرَجَهُ مِنَ الْوَصِيَّةِ حِيْنَ قَالَ لَا أَقْبَلُ نو وصي ته د دې حق سته [په دې شرط] که چيري قاضي د هغه د "لا أقبل" تر ويلو وروسته هغه له وصيت څخه ايستلی نه وي لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ قَوْلِهِ لَا أَقْبَلُ لَا يَبْطُلُ الْإِيْصَاءُ ځکه چي محض د هغه د "لا أقبل" په وينا سره وصي کېدل [وصايت] نه باطليږي لِأَنَّ فِيْ إِبْطَالِهِ ضَرَرًا بِالْمَيِّتِ ځکه چي د هغه [وصايت] په باطلولو کي د مړي ضرر دی وَضَرَرُ الْوَصِيِّ فِي الْإِبْقَاءِ او [د وصايت] په پاته کولو کي د وصي چي کوم ضرر دی مَجْبُوْرٌ بِالثَّوَابِ هغه په ثواب سره تلافي کړی سوی [پوره کړی سوی] دی [يعني د هغه ضرر تلافي په ثواب سره کيږي کوم ثواب چي د وصايت په خاطر وصي ته حاصليږي] وَدَفْعُ الْأَوَّلِ وَهُوَ أَعْلٰى أَوْلٰى او اول ضرر دفع کول (حال دا چي هغه اعلیٰ دی) زيات غوره دي [يعني د موصي ضرر دفع کول اولیٰ دي] إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ إِذَا أَخْرَجَهُ عَنِ الْوِصَايَةِ مګر دا چي کله قاضي وصي له وصايت څخه وباسي يَصِحُّ ذٰلِكَ نو دا [إخراج] صحيح دي لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيْهِ ځکه چي هغه [د قاضي فيصله] مجتهد فيه ده إِذْ لِلْقَاضِيْ وِلَايَةُ دَفْعِ الضَّرَرِ ځکه چي قاضي لره د ضرر دفع کولو ولايت سته وَرُبَّمَا يَعْجِزُ عَنْ ذٰلِكَ او ځيني وخت موصي له هغه [د وصايت له ذمه واری] څخه عاجزه وي فَيَتَضَرَّرُ بِبَقَاءِ الْوِصَايَةِ لهذا د وصايت په باقي پاتېدلو سره وصي ضررمن کيږي فَيَدْفَعُ الْقَاضِي الضَّرَرَ عَنْهُ نو قاضي له وصي څخه ضرر ليري کوي وَيُنَصِّبُ حَافِظًا لِمَالِ الْمَيِّتِ مُتَصَرِّفًا فِيْهِ او د مړي [موصي] د مال لپاره يو ساتونکی او د هغه په مال کي تصرف کونکی مقرر کوي فَيَنْدَفِعُ الضَّرَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ نو [په دې توګه] به له دواړو طرفونو څخه ضرر ليري سي ايعني له مړي (موصي) او وصي دواړو څخه] فَلِهٰذَا يَنْفُذُ إِخْرَاجُهُ نو ځکه د قاضي إخرج [د وصي ايستل] به نافذيږي فَلَوْ قَالَ بَعْدَ إِخْرَاجِ الْقَاضِيْ إِيَّاهُ: أَقْبَلُ بيا د قاضي له طرفه د وصي تر ايستل کېدلو وروسته که چيري وصي ووايي: چي زه [وصايت] قبلوم لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَيْهِ نو د

هغه وطرف ته به توجّه نه کيږي لِأَنَّهُ قَبِلَ بَعْدَ بُطْلَانِ الْوِصَايَةِ بِإِبْطَالِ الْقَاضِيْ ځکه چې وصي د قاضي په باطلولو سره د وصايت تر باطليدلو وروسته [وصايت] قبول کړی دی.

**اللغات:** ﴿مجبور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صيغه ده: د کوم څه چې جبران سوی وي، تلافي کړی سوی، پوره کړی سوی. ﴿مجرّد﴾ محض، خالي، يوازي. ﴿إيصاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: يو چا ته وصيت کول، وصي جوړول (د وصيت نافذونکی کس ټاکل، داسي څوک مقرر کول کوم چې وصيت نافذ او پوره کړي). ﴿يتضرّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ضررمن کېدل (تاواني کېدل). ضرر او نقصان ور رسېدل. ﴿وِصَايَة﴾ او وَصَايَة: وصي والی، وصي کېدل.

وصاية وګوره چي بفتح الواو دی او که بکسر الواو. بيا يې په ټوله کتاب کي بدل کړه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو سړی بل څوک مثلاً حامد خپل وصي جوړ وکړي او هغه وصي (حامد) د موصي په ژوند کي نه وصايت قبول کړي او نه يې ردّ کړي، بيا کله چي موصي مړ سي، نو وصي (حامد) ووايي "لا أقبل" چي دا وصايت ما ته قبول نه دی، بيا څه وخت وروسته ووايي چي "أقبل" ما ته قبول دی. نو په دې صورت کي حکم دا دی چي که د وصي د "لا أقبل" تر وينا وروسته قاضي هغه له وصايت څخه نه وي خارج کړی، نو دوباره د هغه "أقبل" ويل صحيح دي: ځکه محض د "لا أقبل" په ويلو سره دا وصي له وصايت څخه نه وځي او د هغه لپاره دوباره د وصايت قبلول صحيح او جائز دي تر څو چي قاضي هغه خارج کړی نه وي. او دا جواز په دې وجه دی چي د وصايت په باطلولو کي د مړي (موصي) ضرر دی ځکه چي وصي نه وي نو دا امکان او خطره وي چي د موصي مالونه به ضايع سي او د وصايت په پاته کولو کي که څه هم څه نا څه د وصي ضرر دی خو د وصايت د ذمه واری اخيستلو او پوره کولو چي کوم ثواب هغه ته حاصلېږي، په هغه ثواب سره د وصي د ضرر د تلافي کيږي.

او دا بيان داسي هم کېدلای سي چي دلته دوه ضررونه سره جمع دي: ① د مړي (موصي) ضرر، ② د وصي ضرر. او له دغه دواړو څخه د مړي ضرر اقویٰ دی، لهذا هغه به دفع کول کيږي او ادنیٰ يعني د وصي ضرر به زغمل کيږي؛ ځکه دا د فقهي قاعده ده: :إذا اجتمع مفسدتان، رُوعي أعظمهما ضررًا بإرتكاب أخفهما" يعني کله چي په يوه مسئله کي دوې خرابياني سره جمع سي، نو له هغوی څخه سپکه او ادنیٰ خرابي اختيارول کيږي چي لويه او اقویٰ خرابي دفع کړل سي، نو په مذکوره مسئله کي

هم د وصي ضرر اخف دی، لهذا هغه به زغمل کیږي او د موصي ضرر اقوی دی، نو ځکه هغه به دفع کول کیږي.

إلّا أن القاضي إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د وصي د "لا أقبل" له وینا څخه وروسته سمدستي قاضي هغه له وصایت څخه خارج کړي، نو د قاضي دغه إخراج صحیح او معتبر دی؛ ځکه د قاضي دا فعل او فیصله له اجتهادي اُمورو څخه ده او په اُمور اجتهادیه وو کې د قاضي فیصله لازمیږي؛ ځکه چې قاضي ته د ضرر دفع کولو ولایت حاصل دی. نو ځکه د هغه إخراج به لازمیږي نو تر دې وروسته که وصي هر څومره "أقبل". "أقبل" ووایي. وصایت د هغه په حق کې نه راګرځي.

وربما يعجز عن إلخ: د دې حاصل دا دی چې ځیني وخت وصي نا اهله او ناتوانه وي او د وصایت د ذمه واريو په پوره کولو قادر نه وي، نو ځکه قاضي هغه خارجوي او د هغه پر ځای د مړي د مال د حفاظت او په هغه کې د تصرّف کولو لپاره یو بل څوک وصي مقرّر کوي، او د قاضي په دغه فعل سره له موصي او وصي دواړو څخه ضرر دفع کیږي. نو ځکه موږ وایو چې د قاضي إخراج به نافذیږي او تر إخراج وروسته د وصي هیڅ خبره به د وصایت په هکله نه اورېدل کیږي.

**نا اهل کس وصي مقررول او قاضي لره د هغه د ایستلو حکم**

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى إِلٰى عَبْدٍ أَوْ كَافِرٍ أَوْ فَاسِقٍ فرمايي: او څوک چې غلام یا کافر یا فاسق کس وصي جوړ کړي أَخْرَجَهُمُ الْقَاضِيْ عَنِ الْوِصَايَةِ نو قاضي به هغوی له وصایت [وصي کېدلو] څخه باسي وَنَصَّبَ غَيْرَهُمْ او له هغوی څخه بغير نور کسان به دروي وَهٰذَا اللَّفْظُ يُشِيْرُ إِلٰى صِحَّةِ الْوَصِيَّةِ او دغه لفظ د وصيت [وصايت] صحيح کېدلو ته اشاره کوي لِأَنَّ الْإِخْرَاجَ يَكُوْنُ بَعْدَهَا ځکه چې ایستل تر صحیح کېدلو وروسته کېدلای سي وَذَكَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ أَنَّ الْوَصِيَّةَ بَاطِلَةٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې ذکر کړي دي چې دا وصيت باطل دی قِيْلَ: مَعْنَاهُ فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهِ الصُّوَرِ أَنَّ الْوَصِيَّةَ سَتُبْطَلُ ویل سوي دي: د دې معنیٰ دا ده چې په دغه ټولو صورتونو کې به وصيت ژر باطلول کیږي وَقِيْلَ: مَعْنَاهُ فِي الْعَبْدِ بَاطِلٌ حَقِيْقَةً او ویل سوي دي: چې په غلام کې د هغه معنیٰ حقیقتاً باطلېدل دي لِعَدَمِ وِلَايَتِهِ وَاسْتِبْدَادِهِ ځکه چې غلام لره ولایت او استقلال نسته وَفِيْ غَيْرِهِ مَعْنَاهُ سَتُبْطَلُ او له غلام څخه بغير په نورو کې د هغه معنیٰ د "ستبطل" ده [چې ژر به باطلول کیږي]

وَقِيلَ: فِي الْكَافِرِ بَاطِلٌ أَيْضًا او ویل سوي دي: چې په کافر کې هم باطل دی لِعَدَمِ وِلَايَتِهِ عَلَى الْمُسْلِمِ ځکه چې کافر ته پر مسلمان ولايت نسته.

**اللغات:** ﴿أَوْصَى﴾ د افعال د باب ماضي ده: وصيت کول، وصي جوړول، وصي ټاکل. ﴿استبداد﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مستقل کېدل، خود مختاره کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو غلام خپل وصي جوړ کړي، يا يو کافر يا فاسق کس خپل وصي جوړ کړي، نو د قاضي ذمه واري دا ده چې هغه به دا درې سره کسان له وصايت څخه خارجوي او د دوی پر ځای به آزاد، مسلمان او ديندار خلک دروي. صاحب د هدايې فرمايي چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا وينا "أخرجهم" د دې خبرې دليل دا دی چې د دغه کسانو وصي جوړول صحيح دي، ځکه إخراج په هماغه صورت کې ثابتيږي کله چې هغو ته مخکې وصايت حاصل سوی وي.

او په مبسوط کې امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چې دا وصيت باطل دی، لېکن دا بطلان د کومې درجې دی؟، په دې کې د مشايخو مختلف اقوال دي، فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله فرمايي چې له بطلان څخه مراد دا دی چې د غلام، کافر او فاسق وصيت د باطل ګرځولو قابل دی او هغه ژر باطلول پکار دي، لهذا د ما يؤول په اعتبار سره فهي باطلة ويل سوي دي.

د بعضي حضراتو قول دا دی چې د غلام په حق کې دا بطلان پر خپل حقيقيت محمول دی، يعني د هغه په حق کې له سره وصيت باطل دی؛ ځکه نه غلام پر چا ولايت لري او نه هغه ته پر خپل ځان ولايت سته، او نه هغه ته استقلال او خود مختاري حاصله ده، بلکې هغه خو همېشه د ما تحتی ژوند تېروي، نو ځکه د هغه په حق کې خو واقعي وصيت باطل دی.

وقيل إلخ: او يو قول دا دی چې د کافر په حق کې هم بطلان پر خپل حقيقت دی: ځکه کافر ته پر مسلمان ولايت نسته او هغه د دې قابل نه دی چې د مسلمان ولي جوړ سي. (احسن الهدايه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَوَجْهُ الصِّحَّةِ ثُمَّ الْإِخْرَاجُ أَنَّ الْأَصْلَ النَّظَرُ ثَابِتٌ او [د دې وصايت] د صحيح کېدلو او بيا [د قاضي] د ايستلو وجه دا ده چې اصل مصلحت [او شفقت] ثابت دی لِقُدْرَةِ الْعَبْدِ حَقِيقَةً د غلام د حقيقتاً قادر کېدلو په وجه وَوِلَايَةِ الْفَاسِقِ عَلَى أَصْلِنَا وَوِلَايَةِ الْكَافِرِ فِي الْجُمْلَةِ او زموږ د اصل مطابق د فاسق د ولايت په وجه او فی الجمله د کافر د ولايت په وجه إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ النَّظَرُ خو دا مصلحت [او شفقت]

پوره نه دي لِتَوَقُّفِ وِلَايَةِ الْعَبْدِ عَلٰى إِجَازَةِ الْمَوْلٰى د مالک پر اجازه د غلام د ولایت موقوف کېدلو په وجه وَتَمَكُّنِهِ مِنَ الْحَجْرِ بَعْدَهَا او د مالک د قادر کېدلو په وجه تر اجازې وروسته [د غلام] پر بندیز لګولو [او پر اجازه ختمولو] وَالْمُعَادَاةِ الدِّينِيَّةِ الْبَاعِثَةِ لِلْكَافِرِ عَلٰى تَرْكِ النَّظَرِ فِيْ حَقِّ الْمُسْلِمِ او د هغه دیني دښمنۍ په وجه کوم چې د کافر پارونکې ده د مسلمان په حق کې د مصلحت [او شفقت] پر پرېښوولو وَاتِّهَامِ الْفَاسِقِ بِالْخِيَانَةِ او په خیانت سره د فاسق د متهم کېدلو په وجه فَيُخْرِجُهُ الْقَاضِىْ مِنَ الْوِصَايَةِ نو ځکه قاضي به دوی هر یو له وصایت څخه باسي وَيُقِيْمُ غَيْرَهُ مُقَامَهُ او د هغه پر ځای به بل څوک دروي إِتْمَامًا لِلنَّظَرِ د مصلحت بشپړولو په غرض سره وَشُرِطَ فِي الْأَصْلِ أَنْ يَكُوْنَ الْفَاسِقُ مَخُوْفًا عَلَيْهِ فِي الْمَالِ او په مبسوط کې دا شرط لګول سوی دی چې فاسق داسې وي چې پر هغه د مال په باره کې [د خیانت] بېره وي وَهٰذَا يَصْلُحُ عُذْرًا فِيْ إِخْرَاجِهِ وَتَبْدِيْلِهِ بِغَيْرِهِ او دا خبره [چې فاسق مخوف علیه في المال وي] د عذر جوړېدلو صلاحیت لري د فاسق په ایستلو کې او په بل چا سره د هغه په بدلولو کې [چې د هغه پر ځای بل څوک ودرول سي].

**اللغات:** ﴿نظر﴾ شارحینو د دې لفظ دوې معناوې نقل کړي دي: مصلحت (ښېګڼه)، شفقت. ﴿لم يتمّ﴾ د ضرب د باب مضارع ده: پوره کېدل، بشپړ کېدل. ﴿اتّهام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: متهم کېدل، تورن او تومتي کېدل. ﴿في الجملة﴾ په یو درجه کې. ﴿مَخُوْف﴾ د سمع د باب مفعول دی. مخوف علیه: پر کوم چا چې د یو شي بېره وي، له چا څخه چې د یو ضرر او تاوان بېره وي.

**تشریح:** کومو حضراتو چې د غلام، فاسق او کافر لپاره وصایت هم صحیح ګرځولی دی او د قاضي إخرج یې هم صحیح ګرځولی دی؛ د هغو دلیل دا دی چې وصایت ځکه صحیح دی چې په دغه دریو کسانو کې هم د مصلحت او شفقت ماده سته او دوی مصلحت غوښتونکي او مشفق کېدلای سي، لېکن د دوی مصلحت او شفقت ناقص او نابشپړ دی، نو ځکه د قاضي صاحب له طرفه د دوی خارجول او معزوله کول هم صحیح دي. اوس پاته سو دا سوال چې په دغه کسانو کې مصلحت او شفقت څنګه دی؟ نو د دې جواب دا دی چې غلام حقیقتاً پر تصرّف قادر دی او عاقل بالغ غلام ښه او کټمن تصرّف کولای سي، همدارنګه زموږ د اصل مطابق فاسق هم د تصرّف حامل دی. او پاته سو کافر نو په یو درجه نه درجه کې هغه ته هم دا ولایت حاصل دی؛ ځکه چې کافر، مسلمان او غلام په رانیولو سره د هغه مالک کېدلای سي، لهذا په دې حوالو سره په غلام، کافر او فاسق ټولو کې

مصلحت او شفقت موجود دی، لېکن دا مصلحت ناقص او نا تمام دی، ځکه چې د غلام ولایت د هغه د مالک پر اجازه موقوف دی که چیرې هغه اجازه ورکړي خو سمه ده کنې هغه غلام همېشه عاجزه دی، همدارنګه غلام ته حاصلېدونکې اجازه حتمي او قطعي هم نه وي. بلکې عارضي وي او هر وخت چې مالک وغواړي، هغه سلبولای سي.

پاته سو کافر نو هغه خو د اسلام او مسلمانانو دښمن وي او دا دښمني هغه د مسلمان په حق کې د مصلحت او شفقت پر ختمولو مجبوره کولای سي. او پاته سو فاسق نو هغه په خیانت سره متهم وي او هر وخت دا خطره ور سره تړلې وي چې خیانت به وکړي، نو له هغه شخصه د مسلمان د مصلحت او خیر توقع نسته. نو دغه وجوهاتو ته په کتلو سره قاضي لره دا حق سته چې د دې کسانو وصایت رد کړي او د دوی پر ځای ایمانداره او امانتدار خلګ ودرې او د وصایت ذمه واري ور وسپاري.

وشرط الخ: فرمایي چې د فاسق د وصایت د ردولو لپاره امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې دا شرط لګولی دی چې د هغه په باره کې به دا بېره او اندېښنه وي چې په مال کې غلا او خیانت کوي او مال ضایع کوي، او دا بېره او اندېښنه داسي عذر دی چې د هغه په وجه فاسق له وصایت شخه خارجول کېدلای سي چې د هغه پر ځای بل شوک ودرول سي؛ ځکه چې په وصي ټاکلو سره د موصي (مړي) مقصد دا وو چې زما تر مرګ وروسته هغه زما د اولاد او زما د مالونو حفاظت کوي، حال دا چې د حفاظت پر ځای د هغه په باره کې د خیانت او مال ضایع کولو بېره او خطره سته.

## خپل غلام وصي جوړول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى إِلَى عَبْدِ نَفْسِهِ فرمایي: او شوک چې خپل غلام وصي جوړ کړي وَفِي الْوَرَثَةِ كِبَارٌ حال دا چې په وارثانو کې لویان [بالغ وارثان] وي لَمْ تَصِحَّ الْوَصِيَّةُ نو وصیت نه صحیح کیږي لِأَنَّ لِلْكَبِيرِ أَنْ يَمْنَعَهُ ځکه چې لوی [بالغ] لره دا حق سته چې غلام منع کړي أَوْ يَبِيعَ نَصِيبَهُ فَيَمْنَعَهُ الْمُشْتَرِي یا [له غلام شخه] خپله حصه خرڅه کړي نو مشتري به غلام منع کړي فَيَعْجِزُ عَنِ الْوَفَاءِ بِحَقِّ الْوِصَايَةِ نو غلام به د وصایت د حق له پوره کولو شخه عاجزه سي فَلَا يُفِيدُ فَائِدَتَهُ نو وصایت به خپله فایده نه ورکړي وَإِنْ كَانُوا صِغَارًا كُلُّهُمْ او که وارثان ټوله کوچنیان [نا بالغه] وي فَالْوَصِيَّةُ إِلَيْهِ جَائِزَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو بیا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خپل غلام وصي جوړول

جائز دي وَلَا تَجُوزُ عِنْدَهُمَا ❁ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه دي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی وَقِيلَ: قَوْلُ مُحَمَّدٍ مُضْطَرِبٌ فِيهِ او ويل سوي دي: چي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول په دې هکله مضطرب دی يَرْوِي مَرَّةً مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ وَتَارَةً مَعَ أَبِي يُوسُفَ کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره روايت کول کيږي او کله بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره وَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّ الْوِلَايَةَ مُنْعَدِمَةٌ د قياس دليل دا دی چي [په غلام کي] ولايت نېستي دی لِمَا أَنَّ الرِّقَّ يُنَافِيهَا ځکه چي غلامتوب د ولايت منافي دی وَلِأَنَّ فِيهِ إِثْبَاتَ الْوِلَايَةِ لِلْمَمْلُوكِ عَلَى الْمَالِكِ او ځکه چي په دې کي د مملوک لپاره پر مالک ولايت ثابتول سته وَهٰذَا قَلْبُ الْمَشْرُوعِ او دا د مشروع امر چپه اړول دي [ځکه مشروع دا ده چي مالک لره پر مملوک ولايت سته] وَلِأَنَّ الْوِلَايَةَ الصَّادِرَةَ مِنَ الْأَبِ لَا تَتَجَزَّأُ او ځکه چي د پلار له طرفه صادر ېدونکی ولايت نه متجزي کيږي وَفِي اعْتِبَارِ هٰذِهِ تَجْزِئَتُهَا او د وصيت په معتبر کولو کي د ولايت متجزي کول سته لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ بَيْعَ رَقَبَتِهِ ځکه چي غلام د خپل ذات د خرڅولو ملکيت [اختيار] نه لري وَهٰذَا نَقْضُ الْمَوْضُوعِ او دا د موضوع ماتېدل دي.

**اللغات**: ﴿کبار﴾ جمع د کَبِيرٌ ده: لوی، مراد: بالغ. ﴿وفاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول. ﴿قلب﴾ د ضرب مصدر دی: چپه اړول، ګرځول، نسکورول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که يو سړی خپل غلام وصي جوړ کړي او د هغه سړي ټول وارثان (ځامن وغيره) يا بعضي وارثان بالغه وي، نو د هيڅ امام په نېز هم دا وصيت صحيح نه دی: ځکه کوم چي بالغ وارثان دي، په هغوی کي هر يوه ته دا حق سته چي دا مذکوره غلام له تصرف څخه منع کړي، يا په غلام کي خپله حصه پر يو چا خرڅه کړي او څوک چي دا حصه رانيسي، هغه دا غلام له تصرف څخه منع کړي او غلام د وصايت د ذمه وارۍ له اداء کولو څخه عاجزه سي او وصايت فايده من ثابت نه سي: لهذا کله چي دلته په وصي جوړولو کي د موصي هيڅ فايده نسته، نو ښکاره ده چي دا غلام وصي جوړول بېکاره دي، نو ځکه فقهاء په دې صورت کي وصيت باطل ګرځولی دی.

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله استحسان انظر للتوضيح [القول الراجح: ۳۸۴]

وإن كانوا صغارًا إلخ: ها! كه چيري د موصي ټوله وارثان کوچني او نا بالغه وي او خپله پر تصرف کول قادر نه وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خپل غلام وصي جوړول جائز دي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت كه هم هغه ناجائز دي او همدا قياس دی. د بعضې حضراتو قول دا دی چي په دې صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک نه دی څرګند سوی. هغه کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره وي او کله بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره ليدل کيږي.

وجه القياس إلخ: د قياس او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د وصايت د ذمه وارۍ اخيستلو لپاره دا ضروري ده چي موصي به له اهلِ ولايت څخه وي، حال دا چي په غلام کي د ولايت اهليت نسته؛ ځکه چي هغه رقيق او تر غلامۍ لاندي دی، او رقيت (غلامتوب) د ولايت منافي دی. او بله خبره دا ده چي غلام مملوک دی او بادار يې مالک دی، اوس که موږ د غلام وصايت صحيح وګرځوو. نو قلبِ مشروع به لازم سي يعني غلام کوم چي مملوک دی هغه به د وصايت په وجه د خپل بادار د مال او خپله د بادار مالک سي، حالانکي دا صحيح نه ده. او د غلام د وصايت په صحيح ګرځولو کي دريمه خرابي دا لازميږي چي د پلارله طرفه حاصلېدونکی ولايت غيرُ متجزي وي، يعني له پلار څخه چي ځامنو ته کوم ولايت حاصليږي، هغه جزء جزءاو ټوټه ټوټه نه کيږي، حال دا چي غلام ته له موصي څخه کوم ولايت حاصليږي، هغه متجزي وي؛ ځکه غلام د موصي مال او سامان خو خرڅولای سي لېکن خپل ځان نه سي خرڅولای حال دا چي غلام هم د موصي مال دی او د هغه په ملکيت کي دی، او د ولايت متجزي کېدل نقضِ موضوع ده (لأن الوصي إنما يملك الولاية من الموصي، وولايته لا تتجزأ، إذ لا يقال: إن ولايته في بعض دون بعض، فلو ثبت التجزئ في ولاية الموصي، ثبت في ولاية الوصي، لكنه غير متجزئ، فكان عائدًا على موضوعه بالنقض [عنايه])، نو ځکه دغه خرابيو ته په کتلو سره خپل غلام وصي جوړول صحيح نه دي، که څه هم د موصي وارثان کوچني او نابالغه وي.

## په پورتنۍ مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّهُ مُخَاطَبٌ مُسْتَبِدٌ بِالتَّصَرُّفِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي غلام مخاطب دی [او] په تصرف کولو سره مستقل دی فَيَكُونُ أَهْلًا لِلْوِصَايَةِ نو ځکه هغه به د وصايت [وصي کېدلو] اهل وي وَلَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَيْهِ وِلَايَةٌ او پر هغه هيچا ته ولايت نسته فَإِنَّ الصِّغَارَ وَإِنْ كَانُوا مُلَّاكًا ځکه کوچنيان [نا بالغان] که څه هم مالکان دي لَيْسَ لَهُمْ وِلَايَةُ الْمَنْعِ خو هغو لره [د غلام] د منع کولو

ولایت نسته فَلَا مُنَافَاةَ نو ځکه هیڅ منافات نسته وَإِيصَاءُ الْمَوْلَى إِلَيْهِ يُؤْذِنُ بِكَوْنِهِ نَاظِرًا لَهُمْ او مالک چې هغه غلام موصي جوړ کړی دی دا د دې خبر ورکوي چې هغه د کوچنیانو لپاره مصلحت غوښتونکی [او مشفق] دی وَصَارَ كَالْمُكَاتَبِ او هغه د مکاتب په شان سو وَالْوِصَايَةُ قَدْ تَتَجَزَّأُ عَلَى مَا هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او وصایت د هغه قول مطابق متجزي کیږي کوم چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی أَوْ نَقُولُ: يُصَارُ إِلَيْهِ كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى إِبْطَالِ أَصْلِهِ یا موږ وایو: چې د هغه وطرف ته به د دې لپاره رجوع کول کیږي چې اصل ایصاء د باطلولو سبب نه وګرځي وَتَغْيِيرُ الْوَصْفِ لِتَصْحِيحِ الْأَصْلِ أَوْلَى او د اصل د صحیح ګرځولو لپاره د وصف بدلول زیات غوره دي.

**اللغات:** ﴿مستبد﴾ د استفعال د باب فاعل دی: مستقل، یوازینی. ﴿مُلاك﴾ جمع د مَالِك ده: مالک، خاوند، څښتن. ﴿ناظر﴾ د نصر د باب فاعل دی: نګران، ساتونکی او پام کونکی، د مصلحت رعایت کونکی (مصلحت غوښتونکی)، مشفق (شفقت کونکی).

**تشریح:** مخکې د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول ذکر سو چې که د موصي وارثان کم عمره او نابالغه وي، نو بیا خپل غلام د ځان وصي جوړول جائز او صحیح دي؛ په دې هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې غلام عاقل او بالغ دی او د عقل او بلوغ په وجه په اُمورو مخاطب دی، نو ځکه په تصرف کې مستقل او خود مختاره دی او پر هغه بل هیچا ته هم ولایت حاصل نه دی چې هغه منع کړي او بندیز پرې ولګوي، ځکه د وصي وارثان که څه هم د هغه مالکان دي، لیکن د خپل کم عمرۍ په وجه هغو ته د غلام منع کولو حق نسته، نو ځکه د هغه ولایت ثابت دی او د رقیت سره د هغه ټکر نسته. او بل دا چې کله موصي هغه خپل وصي جوړ کړی دی، نو دا د دې خبري څرګند دلیل دی چې دا غلام د موصي لپاره مصلحت غوښتونکی او د هغه معتمد غلام دی. نو ځکه د هغه وصایت صحیح دي. او لکه څرنګه چې که موصي خپل مکاتب د ځان وصي جوړ کړي نو صحیح دي. نو همداسي که هغه خپل رقیق د ځان وصي جوړ کړي نو دا هم صحیح او جائز دي.

**والوصایة إلخ:** او پاته سو د وصایت د متجزي کېدلو خبره کوم چې صاحبینو رَحِمَهُمَا الله کړې ده. نو د هغه دوه جوابه دي: ① اول جواب خوېې دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د یوه روایت مطابق د هغه په نیز وصایت متجزي کیږي، لهذا په دې حواله سره اعتراض کول بې ځایه دي. ② او دویم جواب يې دا دی چې که موږ وصایت متجزي نه وګرځوو او تجزي نه پکښي ومنو، نو د اصل ایصاء باطل

کول به لازم سي لکه څرنګه چې صاحبينو رَحِمَهُمَا الله کړي دي، حال دا چې که په هغه کې تجزّي ومنل سي نو صرف دايصاء په وصف کې به تغيير راسي، او دا خو معلومه خبره ده چې په اصل کې صرف تغيّر راتلل د هغه له باطلولو څخه اولیٰ او غوره دي، نو ځکه په وصيت کې به تجزّي منل کيږي او هغه به له باطليدلو څخه همدارنګه د عاقل بالغ کس کلام به له لغو کيدلو څخه ساتل کيږي.

## داسې څوک وصي جوړول ګوم چې د وصايت له ذمه واريو څخه عاجزه وي

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى إِلَى مَنْ يَعْجِزُ عَنِ الْقِيَامِ بِالْوَصِيَّةِ فرمايي: او څوک چې داسې کس وصي جوړ کړي کوم چې د وصيت له اداء کولو څخه عاجزه وي ضَمَّ إِلَيْهِ الْقَاضِي غَيْرَهُ نو قاضي دي د هغه سره بل څوک [هم] يو ځای کړي رِعَايَةً لِحَقِّ الْمُوصِي وَالْوَرَثَةِ د موصي او وارثانو د حق د رعايت کولو لپاره. وَهٰذَا لِأَنَّ تَكْمِيلَ النَّظَرِ يَحْصُلُ بِضَمِّ الْآخَرِ إِلَيْهِ او دا ځکه چې د مصلحت بشپړتيا [کامل مصلحت او شفقت] د وصي سره د بل چا په يو ځای کولو سره حاصليږي لِصِيَانَتِهِ وَبَعْضِ كِفَايَتِهِ د وصي د حفاظت په وجه او د هغه د څه کفايت په وجه [يعني د بل چا په ضمولو سره د وصي صيانت او حفاظت هم کيږي او څه کفايت يې هم کيږي چې هغه بل څوک په بعضي اُمورو کې د وصي مددګار او کافي کيږي] فَيَتِمُّ النَّظَرُ بِإِعَانَةِ غَيْرِهِ نو د هغه بل چا په مدد کولو سره به مصلحت [او شفقت] تام سي.

**اللغات**: ﴿صيانة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: حفاظت کول، ساتل او ژغورل. ﴿کفايـة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کافي کېدل، همدارنګه هغه څه کوم چې کافي او له بل څخه څوک مستغني کړي، ﴿إعانة﴾ د افعال د باب مصدر دی: مدد کول، کومک کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو واضح او آسانه دی چې که يو سړی نا اهله کس د ځان وصي جوړ کړي کوم چې د وصايت له ذمه واريو څخه عاجزه وي، نو په دې صورت کې د قاضي ذمه واري دا ده چې د هغه کس سره يو بل هوښيار او قادر کس هم شامل کړي او هغوی دواړو ته د وصايت د ذمه واريو د اخيستلو او پوره کولو حکم وکړي؛ د دې لپاره چې د موصي او د هغه د وارثانو ټولو رعايت وسي؛ ځکه په داسې کولو سره د دوی په حق کې کامل مصلحت او شفقت حاصليږي، او د دغه عاجز وصي صيانت او حفاظت هم کيږي چې په بعضي اُمور کې به هغه بل کس د ده کفايت کوي، لهذا کله چې هغه بل کس د ده مُعين او مرستيال سي، نو مصلحت او شفقت به تام او بشپړ سي.

## که وصي دقاضي مخ ته دخپلي عاجزۍ اونا اهلۍ شکايت وکړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ شَكَا إِلَيْهِ الْوَصِيُّ ذٰلِكَ او که چیري وصي قاضي ته د خپل عجز شکایت وکړي لَا يُجِيْبُهُ حَتّٰى يَعْرِفَ ذٰلِكَ حَقِيْقَةً نو قاضي به د هغه خبره نه مني تر دې چي حقیقتاً دا معلومه کړي لِأَنَّ الشَّاكِيَ قَدْ يَكُوْنُ كَاذِبًا تَخْفِيفًا عَلٰى نَفْسِهِ ځکه چي شکایت کونکی ځیني وخت پر خپل ځان د آساني کولو په خاطر درواغ ویونکی وي وَإِذَا ظَهَرَ عِنْدَ الْقَاضِيْ عَجْزُهُ أَصْلًا او کله چي د قاضي په نېز د هغه عاجزي په یقیني توګه ښکاره سي اِسْتَبْدَلَ بِهٖ نو قاضي به هغه بدل کړي [د ده پر ځای به بل څوک وصي مقرر کړي] رِعَايَةً لِلنَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ د دواړو طرفونو د مصلحت [او شفقت] په رعایت کولو سره وَلَوْ كَانَ قَادِرًا عَلَى التَّصَرُّفِ أَمِيْنًا فِيْهِ او که چیري وصي پر تصرّف قادر وي او په تصرّف کي امانتداره وي لَيْسَ لِلْقَاضِيْ أَنْ يُخْرِجَهُ نو بیا قاضي ته دا حق نسته چي هغه [له وصایت څخه] خارج کړي لِأَنَّهُ لَوِ اخْتَارَ غَيْرَهُ ځکه که چیري قاضي بل څوک اختیار کړي [یعني د ده پر ځای بل څوک وصي مقرر کړي] كَانَ دُوْنَهُ نو هغه به تر ده کمتر [او نا اهله] وي لِمَا أَنَّهُ كَانَ مُخْتَارَ الْمَيِّتِ وَمَرْضِيَّهُ ځکه چي دئ د مړي [له طرفه] منتخب کړی سوی او د هغه [له طرفه] خوښ کړی سوی دی فَإِبْقَاؤُهُ أَوْلٰى نو د ده باقي پرېښوول زیات غوره دي وَلِهٰذَا قُدِّمَ عَلٰى أَبِي الْمَيِّتِ په همدې وجه دئ د مړي [موصي] پر پلار مخکي کول کیږي مَعَ وُفُورِ شَفَقَتِهٖ سره د دې چي د پلار شفقت بشپړ وي فَأَوْلٰى أَنْ يُقَدَّمَ عَلٰى غَيْرِهٖ نو پر بل چا به په درجه اولیٰ مخکي کول کیږي.

**اللغات**: ﴿لا يُجيبه﴾ د افعال له بابه د نفي صیغه ده: د څه جواب ورکول، قبلول او منل. ﴿تخفيف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سپکول، آساني کول. ﴿مرضيّ﴾ د سمع د باب مفعول دی: خوښ کړی سوی (خوښ). ﴿وفور﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پوره کېدل، بشپړ کېدل، زیاتېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که چیري خپله وصي د قاضي مخ ته د خپلي عاجزۍ شکایت وکړي چي زه د وصایت ذمه واري نه سم پوره کولای او د وصي کېدلو اهل نه یم، نو قاضي به محض د دغه شکایت په وجه هغه له وصایت څخه نه باسي؛ ځکه ځیني خلک د ځان هوسایۍ او ځان خلاصولو لپاره په دې هکله درواغ جوړوي، نو ځکه قاضي ته پکار دي چي ښه تحقیق او پلټنه

وکړي او په تحقیق سره چي کله دا څرګنده سي چي واقعي دغه وصي مجبوره دی او د وصایت ذمه واري نه سي اداء کولای. نو د هغه پر ځای به بل قادر کس وصي جوړ کړي، د دې لپاره چي د دواړو رعایت او حفاظت وسي یعني د وارثانو د حق رعایت هم وسي او د وصي هم رعایت سي.

...کان إلخ: د دې حاصل دا دی چي که وصي پر تصرف قادر وي او په دې هکله امانتداره وي، نو قاضي ته دا حق نسته چي هغه له وصایت څخه وباسي او د هغه پر ځای بل څوک ودروي: ځکه هغه د مړي (موصي) له طرفه ټاکل سوی او خوښ کړی سوی وصي دی، او کېدلای سي چي قاضي کوم څوک د هغه پر ځای مقرر کړي. هغه به له ده څخه خراب او بې ایمانه وي، نو ځکه بلا وجه او بلا عذره قاضي ته دا حق نسته چي د مړي له طرفه ټاکل سوی وصي لیري کړي. او بل دا چي کله د موصي پلار موجود وي، نو د هغه وصي د هغه تر پلار مخکي او مقدم کول کیږي حال دا چي د پلار شفقت کامل او تر ټولو زیات وي، لهذا کله چي وصي تر پلار هم مخکي کول کیږي، نو تر نورو خلکو به په درجه اولیٰ مخکي کول کیږي کله چي په هغه کي هیڅ کمي نه وي او پر دې کار قادر وي، نو ځکه قاضي به له هغه څخه بغیر بل څوک نه دروي، بلکي د وصایت کار به صرف د هغه پر ذمه پرېږدي.

## که وارثان قاضي ته د وصي شکایت وکړي نو څه حکم دی؟

وَكَذَا إِذَا شَكَا الْوَرَثَةُ أَوْ بَعْضُهُمُ الْوَصِيَّ إِلَى الْقَاضِي او همدارنګه کله چي وارثان یا بعضي د دوی قاضي ته د وصي شکایت وکړي فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَعْزِلَهُ نو قاضي ته پکار نه دي چي هغه [سمدستي] معزوله کړي حَتَّى يَبْدُوَ لَهُ مِنْهُ خِيَانَةٌ تر دې چي د قاضي مخ ته د هغه خیانت ښکاره سي لِأَنَّهُ اِسْتَفَادَ الْوِلَايَةَ مِنَ الْمَيِّتِ ځکه چي هغه [وصي] له مړي څخه ولایت حاصل کړی دی غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا ظَهَرَتِ الْخِيَانَةُ مګر کله چي [د هغه] خیانت ښکاره سي فَالْمَيِّتُ إِنَّمَا نَصَبَهُ وَصِيًّا لِأَمَانَتِهِ نو مړي [موصي] خو هغه د خپل امانت په وجه وصي ټاکلی وو وَقَدْ فَاتَتْ او [اوس] امانت فوت سو وَلَوْ كَانَ فِي الْأَحْيَاءِ او که چیري هغه [موصي] له ژوندیو څخه وای لَأَخْرَجَهُ مِنْهَا نو دا وصي به یې له وصایت څخه ایستلي وای فَعِنْدَ عَجْزِهِ يَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ لهذا د موصي د عاجزۍ په وخت کي به قاضي د هغه نائب کیږي كَأَنَّهُ لَا وَصِيَّ لَهُ ګواکي د هغه لپاره ګردسره وصي سته نه.

**اللغات:** ﴿یعزل﴾ د ضرب د باب مضارع ده: معزوله کول، له منصبه لیرې کول، ګوښه کول او برطرفه کول. ﴿تبدو﴾ د نصر د باب مضارع ده: ښکاره کېدل، څرګنډېدل. ﴿استفاد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: حاصلول او ترلاسه کول، فایده حاصلول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د موصي ټوله وارثان یا بعضي وارثان قاضي ته د وصي شکایت یووسي، نو قاضي لره پکار دي چې محض د شکایت په اورېدلو سره هغه معزوله نه کړي، هاں! کله چې د وصي خیانت د قاضي مخ ته څرګند او ثابت سي، بیا دي هغه معزوله کړي، لېکن سمدستي به قاضي هیڅ فیصله نه کوي؛ ځکه موجوده وصي ته د مړي له طرفه ولایت حاصل سوی دی، نو ځکه د هغه په خارجولو کي به تلوار نه کیږي، لېکن کله چې د هغه خیانت ښکاره سي، نو بیا د هغه په خارجولو کي به ځنډ نه کیږي او سمدستي به هغه د معزولۍ په شپېړه وهل کیږي؛ ځکه موصي هغه د خپل امانتدارۍ په وجه وصي ټاکلی وو، حال دا چې هغه خائن ثابت سو او ښکاره ده چي که موصي ژوندی وای نو هغه به یې له وصایت څخه ایستلی او ګوښه کړی وای، لېکن اوس د مرګ په وجه هغه له ایستلو او ګوښه کولو څخه عاجزه دی، نو ځکه اوس به د هغه له طرفه قاضي د هغه د نائب په توګه وصي برطرفه کوي او دا به وېل کیږي چي مړي (موصي) هیڅ وصي هم ټاکلی نه دی، نو ځکه قاضي به له نوي سره بل څوک وصي مقرر کوي.

## په یوه وخت کي دوه نفره وصیان جوړول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى إِلَى اثْنَيْنِ فرمایي: او څوک چي دوو کسانو ته وصیت وکړي [یعني دوه کسان د خان وصیان جوړ کړي] لَمْ يَكُنْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دُونَ صَاحِبِهِ نو په هغوی کي د یوه لپاره دا حق نسته چي له خپل ملګري [بل وصي] څخه بغیر [تنها] تصرّف وکړي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز [یعني یوه وصي ته تنها د تصرف کولو حق نسته بلکي په تصرف کي د دواړو اجتماع ضروري ده] إِلَّا فِي أَشْيَاءَ مَعْدُودَةٍ نُبَيِّنُهَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى مګر په څو شیانو کي چي هغه به ان شاء الله [څه وروسته] موږ بیان کړو [چي هلته تقریباً پنځلس شیان بیان سوي دي] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ۞: يَنْفَرِدُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالتَّصَرُّفِ فِي جَمِيعِ الْأَشْيَاءِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چي له دوی څخه هر

۞ القول الراجح: قول الطرفین رَحِمَهُمَا الله، انظر للتفصیل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۵]

وصي په ټولو شیانو کي په تصرّف کولو سره منفرد [او خود مختاره] دی [هر یوه ته تنها د تصرف کولو حق سته] لِأَنَّ الْوِصَايَةَ سَبِيلُهَا الْوِلَايَةُ ځکه چي د وصایت طریقه ولایت دی وَهِيَ وَصْفٌ شَرْعِيٌّ لَا تَتَجَزَّأُ او ولایت یو شرعي وصف دی کوم چي نه متجزي کیږي فَيَثْبُتُ لِكُلٍّ مِنْهُمَا كَمَلًا نو ځکه له دوی څخه د هر یوه لپاره به دا ولایت په کامله توګه ثابتیږي كَوِلَايَةِ الْإِنْكَاحِ لِلْأَخَوَيْنِ لکه دوو ورونو لپاره د نکاح کولو ولایت [چي په کامله توګه ثابتیږي] وَهٰذَا لِأَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ او دا ځکه چي وصایت خلافت دی وَإِنَّمَا تَتَحَقَّقُ إِذَا انْتَقَلَتِ الْوِلَايَةُ إِلَيْهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي كَانَ ثَابِتًا لِلْمُوصِي او خلافت هغه وخت متحقق کیږي کله چي د وصي طرف ته په هماغه طریقه سره ولایت منتقل سي څرنګه چي د موصي لپاره ثابت وو وَقَدْ كَانَ بِوَصْفِ الْكَمَالِ او د موصي لپاره دا ولایت د کمال په وصف سره [په کامله توګه] ثابت وو وَلِأَنَّ اخْتِيَارَ الْأَبِ إِيَّاهُمَا يُؤْذِنُ بِاخْتِصَاصِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالشَّفَقَةِ او ځکه چي د پلار له طرفه د دوی دواړو [وصیانو] اختیارول خبر ورکوي له دوی څخه د هر یوه د خاص کېدلو په شفقت سره [یعني موصي چي دوه کسان وصیان ټاکلي دي دغه د دې خبر ورکوي چي له دوی څخه هر یو په شفقت سره مختص دی] فَيُنَزَّلُ ذٰلِكَ مَنْزِلَةَ قَرَابَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو دا اختصاص به د هر یوه د قرابت په منشله ګرځول کیږي.

**اللغات:** ﴿معدودة﴾ د نصر له بابه د مفعول صیغه ده: څو شمېرل سوي (شیان). ﴿یؤذن﴾ د افعال د باب مضارع ده: اګاه کول، خبر ورکول. ﴿ینزّل﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: شوه کول (صحیح همدا ده چي په دې معنیٰ د تفعیل له باب څخه مستعمل دی). ینزّل منزلة: یو شی د بل په درجه کي شوه کول (د بل شي په منزله ګرځول)، یو څه د بل څه پر ځای ایښول. د بل شي قائم مقام کول. ﴿المَنْزِلة﴾ مکان او مرتبه، درجه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که یو څوک دوه کسان خپل وصیان وټاکي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز له څو شیانو او اُمورو څخه بغیر نور د ټولو اُمورو په تصرّف کي د دواړو وصیانو اجتماع ضروري ده. او هر یوه ته په انفرادي توګه د تصرّف کولو حق نسته (او هغه څو شیان به څه وروسته

ذکر سي)، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز له دوی څخه هر يو په کامله توګه وصي دی او هر يوه ته په هر شي او هر امر کي د انفراداً تصرّف کولو حق سته. په دې هکله امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله درې دليلونه پېش کړي دي:

①... اول دليل دا دی چي وصايت د ولايت په ذريعه ثابتيږي؛ ځکه موصي د خپل مال او جايداد ولايت او ذمه واري وصي ته سپاري، او ولايت يو شرعي وصف دی چي په هغه کي تجزّی او تقسيم نه سي کېدلای، نو ځکه دغه ولايت به په دواړو وصيانو کي د هر يوه لپاره په کامله توګه ثابتيږي، او په کامله توګه د هغه د ثابتېدلو مطلب دا دی چي هر يو په خپل تصرّف کي آزاد وي او بل يوه ته محتاج نه وي، مثلاً که د يوې انجلۍ دوه ورونه وي، نو دوی دواړه د هغې د نکاح کولو مکمّل اختيار لري او هر يو د هغه په هکله خود مختاره دی او بل يوه ته محتاج نه دی، نو همداسي دلته به هم هر موصي خودمختاره وي او په خپل تصرّف کي به بل وصي ته محتاج نه وي.

②... دويم دليل دا دی چي وصايت خلافت دی او د خليفه لپاره چي کوم خلافت ثابتيږي، هغه د خپل هغه ټولو اوصافو او لوازماتو سره ثابتيږي کوم چي د اصل لپاره ثابت وي او څرنګه چي د اصل يعني د موصي لپاره دا ولايت په کامله توګه ثابت دي، نو ځکه په کامله توګه به د هغه د خليفه ګانو "وصيانو" لپاره هم ثابتيږي. او کمال هماغه وخت ثابتيږي کله چي هر وصيّ په تصرّف کي آزاد او خود مختاره وي.

③... درېيم دليل دا دی چي کله مړي (موصي) دوه کسان وصيان وټاکل، نو د دې خبري اعلان يې وکړی چي هغه د دوی دواړو شفقت او مصلحت مختصّ او اهم ګڼي، او د دواړو دغه اهميت او اختصاص بالشفقه ته به دا درجه ورکول کيږي چي ګواګي د موصي سره د دوی دواړو قرابت دی (يعني ګواکي دواړه د موصي قريبان دي)، او د قرابت په وجه چي کوم ولايت حاصليږي هغه کامل وي (يعني د قريب لپاره په کامله توګه ولايت ثابتيږي)، نو ځکه د دوی دواړو لپاره به هم په کامله توګه ولايت او وصايت ثابتيږي او په ټوله اُمورو کي به دوی هر يوه ته د انفراداً تصرّف کولو ملکيت او اختيار وي.

## په پورتنۍ مسئله کې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل

وَلَهُمَا: أَنَّ الْوِلَايَةَ تَثْبُتُ بِالتَّفْوِيْضِ د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې ولایت په تفویض سره ثابتیږي فَيُرَاعٰى وَصْفُ التَّفْوِيْضِ نو ځکه د تفویض دوصف رعایت به کول کیږي وَهُوَ وَصْفُ الِاجْتِمَاعِ او هغه [د تفویض وصف] داجتماع وصف دی إِذْ هُوَ شَرْطٌ مُفِيْدٌ ځکه چې اجتماع مفید شرط دی وَمَا رَضِيَ الْمُوصِيْ إِلَّا بِالْمُثَنّٰى او موصي نه دی راضي سوی مګر په دوو [وصیانو] سره وَلَيْسَ الْوَاحِدُ كَالْمُثَنّٰى او یو د دوو په څیر نه دی بِخِلَافِ الْأَخَوَيْنِ فِي الْإِنْكَاحِ په خلاف د دوو وروڼو په نکاح کولو کي لِأَنَّ السَّبَبَ هُنَالِكَ الْقَرَابَةُ ځکه چې هلته [دولایتِ انکاح] سبب قرابت دی وَقَدْ قَامَتْ بِكُلٍّ مِنْهُمَا كَمَلًا او قرابت په دوی دواړو کي د هریوه [ورور] سره په کامله توګه قائم [موجود] دی وَلِأَنَّ الْإِنْكَاحَ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ لَهَا عَلَى الْوَلِيِّ او ځکه چې نکاح کول [ښځه په نکاح ورکول] داسي حق دی کوم چې د ښځي لپاره پر ولي واجب دی حَتّٰى لَوْ طَالَبَتْهُ بِإِنْكَاحِهَا مِنْ كُفْءٍ يَخْطُبُهَا تر دې چې که ښځه له ولي [سرپرست] څخه د داسي کفو کس سره د خپل نکاح کولو مطالبه وکړي کوم چې هغې ته د نکاح پیغام واستوي يَجِبُ عَلَيْهِ نو پر ولي نکاح کول واجب دي وَهٰهُنَا حَقُّ التَّصَرُّفِ لِلْوَصِيِّ او دلته د تصرف حق وصي لره دی وَلِهٰذَا يَبْقٰى مُخَيَّرًا فِي التَّصَرُّفِ په همدې وجه وصي په تصرف کي اختیار من پاتیږي فَفِي الْأَوَّلِ أَوْفٰى حَقًّا عَلٰى صَاحِبِهِ نو په اول صورت کي ولي [ورور] داسي حق اداء کړی دی کوم چې د هغه پر ملګري [دویم ورور] باندي واجب دی فَصَحَّ نو ځکه هغه صحیح دی وَفِي الثَّانِيْ اسْتَوْفٰى او په دویم صورت کي وصي [داول وصي] حق اخیستی دی لِأَنَّ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ لَهُمَا ځکه چې د تصرف ولایت دوی دواړو اوصیانوا لره سته أَصْلُهُ الدَّيْنُ الَّذِيْ عَلَيْهِمَا وَلَهُمَا د دې اصل هغه قرض دی کوم چې پر دوو کسانو باندي وي او [هغه قرض کوم چې] د دوو کسانو لپاره وي.

**اللغات:** ﴿تفویض﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ورسپارل. ﴿یُراعٰی﴾ د مفاعلې د باب مضارع مجهول‌هده: رعایت کول. لحاظ کول. ﴿إنکاح﴾ د افعال د باب مصدر دی: د بل چا نکاح کول. ﴿کفو﴾ برابر. سیال. مثلاً که دوه کسان په نسب او کسب (پېشه) کي سره برابر وي نو یوه ته د بل کفو

وايي. ﴿يخطب﴾ د نصر د باب مضارع ده: د نكاح پېغام استول (مركه استول)، ﴿استوفى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره اخيستل، ترلاسه كول. ﴿دَين﴾ قرض.

**تشريح:** په دې عبارت كي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوى دى. حاصل يې دا دى چي د وصي لپاره چي كوم د وصايت ولايت ثابت سوى دى، هغه د تفويض يعني د موصي د ورسپارلو او وركولو په وجه ثابت سوى دى، نو ځكه په هغه كي به د تفويض د وصف پوره رعايت كول كيږي. او موصي د اجتماع په وصف سره تفويض كړى دى، نو ځكه د وصي په حق كي به هم د اجتماع په وصف سره هغه منتقل كيږي؛ ځكه دا د اجتماع وصف يو مفيد شرط دى؛ ځكه چي د يوه په مقابله كي د دوو قوت اقوىٰ او ظاهر دى. او بل دا چي موصي دلته په دوو وصيانو راضي سوى دى، لهذا صرف يوه وصي ته د تصرف اختيار وركول د موصي د رضامندۍ هم خلاف دي او د تفويض د وصف هم مخالف دي، نو ځكه موږ وايو چي صرف يوه وصي ته د تصرف اختيار وركول او د وصايت ذمه واري ورسپارل صحيح نه دي.

بخلاف الأخوين إلخ: دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب دى. حاصل يې دا دى چي د وصايت والا مسئله د دوو ورونړو د نكاح پر مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځكه د ولايتِ انكاح سبب قرابت دى (يعني چا ته خپله انجلۍ په نكاح وركول د دې ولايت قريب لره حاصل دى) او قرابت د دوو ورونړو لپاره په كامله توګه ثابت دى، نو ځكه د خور په نكاح وركولو كي هر يو په كامله توګه خود مختاره او مستقل دى او په دې تصرف كي يو بل ته محتاج نه دى.

دويمه خبره دا ده چي د بې واده انجلۍ نكاح كول د هغې پر ولي لازم شُده حق دى، تر دې چي كه يو سړى د يو چا انجلۍ تمركه وكړي او د نكاح پېغام ورواستوي او هغه سړى د انجلۍ كفو وي. نو د انجلۍ د مطالبې په صورت كي پر ولي د هغې نكاح كول واجب دي، حال دا چي پر وصي هيڅ شى هم واجب نه دي، په همدې وجه هر وصي په تصرف كي اختيارمن دى. اوس كه په مخكنۍ مسئله كي يعني د نكاح په مسئله كي يو ورور تنها د خور نكاح وكړي، نو ګواكي هغه له بل ورور څخه د يو لازم او واجب كار بوج ليري كړى او د هغه سره يې آساني اختيار كړه، نو ځكه د هغه يوه ورور دا فعل صحيح دى، لېكن څرنګه چي په دويمه مسئله يعني د وصايت په مسئله كي پر دوو وصيانو هيڅ شى هم واجب نه دى، لهذا كه يو وصي تنها يو كار او تصرف وكړى، نو په حقيقت كي هغه د بل وصي حق سلب كړى؛ نو ځكه دلته د هغه يوه وصي فعل صحيح نه دى. بلكي د دواړو اجتماع او په ګډه كار كول ضروري دي (إلّافي أشياء معدودة).

أصله الدّین الذی علیهما ولهما إلخ: په دې عبارت سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د مذکوره مسئلې یعني د انکاح د مسئلې او د وصایت د مسئلې تخریج بیان کړې ده. فرمایي چې د ولایت انکاح مثال داسې دی لکه د یو سړي چې پر دوو کسانو مثلاً د زید پر خالد او حامد دواړو قرض باندې وي او بیا خالد د حامد قرض هم اداء کړي. نو دا د ولایت انکاح مثال دی. ګواکې په دې صورت کې خالد د حامد واجب حق اداء کړی او د هغه سره یې آسانې اختیار کړه. او د وصایت مثال دا دی چې پر زید مثلاً د خالد او حامد دواړو قرض باندې دی او بیا خالد خپل قرض او د حامد قرض (دواړه قرضونه) واخیستل. نو خالد په دې اخیستلو سره د حامد حق سلب کړي. لهذا په دې سره د حامد حق نه اداء کیږي. دا د وصایت مثال سو.

**(اشیاء معدودة) په کومو شیانو کې د دواړو وصیانو اجتماع ضروري نه ده**

**او هر وصي ته تنها د تصرف حق په کومو أمورو کې حاصل دی؟**

بِخِلَافِ الْأَشْيَاءِ الْمَعْدُودَةِ په خلاف د څو شیانو لِأَنَّهَا مِنْ بَابِ الضَّرُورَةِ لَا مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ ځکه چې هغوی د ضرورت له باب څخه دي، نه د ولایت له باب څخه وَمَوَاضِعُ الضَّرُورَةِ مُسْتَثْنَاةٌ أَبَدًا او د ضرورت ځایونه همېشه مستثنیٰ وي وَهِيَ مَا اسْتَثْنَاهُ فِي الْكِتَابِ وَأَخَوَاتِهَا او دا هغه شیان دي کوم چې یې په قدوري [متن] کې مستثنیٰ کړي دي فَقَالَ نو امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمایلي دي إِلَّا فِي شِرَاءِ كَفَنِ الْمَيِّتِ وَتَجْهِيزِهِ مګر [هر وصي ته له خپل ملګري څخه بغیر (تنها) د تصرف کولو حق سته] د مړي [موصي] د کفن په رانیولو کې او د مړي په تجهیز کې لِأَنَّ فِي التَّأْخِيرِ فَسَادَ الْمَيِّتِ ځکه چې په ځنډ کولو کې د مړي [د بدن] خرابېدل سته وَلِهَذَا يَمْلِكُهُ الْجِيرَانُ عِنْدَ ذَلِكَ په همدې وجه د ځنډ په وخت کې همسایه ګان د تجهیز ملکیت [اختیار] لري وَطَعَامِ الصِّغَارِ وَكِسْوَتِهِمْ او د کوچنیانو په خوراک او د هغوی په کپړه راوړلو کې لِأَنَّهُ يُخَافُ مَوْتُهُمْ جُوعًا وَعُرْيًا ځکه چې د وږي [الوږي] او لڅوالي په وجه د هغوی مرګ بېره سته.

**اللغات**: ﴿معدودة﴾ د نصر له بابه د مفعول صیغه ده: څو شمېرل سوي (شیان)، ﴿تجهیز﴾ د تفعیل مصدر دی. د دې باب خپله معنیٰ ده: یو شی تیارول، چمتو کول. تجهیزالمیت: مړی د ښخولو لپاره تیارول (یعني غسل او کفن ورکول). او په تجهیز کې هغه ټوله أمور داخل دي کوم چې قبر ته د دننه

کولو تر وختـه مړی هغـه تـه محتـاج وي (اشرف الهدایه). ﴿جوع﴾ د نصر د باب مصدر دی: وږه (لوږه).

﴿عریان﴾ د سمع له بابه د فاعل صیغه ده: لڅ (لوڅ). لغړ. بربنډ.

**تشریح**: فرمايي چې بعضې شیان داسې دي کوم چې د اجتماع له وصف څخه خارج دي او له دواړو وصیانو څخه هر وصي هغه تنها هم کولای سي: ځکه چې دا شیان د ضرورت له قبیل څخه دی او د ضرورت مواقع همېشه مستثنیٰ وي. مصنف رَحِمَهُ الله دلته تقریباً پنځلس شیان او صورتونه ذکر کړي دي چې هغه به موږ په ترتیب سره بیان کړو:

①... که د مړي (موصي) لپاره کفن رانیولو ته ضرورت پېښ سي او دواړه وصیان موجود نه وي. نو صرف یو وصي هم هغه رانیولای سي. او بل وصي ته به انتظار نه کیږي.

②... همدارنګه د مړي په تجهیز کې به بل وصي ته انتظار نه کیږي. ځکه په انتظار کولو او په تأخیر کولو کې د مړي د خرابېدلو خطره سته. نو ځکه بل وصي ته به انتظار نه کیږي. همدا وجه ده که د مړي دواړه وصیان موجود نه وي. نو د مړي همسایه ګان به د هغه تجهیز او تکیفین کوي او هیچا ته به انتظار نه کوي.

③... که د موصي د کوچنیانو (بچیانو) لپاره خوراک راوړلو ته ضرورت پېښ سي. نو تنها یو وصي هم هغه رانیولای سي او بل وصي ته به نه انتظار نه کیږي، ځکه که انتظار وسي، نو دا بېره سته چې د سختي وږي څخه به ماشومان ناروغه او مړه سي.

④... همدارنګه که د موصيُ د کوچنیانو لپاره کپړو رانیولو تـه ضرورت پېښ سي، نو تنها یو وصي هم هغه رانیولای سي او د دې لپاره به بل وصي ته انتظار نه کیږي: ځکه که انتظار وسي. نو دا بېره سته چې د کپړو د نشتوالي او لڅوالي په وجه به کوچنیان د سخت یخ یا ګرمی له کبله ناروغه او مړه سي.

## هر وصي ته تنها د تصرف حق په کوموشیانو کې حاصل دی؟

وَرَدِّ الْوَدِيْعَةِ بِعَيْنِهَا او د متعین ودیعت په واپس کولو کې وَرَدِّ الْمَغْصُوْبِ او د غصب کړی سوي شي په واپس کولو کې وَالْمُشْتَرىٰ شِرَاءً فَاسِدًا او په فاسد رانیولو سره د رانیول سوي شي په واپس کولو کې وَحِفْظِ الْأَمْوَالِ او د مالونو په حفاظت کولو کې وَقَضَاءِ الدُّيُوْنِ او د قرضونو په اداء کولو کې لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ ځکه چې دا شیان د ولایت له باب څخه نه دي فَإِنَّهُ يَمْلِكُهُ الْمَالِكُ وَصَاحِبُ الدَّيْنِ إِذَا ظَفِرَ بِجِنْسِ حَقِّهِ ځکه [د ودیعت] مالک او د قرض مالک د هغه [د اخیستلو] ملکیت

لري کله چي دوی د خپل حق پر جنس بريالي سي [يعني خپل د وديعت شی او خپل د قرض مال په لاس ورسي او ترلاسه يې کړي. نو اخيستلای يې سي] وَحِفْظُ الْمَالِ يَمْلِكُهُ مَنْ يَقَعُ فِيْ يَدِهِ او د مال د حفاظت کولو خو [هر] هغه کس مالک کيږي د چا په قبضه کي چي مال واقع سي فَكَانَ مِنْ بَابِ الْإِعَانَةِ نو دا د اعانت له باب څخه سوه [نه د ولايت له باب څخه] وَلِأَنَّهُ لَا يُحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الرَّأْيِ او ځکه چي په دې کي رايي ته ضرورت نسته وَتَنْفِيْذِ وَصِيَّةٍ بِعَيْنِهَا [همدارنګه هر وصي ته تنها د تصرف کولو حق سته] د متعين وصيت په نافذولو کي وَعِتْقِ عَبْدٍ بِعَيْنِهِ او د متعين غلام په آزادولو کي لِأَنَّهُ لَا يُحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الرَّأْيِ ځکه چي په هغه کي رايي ته ضرورت نسته وَالْخُصُوْمَةِ فِيْ حَقِّ الْمَيِّتِ او د مړي د حق په هکله په خصومت کولو کي لِأَنَّ الِاجْتِمَاعَ فِيْهَا مُتَعَذِّرٌ ځکه چي په خصومت [دعوی] کولو کي اجتماع ستونزمنه ده وَلِهٰذَا يَنْفَرِدُ بِهَا أَحَدُ الْوَكِيْلَيْنِ په همدې وجه له دوو وکيلانو څخه يو وکيل په خصومت کولو سره متفرّد کيږي وَقَبُوْلِ الْهِبَةِ او د هبې په قبلولو کي لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ خِيْفَةَ الْفَوَاتِ ځکه په ځنډ کولو کي [دهبې] د فوتېدلو بېره سته وَلِأَنَّهُ يَمْلِكُهُ الْأُمُّ وَالَّذِيْ فِيْ حِجْرِهِ او ځکه چي د دې [هبه قبلولو] ملکيت لري مور او هغه کس چي بچی د هغه په پالنه کي وي [يعني دا کسان هم د بچي لپاره د هبې قبلولو اختيار لري] فَلَمْ يَكُنْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو دا [هبه قبلول] د ولايت له باب څخه نه سوه وَبَيْعِ مَا يُخْشَى عَلَيْهِ التَّوٰى وَالتَّلَفُ [همدارنګه هر وصي ته تنها د تصرف کولو حق سته] د هغه شي په خرڅولو کي چي د هغه د هلاکېدلو او تلف کېدلو [بېره] وي لِأَنَّ فِيْهِ ضَرُوْرَةً لَا تَخْفٰى ځکه په دې کي ضرورت دی کوم چي پټ نه دی وَجَمْعِ الْأَمْوَالِ الضَّائِعَةِ او د متفرّقه [خواره] مالونو په جمع کولو کي لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ خَشْيَةَ الْفَوَاتِ ځکه چي په ځنډ کولو کي [د مالونو] د فوتېدلو بېره سته وَلِأَنَّهُ يَمْلِكُهُ كُلُّ مَنْ وَقَعَ فِيْ يَدِهِ او ځکه چي هر هغه کس د دې [مال جمع کولو] ملکيت لري چي د هغه په لاس کي مال واقع سي فَلَمْ يَكُنْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو دا د ولايت له باب څخه نه سوه.

**اللغات**: ﴿ظفر﴾ بری ترلاسه کول، کامیابېدل، يو شی ترلاسه کول (حاصلول). ﴿خيفة﴾ بېره. خطره. ﴿حِجْر﴾ غېږه. پالنه او روزنه (پرورش او تربيه). ﴿التوىٰ﴾ د سمع د باب مصدر دی: هلاکېدل. بربادېدل. ضايع کېدل (داسي ضايع کېدل چي بيا يې هيڅ اُميد نه وي).

**تشریح**: په کومو یو شیانو کې چې د دواړو وصیانو اجتماع ضروري نه ده او هر وصي ته تنها د تصرف حق حاصل دی او بل وصي ته به انتظار نه کیږي، له هغوی څخه څلور خو مخکې ذکر سول، او یوولس صورتونه دلته ذکر کول کیږي چې د ټولو شمېر پنځلسو ته رسیږي:

⑤... که چیري د موصي سره د یو چا متعین شی (مثلاً صندوخ) امانتاً ایښوول سوی وي، نو د هغه په واپس کولو کې د دواړو وصیانو اجتماع ضروري نه ده، بلکې کله چې دواړه موجود نه وي نو یو وصي هم هغه واپس کولای سي، او بل وصي ته به انتظار نه کیږي.

⑥... همدارنګه که موصي یو شی غصب کړی وي، نو هغه هم یو وصي ورته واپس کولای سي او بل وصي ته به انتظار نه کیږي.

⑦... که مشتري د شراء فاسد په توګه یو شی رانیولی وي، نو هغه شی هم یو وصي ورته واپس کولای سي او د دواړو اجتماع ضروري نه ده.

⑧... او د موصي د مالونو حفاظت او صیانت هم یو وصي تنها کولای سي او د هغوی د حفاظت کولو لپاره به بل وصي ته انتظار نه کیږي.

⑨... همدارنګه که پر مړي د خلګو قرضونه باندي وي، نو هغه هم یو وصي تنها اداء کولای سي، او د هغوی په اداء کولو کې به بل وصي ته انتظار نه کیږي.

د دغه ټولو اُمورو د تنها جائز کېدلو وجه دا ده چې دغه اُمور د ولایت د باب سره تعلّق نه لري: ځکه چاته چې د موصي له طرفه ولایت حاصل نه وي، هغه هم دا اُمور ترسره کولای سي: ځکه د ودیعت مالک (مودِع) چې کله هم راسي او ده ته خپل سامان حاصل سي، نو دئ خپله هغه اخیستلای سي، همدارنګه د قرض مالک (قرضخواه) ته چې کله د خپل حق جنس حاصل سي، نو دئ خپله هغه اخیستلای سي، او په شراء فاسد کې هم دغه حالت دی چې مالک هغه ور کولای سي. او پاته سوه د مالونو د حفاظت مسئله، نو د هغه لپاره صرف وصي مخصوص نه دی، بلکې د هر چا لاس ته چې د موصي مال راسي، د هغه حفاظت کولای سي، نو دا حفاظت هم د اعانت او ضرورت له باب څخه دی چې په هغه کې د بل چا رایې ته هیڅ ضرورت نسته چې داسي وویل سي چې د دواړو (وصیانو) په جمع کېدلو سره به په رایه کې مضبوطي پیدا سي.

**وتنفیذ وصیة إلخ**: ⑩... لسم شی چې په هغه کې د دواړو وصیانو اجتماع ضروري نه ده، هغه معین وصیت دی مثلاً که موصي د یو معیّن کس لپاره وصیت کړی وي، نو د هغه په نافذولو کې هم د دواړو اجتماع ضروري نه ده بلکې یو وصي تنها هغه نافذولای سي او بل وصي ته د انتظار کولو ضرورت نسته.

(۱۱)... همدارنګه که د يو معين غلام د آزادولو خبره وي. نو هغه هم يو وصي تنها آزادولای سي او د دواړو اجتماع ضروري نه ده.

(۱۲)... که د مړي(موصي) د حق په باره کې خصم درولو ته ضرورت پېښ سي چې هغه د مړي د حق ترلاسه کولو لپاره خصومت(دعوی) وچلوي. نو دا کار هم يو وصي تنها کولای سي: ځکه د خصومت په باب کې حکم دا دی چې د دواړو د اجتماع په صورت کې به هم صرف يو وصي تنها خصومت کوي. د دې لپاره چې د دواړو په خصومت کولو سره د قاضي په مجلس کې شور او غالمغال جوړ نه سي. همدا وجه ده که د يو چا له طرفه دوه وکيلان ټاکل سوي وي. نو بيا هم صرف يو وکيل به تنها خصومت کوي.

(۱۳)... که څوک د موصي د بچيانو لپاره هبه وکړي. نو هغه هم يو وصي قبلولای سي او د دواړو اجتماع ضروري نه ده: ځکه که بل ته انتظار وسي. نو کېدلای سي چې هبه کونکی هبه پرېږدي او انکار وکړي. په همدې وجه دا اختيار مور ته هم ورکول سوی دی چې د بچي لپاره هبه قبوله کړي. همدارنګه د کوم چا په پالنه او روزنه کې چې يو بچی وي. هغه هم د بچي لپاره هبه قبلولای سي. لهذا کله چې د بچي مور او د هغه پالونکی هبه قبلولای سي. نو د بچي وصي خو به په درجه اولیٰ هغه قبلولای سي. برابره ده بل وصي (دويم وصي) موجود وي او که نه وي. لنډه دا چې هبه قبلول هم د ولايت له باب څخه نه دي.

وبيع مايخشى عليه إلخ: (۱۴)... همدارنګه هغه شيان چې د هغوی د ضايع کېدلو او خرابېدلو بېره وي مثلاً شيدې. غوښې وغيره. نو هغه هم يو وصي تنها خرڅولای سي. ځکه چې په دې کې ضرورت متحقق دی.

(۱۵)... همدارنګه که د موصي مال متفرق وي او دلته و هلته پروت وي. نو هغه هم يو وصي تنها جمع کولای سي او د هغوی د جمع کولو لپاره بل وصي ته د انتظار کولو ضرورت نسته: ځکه که انتظار وسي، نو د هغوی د فوت کېدلو او ضايع کېدلو احتمال سته. لهذا کوم وصي چې حاضر وي. هغه به يې جمع کوي. او څرنګه چې دا کار له وصي څخه بغير بل هر هغه څوک هم کولای سي چې د هغه لاس ته د موصي مال راسي (يعني دا کار فقط د هغه کس لپاره مخصوص نه دی چې هغه ته د مړي (موصي) له طرفه ولايت حاصل وي لکه وصي. بلکې هر هغه کس د مال حفاظت کولای سي چې په لاس کې يې مال واقع سي. نو وصي خو يې په درجه اولیٰ کولای سي). لهذا ښکاره ده چې دا کار د ولايت له باب څخه نه دی. او کله چې د ولايت له باب څخه نه دی. نو د هغه په کولو کې يو او دوه دواړه سره برابر دي۔

## د بيع او قبضې په صورت کې د دواړو وصيانو اجتماع ضروري ده

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: وَلَيْسَ لِأَحَدِ الْوَصِيَّيْنِ أَنْ يَبِيْعَ وَيَتَقَاضٰى او په جامع صغير کې دي: او له دوو وصيانو څخه يوه ته دا حق نسته چې بيع وکړي يا قبضه وکړي وَالْمُرَادُ بِالتَّقَاضِيْ الْاِقْتِضَاءُ او مراد له تقاضي څخه [پر قرض] قبضه کول [قرض اخيستل] دي كَذَا كَانَ الْمُرَادُ مِنْهُ فِيْ عُرْفِهِمْ همدا له هغه څخه د اهلِ کوفه [کوفيانو] په عرف کې مراد دي [خو زموږ په عرف کې د تقاضي مراد تقاضا او طلب دی] وَهٰذَا لِأَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا جَمِيْعًا فِي الْقَبْضِ او دا ځکه چې په قبضه کولو کې موصي د دوی دواړو په امانت راضي سوی دی وَلِأَنَّهُ فِيْ مَعْنَى الْمُبَادَلَةِ او ځکه چې قبضه کول د مبادلې په معنیٰ سره دي لَا سِيَّمَا عِنْدَ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ خصوصاً د جنس د اختلاف په وخت کې عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې دا پېژندل سوې ده فَكَانَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو ځکه دا به د ولايت له باب څخه وي.

**اللغات**: ﴿التقاضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: د يو شي طلب کول او پر هغه قبضه کول. ترلاسه کول. ﴿الاقتضاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی. د دې باب هم څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: د حق (قرض) طلب کول او اخيستل. قبضه پر کول. حق اخيستل، ﴿مبادلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي په بدله کې ورکول. يو په بل سره بدلول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي مثلاً زيد دوه کسان د ځان وصيان ټاکلي وي. نو د موصي (زيد) تر مرګ وروسته له هغوی څخه يوه وصي ته دا حق نسته چې د موصي له مال څخه يو شی خرڅ کړي يا د موصيٰ پر قرض قبضه وکړي کوم چې پر يو چا باندي وي (يعني د موصي له مقروض څخه قرض واخلي). نو يوه وصي ته دا حق نسته؛ ځکه چې موصي (زيد) د دواړو پر اجتماعي امانت اعتماد کړی وو او د دواړو په اجتماع راضي سوی وو.

دويمه وجه دا ده چې د دې (بيع او قبضې) تعلق د ولايت د باب سره دی. نو ځکه دا په هغه څو مستثنیٰ شيانو کې نه داخليږي (کوم چې څه مخکې ذکر سول)؛ ځکه په دې کې په هر صورت کې د "مبادله" معنیٰ موجوده وي. برابره ده جنس متحد وي او که مختلف وي. او د اختلاف جنس په صورت کې خو د "مبادله" د معنیٰ وجود زيات ښکاره دی. نو ځکه د بيع (خرڅولو) يا قبضه کولو لپاره د دواړو وصيانو اجتماع ضروري ده او تنها يوه وصي ته دا حق نسته.

## که موصي دوه کسان جلا، جلا وصيان جوړ کړي، نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَوْصٰى إِلٰى كُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الْإِنْفِرَادِ او که چیري موصي د هريوه لپاره په انفرادي توګه وصيت کړی وي [يعني هريو يې جلا. جلا وصي جوړ کړی وي] قِيْلَ: يَتَفَرَّدُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالتَّصَرُّفِ نو ويل سوي دي: چي له دوی څخه هريو په تصرّف کي متفرّد [او خود مختاره] کيږي بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيْلَيْنِ إِذَا وَكَّلَ كُلَّ وَاحِدٍ عَلَى الْإِنْفِرَادِ د دوو وکيلانو په درجه کي کله چي مؤکل هريو په انفرادي توګه وکيل جوړ کړی وي [نو هغوی هم هريو په تصرّف کي منفرد او خود مختاره وي] وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَمَّا أَفْرَدَ او دا ځکه چي کله موصي [هر وصي] مفرد کړی [يعني کله چي موصي هريو منفرد وصي جوړ کړی] فَقَدْ رَضِيَ بِرَأْيِ الْوَاحِدِ نو هغه [تنها] د يوه وصي په رايه باندي راضي سو وَقِيْلَ: الْخِلَافُ فِي الْفَصْلَيْنِ وَاحِدٌ او ويل سوي دي: چي اختلاف په دواړو صورتونو کي يو دی لِأَنَّ وُجُوْبَ الْوَصِيَّةِ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه چي د وصيت واجبېدل د مرګ په وخت کي وي [د مرګ په وخت کي واجبيږي] بِخِلَافِ الْوَكِيْلَيْنِ په خلاف د دوو وکيلانو لِأَنَّ الْوَكَالَةَ تَتَعَاقَبُ ځکه چي وکالت يو تر بل وروسته کيږي [د يوه وکالت د بل تر وکالت وروسته ثابتيږي].

**اللغات:** ﴿انفراد﴾ د انفعال د باب مصدر دی: يوازي والی (يوازي کېدل)، عليحده کېدل. ﴿يتفرّد﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: يوازيني کېدل (په يو کار کي تنها کېدل، په يو کار سره مستقل کېدل)، ﴿تتعاقب﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: يو تر بل وروسته کېدل، وروسته واقع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که موصي دوه کسان وصيان جوړ کړي وي، خو هريو يې په جلا او انفرادي توګه وصي جوړ کړی وي، نو د بعضي حضراتو رايه دا ده چي په دې صورت کي هر وصي په تصرّف کولو کي متفرّد او يو بل ته محتاج نه دی بلکي هر يو تنها هم د تصرّف کولو مستحق دی او د دواړو اجتماع ضروري نه ده؛ لکه کله چي يو سړی دوه کسان په جلا. جلا توګه وکيلان جوړ کړي وي، نو هغوی هر يو تنها د تصرّف کولو مستحق کيږي او په يوه تصرّف کي د دواړو اجتماع ضروري نه ده؛ ځکه کله چي موصي دوو کسانو ته د وصايت ذمه واري سپارلې ده او دواړه يې په جلا. جلا توګه وصيان ټاکلي دي، نو موصي د هريوه په انفرادي رايه خوشاله دی او د دوی د رايي اجتماع ته محتاج نه دی، نو ځکه د هر وصي انفرادي تصرّف به صحيح او جائز وي.

وقيل إلخ: فرمايي چي د بعضي حضراتو رايه دا ده چي په دواړو صورتونو کي يعني برابره ده موصي دوه کسان يو ځای وصيان کړي وي، يا يې په جلا، جلا توګه يې وصيان کړي وي (په دې دواړو صورتونو کي) د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف جاري دی. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د وصي لپاره تنها تصرف کول جائز دي؛ ځکه چي وصيت د مرګ په وخت کي واجبيږي او د مرګ په وخت کي د هر وصي د بل وصي سره اجتماع کيږي برابره ده انفرادي وصيت وي او که اجتماعي. د دې په خلاف که چيري وکالت انفرادي وي، نو په هغه کي اجتماع نه کيږي؛ ځکه چي وکالت د تعاقب په توګه يو تر بل وروسته ثابتيږي. لهذا په کوم وخت کي چي يو وکيل وي، په بل وخت کي هغه وکيل نه وي. او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دغه قول پر بنياد د اجتماع او انفراد دواړو حکم سره يو دی، يعني تنها يوه وصي ته د تصرف کولو حق نسته.

**که له دواړو وصيانو څخه يو وصي مړ سي، نو څه حکم دی؟**

فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا بيا که له دوو وصيانو څخه يو مړ سي جَعَلَ الْقَاضِيْ مَكَانَهُ وَصِيًّا آخَرَ نو قاضي به د هغه پر ځای بل وصي مقرر کړي أَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ الْبَاقِيْ عَاجِزٌ عَنِ التَّفَرُّدِ بِالتَّصَرُّفِ هر چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله نو ځکه چي پاته [ژوندی] وصي له تنها تصرف کولو څخه عاجزه دی فَيَضُمُّ الْقَاضِيْ إِلَيْهِ وَصِيًّا آخَرَ نو ځکه قاضي به د هغه سره بل وصي يو ځای کوي نَظَرًا لِلْمَيِّتِ عِنْدَ عَجْزِهِ د مړي د مصلحت [او شفقت] لپاره د پاته وصي د عاجزه کېدلو په وخت کي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ الْحَيُّ مِنْهُمَا وَإِنْ كَانَ يَقْدِرُ عَلَى التَّصَرُّفِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز له دوی څخه ژوندی [پاته] وصي که څه هم پر تصرف قادر دی فَالْمُوْصِيْ قَصَدَ أَنْ يَخْلُفَهُ مُتَصَرِّفَانِ فِيْ حُقُوْقِهِ خو موصي اراده دا کړې ده چي د هغه په حقوقو کي دوه تصرف کونکي کسان د هغه خليفه [نائبان] سي وَذٰلِكَ مُمْكِنُ التَّحَقُّقِ بِنَصْبِ وَصِيٍّ آخَرَ مَكَانَ الْمَيِّتِ او د موصي دا مقصد ممکن الثبوت [هم] دی د مړه وصي پر ځای د بل وصي په ټاکلو سره وَلَوْ أَنَّ الْمَيِّتَ مِنْهُمَا أَوْصٰى إِلَى الْحَيِّ او که چيري له دې دواړو وصيانو څخه مړ کېدونکی وصي وصيت وکړي و ژوندي [پاته] وصي ته [يعني ژوندی وصي د ځان وصي جوړ کړي] فَلِلْحَيِّ أَنْ يَتَصَرَّفَ وَحْدَهُ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو د ظاهر روايت مطابق ژوندي وصي لره دا اختيار سته چي تنها [يوازي] تصرف وکړي بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا أَوْصٰى إِلَى شَخْصٍ آخَرَ لکه په هغه صورت

کله چې هغه [مړ کېدونکي وصي] بل چا ته وصيت کړی وي [يعني له ژوندي وصي شخه بغير بل څوک يې د ځان وصي جوړ کړی وي نو په دې صورت کې هم هر وصي تنها د تصرف کولو اختيار سته] وَلَا يَحْتَاجُ الْقَاضِي إِلَى نَصْبِ وَصِيٍّ آخَرَ او قاضي د بل وصي ټاکلو ته ضرورت مند نه دی [يعني په مذکوره صورت کې دې ته ضرورت نسته چې قاضي بل وصي مقرر کړي] لِأَنَّ رَأْيَ الْمَيِّتِ بَاقٍ حُكْمًا بِرَأْيِ مَنْ يَخْلُفُهُ ځکه چې د مړي [مړه وصي] رايه د هغه د خليفه [ژوندي وصي] په رايې سره حکماً باقي پاته ده وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَنْفَرِدُ بِالتَّصَرُّفِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله شخه روايت دی چې ژوندی وصي تنها تصرف نه سي کولای لِأَنَّ الْمُوصِيَ مَا رَضِيَ بِتَصَرُّفِهِ وَحْدَهُ ځکه چې موصي تنها د هغه په تصرف سره نه دی راضي سوی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى إِلَى غَيْرِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې مړه وصي بل چا ته وصيت کړی وي [يعني له ژوندي وصي شخه بغير بل څوک يې وصي ټاکلی وي] لِأَنَّهُ يَنْفُذُ تَصَرُّفُهُ بِرَأْيِ الْمُثَنَّى ځکه چې [په دې صورت کې] د ژوندي وصي تصرف د دوو کسانو په رايه سره نافذېږي [يو ژوندی وصي او دويم هغه بل ټاکل سوی وصي] كَمَا رَضِيَهُ الْمُتَوَفَّى لکه څرنګه چې وفات سوی موصي هم په دې راضي سوی وو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي دوه وصيان ټاکلي وي او بيا له هغوی شخه يو وصي مړ سي، نو قاضي ته پکار دي چې د هغه پر ځای بل وصي مقرر کړي او دا حکم خو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز بښکاره دی چې د دوی په نېز تنها يو وصي تصرف نه سي کولای. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز که څه هم يو وصي تنها تصرف کولای سي لېکن موصي د دوو وصيانو په ټاکلو سره دا اراده کړې وه چې تر ما وروسته به زما په مال او حقوقو کې دوه کسان تصرف کونکی وي او بغير له ستونزې شخه د مړه وصي پر ځای د بل وصي په مقرر کولو سره دا کار ممکن هم دی. نو ځکه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم حکم دا دی چې د مړه وصي پر ځای به بل وصي مقرر کړي چې د هغه او موصي په حق کې مصلحت او شفقت متحقق سي.

ولوأن الميت إلخ: د دې حاصل دا دی چې که يو سړي دوه کسان وصيان ټاکلي وي (مثلاً خالد او حامد). بيا له هغوی شخه يو وصي (مثلاً خالد) مړ سي او د مرګ په وخت کې هغه خپل ملګری يعني بل وصي (حامد) خپل وصي مقرر کړي او خپل ټول اختيارات هغه ته وسپاري. نو د ظاهر روايت مطابق

ژوندی وصي (حامد) تنها تصرف کولای سي او قاضي ته د بل وصي د مقررولو څه ضرورت نسته: ځکه کوم وصي چي ژوندی دی (یعني حامد). د هغه په رایه کي د مړه وصي رایه هم شامله ده او په دې حواله سره د هغه مقصد په کامله توګه حاصل سوی دی. او که چیري مړه وصي د ژوندي وصي پر ځای بل څوک خپل وصي مقرر کړي وای. نو صحیح به وای. لهذا کله چي یې خپل ملګری وصي مقرر کړی. نو هم به وصیت صحیح وي.

وعن أبي حنیفة إلخ: له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله یو روایت دا دی چي ژوندی وصي (حامد) تنها تصرف نه سي کولای: ځکه موصي فقط د یوه وصي په تصرف سره نه دی راضي سوی. ها! که چیري مړه وصي (خالد) له ژوندي وصي څخه بغیر بل څوک وصي جوړ کړی وي. نو بیا تصرف نافذیږي: ځکه اوس په هغه کي د دوو کسانو رایه شامله سوې ده. لهذا څرنګه چي موصي ابتداءً د دوو کسانو په رایه راضي سوی وو. همداسي به هغه انتهاءً هم د دوو کسانو په رایه راضي وي او د هغه مقصد به حاصل سي.

## وصي د خپل مرګ په وخت کي بل څوک وصي ټاکلای سي، که نه؟

وَإِذَا مَاتَ الْوَصِيُّ وَأَوْصَىٰ إِلَىٰ آخَرَ او کله چي وصي مړ سي او بل چا ته وصیت وکړي (یعني پر خپل ځای بل څوک وصي جوړ کړي) فَهُوَ وَصِيُّهُ فِي تَرِكَتِهِ وَتَرِكَةِ الْمَيِّتِ الْأَوَّلِ عِنْدَنَا نو هغه د ده وصي کیږي د ده په میراث کي او د اول مړي (موصي) په میراث کي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَكُونُ وَصِيًّا فِي تَرِكَةِ الْمَيِّتِ الْأَوَّلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي هغه د اول مړي په میراث کي نه وصي کیږي اِعْتِبَارًا بِالتَّوْكِيلِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ د ژوند په حالت کي پر توکیل (وکیل جوړولو) باندي په قیاس کولو سره الْجَامِعُ بَيْنَهُمَا أَنَّهُ رَضِيَ بِرَأْيِهِ لَا بِرَأْيِ غَيْرِهِ او د دې دواړو (ایصاء او توکیل) تر مینځ جامع شی دا دی چي اول مړي (موصي) د خپل وصي په رایه راضي سوی دی. نه د بل چا په رایه وَلَنَا: أَنَّ الْوَصِيَّ يَتَصَرَّفُ بِوِلَايَةٍ مُنْتَقِلَةٍ إِلَيْهِ او زموږ دلیل دا دی چي وصي د هغه ولایت په سبب تصرف کوي کوم چي (د موصي له طرفه) وصي ته منتقل سوی دی فَيَمْلِكُ الْإِيصَاءَ إِلَىٰ غَيْرِهِ نو ځکه هغه به د بل وصي جوړولو ملکیت (اختیار) لري كَالْجَدِّ لکه نیکه أَلَا يَرَىٰ أَنَّ الْوِلَايَةَ الَّتِي كَانَتْ ثَابِتَةً لِلْمُوصِي آیا نه ګوري چي کوم ولایت د موصي لپاره ثابت وي تَنْتَقِلُ إِلَى الْوَصِيِّ فِي الْمَالِ وَإِلَى الْجَدِّ فِي النَّفْسِ هاغه

ولايت د مال په سلسله کې وصي ته منتقل کیږي او په نفس کې نیکه ته [منتقل کیږي] ثُمَّ الْجَدُّ قَائِمٌ مُقَامَ الْأَبِ فِيمَا انْتَقَلَ إِلَيْهِ بیا نیکه د پلار قائم مقام دی په هغه ولایت کې کوم چې نیکه ته منتقل سي فَكَذَا الْوَصِيُّ نو همداسي وصي [هم] دی.

**اللغات**: ﴿توکیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: وکیل کول، وکیل جوړول. ﴿إیصاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: یو چا ته وصیت کول، وصي جوړول (داسي څوک مقرر کول کوم چې وصیت نافذ او پوره کړي)، ﴿جد﴾ نیکه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زید مثلاً خالد خپل وصي جوړ کړی او حامد یې هم وصي جوړ کړی، بیا خالد مړ سو او هغه هم د مرګ په وخت کې حامد خپل وصي جوړ کړی، نو زموږ په نېز حامد د خالد هم وصي کیږي او د اول موصي یعني د زید هم وصي کیږي، لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حامد صرف د دویم موصي یعني د خالد وصي کیږي، لیکن د اول موصي یعني د زید نه وصي کیږي؛ امام شافعي رَحِمَهُ الله دا د حالتِ حیات پر توکیل قیاس کړی دی مثلاً که زید په خپل ژوند کې حامد وکیل جوړ کړي او خالد بیا حامد وکیل جوړ کړي، نو دا توکیل نه صحیح کیږي؛ ځکه چې زید صرف د خالد په رایه راضي سوی دی، نه د حامد. نو همداسي په مذکوره مسئله کې هم چې کله زید هغوی دواړه وصیان ټاکلي دي، نو هغه به صرف د یوه په وصایت راضي نه وي.

ولنا إلخ: دا زموږ دلیل دی، حاصل یې دا دی چې وصي د هغه ولایت په ذریعه تصرف کوي کوم ولایت چې هغه ته د موصي له طرفه منتقل سوی او حاصل سوی دی، او څرنګه چې موصي ته د وصي جوړولو (وصي ټاکلو) حق سته (چې یو څوک خپل وصي جوړ کړي)، نو ځکه دویم وصي ته به هم د وصي جوړولو حق وي، د مثال په توګه نیکه د نکاح په ولایت کې د پلار قائم مقام دی او پلار ته دا حق سته چې د خپل بچي د نکاح کولو لپاره وصي وټاکي، لهذا نیکه ته هم دا حق سته چې د دې خپل لمسي د نکاح لپاره وصي وټاکي، نو همدغسي د مال وغیره په سلسله کې به هم دویم وصي ته د بل وصي د ټاکلو حق او اجازه وي. (احسن الهدایه)

## د مذکوره دلیل نور وضاحت

وَهٰذَا لِأَنَّ الْإِيصَاءَ إِقَامَةُ غَيْرِهِ مُقَامَهُ فِيمَا لَهُ وِلَايَتُهُ او دا ځکه چې ایصاء [وصي جوړول] بل څوک خپل قائم مقام جوړول دي په هغه شي کي چې موصي لره د هغه ولایت سته وَعِنْدَ الْمَوْتِ كَانَتْ لَهُ وِلَايَةٌ فِي التَّرِكَتَيْنِ او د مرګ په وخت کي موصي لره په دواړو میراثونو کي ولایت سته فَيُنَزَّلُ الثَّانِي مَنْزِلَتَهُ فِيهِمَا لهذا دویم وصي به په دواړو میراثونو کي د اول وصي په منزله ګرځول کیږي وَلِأَنَّهُ لَمَّا اسْتَعَانَ فِي ذٰلِكَ مَعَ عِلْمِهِ أَنَّهُ قَدْ تَعْتَرِيهِ الْمَنِيَّةُ قَبْلَ تَتْمِيمِ مَقْصُودِهِ بِنَفْسِهِ او ځکه کله چې موصي په دې هکله مدد طلب کړی دی سره د دې چې موصي په دې خبر دی چې وصي ته مرګ پېښېدلای سي د موصي د مقصود له پوره کېدلو څخه مخکي وَهُوَ تَلَافِي مَا فَرَطَ مِنْهُ او د موصي مقصود د خپل هغه کوتاهي [او لاپروایی] تلافي ده کوم چې له موصي څخه صادره سوې ده صَارَ رَاضِيًا بِإِيصَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ نو موصي په دې راضي سو چې هغه [وصي] بل څوک وصي جوړ کړي بِخِلَافِ الْوَكِيلِ په خلاف د وکیل لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ حَيٌّ ځکه چې مؤکل [وکیل جوړونکی] ژوندی دی يُمْكِنُهُ أَنْ يَحْصُلَ مَقْصُودَهُ بِنَفْسِهِ چې د هغه لپاره دا ممکنه ده چې خپل مقصود په خپله حاصل کړي فَلَا يَرْضٰى بِتَوْكِيلِ غَيْرِهِ وَالْإِيصَاءُ إِلَيْهِ لهذا مؤکل به د بل چا په وکیل جوړولو او د هغه په وصي جوړولو راضي نه وي [چې وکیل بل څوک وکیل یا وصي جوړ کړي].

**اللغات**: ﴿إیصاء﴾ د افعال د باب مصدر دی، د تېر عبارت په لغاتو کي یې وضاحت وسو. ﴿يُنَزَّل﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: شوه کول (صحیح همدا ده چې د تفعیل له باب څخه دی). يُنَزَّل منزلةً: یو شی د بل په درجه کي شوه کول (د بل شي په منزله ګرځول)، یو څه د بل څه پر ځای اېښوول. د بل شي قائم مقام کول. ﴿الْمَنْزِلَة﴾ مکان او مرتبه، درجه. ﴿استعان﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د مدد طلب کول (مرسته غوښتل)، مدد اخیستل. ﴿تعتریه﴾ د افتعال د باب مضارع ده: پېښېدل. ﴿الْمَنِيَّة﴾ مرګ (مرینه)، جمع: مَنَايَا. ﴿تتمیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پوره کول، پوره کېدل (بشپړېدل). ﴿فَرَطَ﴾ د نصر د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي نقل سوي دي: مخکي کېدل. کوتاهي کول. له حد څخه تېرېدل. تېزي کول او تکلیف ورکول وغیره. او کله چې یې په صله کي مِنْ ذکر سي لکه

دلته. نو معنیٰ یې ده: له چا څخه مخکې یو کوتاهي او لا پروایي کېدل. بغیر له سوچ او احساسه څخه صادرېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کې د مخکینې دلیل نور وضاحت کوي فرمایي چې د وصي جوړولو (وصي ټاکلو) مطلب دا دی چې موصي ته د کومو شیانو ولایت او اختیار حاصل دی.موصي په هغوی کې بل څوک (وصي) خپل قائم مقام جوړوي.

او په مذکوره مسئله کې چې کله وصي (خالد) مړ سو. په هغه وخت کې وصي ته په دواړو میراثونو کې ولایت او اختیار حاصل وو یعني په خپل میراث کې هم او د موصي په میراث کې هم. نو هغه دویم وصي (حامد) به د اول وصي (خالد) په درجه ګرځول کیږي او په دواړو میراثونو کې به ولایت ورکول کیږي.

ولأنه لما استعان إلخ: دویمه خبره دا هم ده چې کله موصي یو کس خپل وصي جوړ کړی. نو په دغه ایصاء سره د موصي مقصد دا دی چې د خپل مال په هکله چې له موصي څخه کومه کوتاهي او لا پروایي صادره سوې ده. په وصي سره د هغه تلافي وسي. حالانکې دا هم کېدلای سي چې د موصي دغه مقصد پوره نه سي یعني وصي مړ سي، او موصي هم په دې خبر دی چې که دا وصي مړ سي نو زما مقصد به پوره نه سي، لېکن په دې د خبرېدلو باوجود پر ایصاء د هغه اقدام کول د دې خبرې دلیل دی چې موصي په دې خبره بالکل راضي دی چې وصي له خپل ځان څخه بغیر بل څوک وصي جوړ کړي او د موصي مقصود پوره سي. (یا په بله وینا دا چې کله موصي په دې خبر دی چې کېدلای سي زما وصي مړ سي او زما مقصد به پوره نه سي. خو بیا هم هغه وصي جوړوي. نو د دې واضح مقصد دا دی چې موصي د خپل وصي په دې فعل سره راضي دی چې هغه یو څوک خپل وصي مقرر کړي).

او پاتې سوه د وکیل مسئله نو هغه جلا ده: ځکه چې مؤکل خپله ژوندی دی او هغه خپل مقاصد خپله هم حاصلولای سي، نو کله چې هغه یو څوک (خالد) خپل وکیل جوړ کړی دی. نو هغه په دې سره راضي نه دی چې دا وکیل (خالد) بیا بل څوک (حامد) په مینځ کې راولي او خپل وکیل یې جوړ کړي یا د مرګ په وخت کې بل څوک خپل وصي جوړ کړي، نو په دې حواله سره په ایصاء او توکیل کې فرق دی، لهذا ایصاء پر توکیل قیاسول قیاس مع الفارق دی.

## د موصي اختیارات وصي ته حاصلېږي (وصي د موصي خلیفه او نائب دی)

قَالَ: وَمُقَاسَمَةُ الْوَصِيِّ الْمُوصٰى لَهُ عَنِ الْوَرَثَةِ جَائِزَةٌ فرمایي: او د وصي تقسیم کړل د موصیٰ لهٗ سره د وارثانو له طرفه جائز دی وَمُقَاسَمَتُهُ الْوَرَثَةَ عَنِ الْمُوصٰى لَهُ بَاطِلَةٌ او د وصي تقسیم کول د وارثانو سره د موصی لهٗ له طرفه باطل دی لِأَنَّ الْوَارِثَ خَلِيفَةُ الْمَيِّتِ ځکه چې وارث د مړي خلیفه دی حَتّٰى يَرُدَّ بِالْعَيْبِ همدا وجه ده چې وارث د عیب په وجه [مبیع] واپس کولای سي وَيُرَدُّ عَلَيْهِ بِهِ او د عیب په وجه پر وارث [مبیع] واپس کېدلای سي وَيَصِيرُ مَغْرُورًا بِشِرَاءِ الْمُوَرِّثِ [همدارنګه] د مورث [مړي] د رانیولو په وجه وارث مغرور [دوکه سوی] ګرځي وَالْوَصِيُّ خَلِيفَةُ الْمَيِّتِ أَيْضًا او وصي هم د مړي خلیفه دی فَيَكُونُ خَصْمًا عَنِ الْوَارِثِ إِذَا كَانَ غَائِبًا نو که وارث غائب وي نو وصي د هغه له طرفه خصم کېدلای سي فَصَحَّتْ قِسْمَتُهُ عَلَيْهِ نو ځکه پر وارث د وصي تقسیم صحیح دی حَتّٰى لَوْ حَضَرَ وَقَدْ هَلَكَ مَا فِي يَدِ الْوَصِيِّ همدا وجه ده که وارث حاضر سي په داسې حال کې چې هغه مال هلاک سوی وي کوم چې د وصي په قبضه کې وي لَيْسَ لَهُ أَنْ يُشَارِكَ الْمُوصٰى لَهُ نو وارث ته دا حق نسته چې د موصیٰ لهٗ سره [په مال کې] شریک سي.

**اللغات**: ﴿مقاسمة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: وېش او تقسیم کول، تقسیمول او حصه جلا کول.

﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صیغه ده: دوکه کړی سوی (چا ته چې دوکه ورکول سوې وي).

﴿خصم﴾ خصومت کونکی. د حق په هکله دعویٰ پورته کونکی او نزاع کونکی. مدعي او مدعیٰ علیه دواړو باندې د دې لفظ اطلاق کېږي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې وصي د موصي د وارثانو له طرفه د موصیٰ لهٗ سره د میراث تقسیم او وېش کولای سي، لېکن وصي ته دا حق نسته چې د موصیٰ لهٗ له طرفه د هغه د نائب په توګه د وارثانو سره تقسیم وکړي؛ ځکه چې موصیٰ لهٗ د مړي (مورث) خلیفه نه دی [illegible] وارث او وصي دواړه د مړي (مورث) خلیفه دي، همدا وجه ده که مړي یو شی رانیولی وي او بیا په [illegible] کې یو عیب ومونډل سي. نو وارث د دې عیب په وجه هغه شی (مبیع) بائع ته واپس کولای سي. همدارنګه که مورث یو شی خرڅ کړی وي او بیا هغه عیبجن وخېژي. نو د عیب په وجه هغه شی وارث ته واپس کېدلای سي، همدارنګه که مړي یو مینځه رانیولې وي او د ده تر مرګ وروسته هغه مینځه د یو

چا په حصه کي راسي او له وارث څخه د هغې يو بچى پيدا سي لېکن بيا يو بل څوک په هغه مينځه دعوىٰ وکړي چي دا څو زما مينځه ده او خپله دعوىٰ ثابته کړي، نو هغه بچى آزاديږي، لېکن وارث ته به د هغه قيمت ورکول کيږي؛ ځکه بائع مړي ته دوکه ورکړې ده. لهذا دا دوکه د وارث په حق کي هم ثابتيږي؛ ځکه چي وارث هم د مړي خليفه دى او وصي هم د مړي خليفه دى او د وارث د ناموجود والي په صورت کي وصي ته دا حق سته چي د وارث له طرفه تقسيم وکړي او د هغه تقسيم صحيح دى. همدا وجه ده چي په تقسيم کي وصي کوم مال د غائب وارث لپاره اخيستى وي که چيري هغه هلاک سي او بيا وارث حاضر سي، نو بيا وارث ته دا حق نسته چي د موصىٰ لهٗ سره په مال کي شريک سي.

## د موصىٰ لهٗ حيثيت (د مړي خليفه وصي دى، نه موصىٰ لهٗ)

أَمَّا الْمُوصَى لَهُ فَلَيْسَ بِخَلِيفَةٍ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ کوم چي موصىٰ لهٗ دى نو هغه په هر اعتبار سره د مړي خليفه نه دى لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِسَبَبٍ جَدِيدٍ ځکه چي موصىٰ لهٗ د نوي سبب په ذريعه د وصيت [موصىٰ به] مالک سوى دى وَلِهَذَا لَا يَرُدُّ بِالْعَيْبِ وَلَا يُرَدُّ عَلَيْهِ په همدې وجه نه موصىٰ لهٗ د عيب په وجه هغه [موصىٰ به] واپس کولاى سي او نه پر موصىٰ لهٗ واپس کېدلاى سي وَلَا يَصِيرُ مَغْرُورًا بِشِرَاءِ الْمُوصِي [همدارنګه] د موصي په رانيولو سره هغه مغرور [دوکه سوى] نه ګرځي فَلَا يَكُونُ الْوَصِيُّ خَلِيفَةً عَنْهُ عِنْدَ غَيْبَتِهِ نو د موصىٰ لهٗ د غائبوالي په وخت کي به وصي د هغه خليفه نه کيږي حَتَّى لَوْ هَلَكَ مَا أُفْرِزَ لَهُ عِنْدَ الْوَصِيِّ تر دې چي که هغه مال هلاک سي کوم چي [په تقسيم کي] د وصي سره د موصىٰ لهٗ لپاره را جلا کړى سوى وي كَانَ لَهُ ثُلُثُ مَا بَقِيَ نو د موصىٰ لهٗ لپاره د ما بقي مال ثلث دى لِأَنَّ الْقِسْمَةَ لَمْ تَنْفُذْ ځکه چي تقسيم نافذ سوى دى غَيْرَ أَنَّ الْوَصِيَّ لَا يَضْمَنُ خو [په دې صورت کي] وصي نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ أَمِينٌ فِيهِ ځکه چي هغه په دې باره کي امين دى وَلَهُ وِلَايَةُ الْحِفْظِ فِي التَّرِكَةِ او هغه لره په ميراث کي د حفاظت ولايت سته فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ بَعْضُ التَّرِكَةِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ نو دا داسي سو لکه تر تقسيم مخکي چي د ميراث څه حصه هلاکه سي فَيَكُونُ لَهُ ثُلُثُ الْبَاقِي نو د موصىٰ لهٗ لپاره به د پاته مال ثلث وي لِأَنَّ الْمُوصَى لَهُ شَرِيكُ الْوَارِثِ ځکه چي موصىٰ لهٗ د وارث شريک دى فَيَتْوَى مَا تَوَى مِنَ الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ عَلَى الشَّرِكَةِ لهذا له مال مشترک څخه چي کومه

حصه هلاکه سي هغه به پر شرکت هلاکیږي وَيَبْقَى مَابَقِيَ عَلَى الشَّرِكَةِ او کوم چې پاته سي هغه به [هم] پر شرکت پاتیږي.

**اللغات**: ﴿أفرز﴾ د افعال د باب ماضي ده: د بل چا له مال څخه خپل مال جلا کول. علیحده کول.

﴿یتوىٰ﴾ د سمع د باب مضارع ده: هلاکېدل. ضایع کېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې موصیٰ لهٗ د مړي (موصي) خلیفه نه دی لکه څرنګه چې وصيٰ د مړي خلیفه دي: ځکه چې موصیٰ لهٗ د یو نوي سبب یعني د وصیت په ذریعه د موصیٰ به مالک سوی دی. او هغه لره خو نه قدیم ملکیت حاصل دی او نه هغه لره څه ابدي سبب سته. همدا وجه ده که په موصیٰ به کي عیب ولیدل سي. نو نه موصیٰ لهٗ هغه شی د موصي وارثانو ته واپس کولای سي. او نه د موصي مشتري د عیب په وجه هغه شی موصیٰ لهٗ ته واپس کولای سي. همدارنګه موصیٰ لهٗ د موصي په شراء سره مغرور هم نه ګرځي (صورت یې مخکي ذکر سو).

همدا وجه ده که چیري موصیٰ لهٗ غائب وي او وصي د وارثانو سره د مړي (موصي) میراث تقسیم کړي او د موصیٰ لهٗ حصه را جلا کړي او بیا هغه حصه هلاکه سي. نو په مابقی میراث کي موصیٰ لهٗ ته ثلث (دریمه حصه) حاصلیږي: ځکه چې دا تقسیم د موصیٰ لهٗ په نا موجودیت کي سوی وو. لهذا دا ګردسره نافذ سوی نه وو. او کله چې تقسیم نافذ سوی نه دی نو ښکاره خبره ده چې د موصیٰ لهٗ چې کوم حق دی یعني د میراث ثلث هغه به ورته حاصلیږي (ځکه مخکي ذکر سوه چې د موصیٰ لهٗ حق د میراث په ثلث کي دی).

غیرأن الوصی إلخ: د دې حاصل دا دی چې د وصي سره چې کوم د موصیٰ لهٗ لپاره راجلا کړی سوی مال او حصه هلاکه سوې ده. وصي د هغه نه ضامن کیږي (یعني د هغه ضمان [تاوان] پر وصي نه لازمیږي): ځکه وصي د دغه مال په باره کي امین دی او هغه ته د مال د حفاظت کولو ولایت حاصل دی. او پر امین ضمان نه لازمیږي. نو ځکه پر وصي به هم ضمان نه لازمیږي. د دې مثال داسي دی لکه تر تقسیم مخکي چې د میراث څه حصه هلاکه سي. نو موصیٰ لهٗ ته د مابقی مال ثلث حاصلیږي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي چې کوم د موصیٰ لهٗ لپاره را جلا کړی سوی مال هلاک سوی دی. هغه به هم له میراث څخه هلاک شمېرل کیږي او موصیٰ لهٗ ته به د مابقی میراث ثلث ورکول کیږي. او کوم څه مال چې هلاک سوی دی هغه به مشترک هلاک ګڼل کیږي او کوم چې پاته دی هغه به هم په مشترکه توګه باقي ګڼل کیږي: ځکه چې موصیٰ لهٗ په میراث کي د وارثانو سره شریک دی.

## که وصي په تقسیم کې د غائب موصی لهٔ حصه را جلاکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: فَإِنْ قَاسَمَ الْوَرَثَةَ فرمايي: نو که وصي د وارثانو سره تقسيم وکړي وَأَخَذَ نَصِيبَ الْمُوصٰى لَهٗ او وصي د موصیٰ لهٗ حصه واخلي فَضَاعَ بيا هغه [څني] ضایع سي رَجَعَ الْمُوصٰى لَهٗ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ نو موصیٰ لهٗ به د مابقي مال په ثلث سره رجوع کوي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی.

**اللغات**: ﴿قَاسَمَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: وېش او تقسیم کول. تقسیمول او خپله حصه اخیستل. ﴿نصیب﴾ حصه، برخه.

**تشریح**: دا مسئله اوس څه مخکي بیان سوه، صرف دلته عبارت د جامع صغیر دی او هلته عبارت د علامه مرغیناني رَحِمَهُ الله دی، نور فرق یې نسته.

## که د موصي د حج لپاره را جلا کړی سوی مال د وصي سره هلاک سي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ كَانَ الْمَيِّتُ أَوْصٰى بِحَجَّةٍ فرمايي: او که چیري مړي د حج وصیت کړی وي فَقَاسَمَ الْوَرَثَةَ نو [دمړي] وصي د وارثانو سره تقسیم وکړی فَهَلَكَ مَا فِي يَدِهٖ بیا هغه مال هلاک سو کوم چي د وصي په قبضه کي وو حُجَّ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ نو د مړي له طرفه به د مابقی مال له ثلث څخه حج کول کیږي [دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دی] وَكَذٰلِكَ إِنْ دَفَعَهُ إِلٰى رَجُلٍ لِيَحُجَّ عَنْهُ فَضَاعَ فِي يَدِهٖ او همدارنګه که وصي یو سړي ته دا مال ورکړی وي د دې لپاره چي هغه د مړي له طرفه حج وکړي بیا دا مال د هغه سړي په قبضه کي ضایع سي [نو هم دغه حکم دی] وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: إِنْ كَانَ مُسْتَغْرِقًا لِلثُّلُثِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که هغه [هلاک سوی مال] ثلث لره غرقونکی وي [یعني هغه پوره ثلث وي او د هغه په اخیستلو کي ټوله ثلث ځي] لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ نو وصي به په هیڅ شي سره رجوع نه کوي [یعني له مابقی میراث څخه به هیڅ نه اخلي] وَإِلَّا يَرْجِعُ بِتَمَامِ الثُّلُثِ کنې [یعني که ثلث لره مستغرق نه وي نو] په پوره ثلث سره به رجوع کوي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: لَا يَرْجِعُ بِشَيْءٍ او امام

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله مسئلة المتن، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۶]

محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په هيڅ شي سره به رجوع نه کوي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ حَقُّ الْمُوصِیْ ځکه چي تقسيم د موصي حق دی وَلَوْ أَفْرَزَ الْمُوصِیْ بِنَفْسِهِ مَالًا يُخْرَجُ عَنْهُ او که موصي خپله مال جلا کړی وي د دې لپاره چي [په هغه سره] د موصي له طرفه حج وکړی سي فَهَلَكَ بيا هغه مال هلاک سي لَا يَلْزَمُهُ شَیْءٌ وَبَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو پر موصي هيڅ شی نه لازميږي او وصيت باطليږي فَكَذَا إِذَا أَفْرَزَهُ وَصِيُّهُ الَّذِیْ قَامَ مَقَامَهُ نو همداسي کله چي د موصي هغه وصي مال جلا کړی وي کوم چي د موصي قائم مقام دی [نو هم به هيڅ شی نه لازميږي او وصيت به باطليږي].

**اللغات:** ﴿مستغرق﴾ د استفعال د باب فاعل دی: ډوبونکی. غرقونکي (لاندي کونکی)، احاطه کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که زيد مثلاً دا وصيت وکړي چي زما له مال څخه دي زما له طرفه حج وکړی سي او بيا هغه مړ سي. بيا د هغه (زيد) وصي د هغه د وارثانو سره د ميراث تقسيم وکړي او د مړي (زيد) له طرفه د حج کولو لپاره ثلث مال را جلا کړي. خو بيا دا مال د وصي سره هلاک سي. يا وصي يو بل چا ته د حج کولو لپاره دا مال ورکړي او بيا د هغه سره دا مال هلاک سي. نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي د مړي چي کوم ټوله ميراث دی يعني له دغه هلاک سوي مال څخه بغير چي کوم مال پاته دی. د هغه په ثلث سره به د مړي له طرفه حج کول کيږي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي کوم مال چي وصي جلا کړی وو، که هغه پوره ثلث وي چي د هغه په اداء کولو کي ټوله ثلث ځي، نو بيا وصي ته له پاته ميراث څخه د يوې روپې د اخيستلو حق هم نسته، ليکن که هغه مال تر ثلث کم وي، نو څومره مقدار چي کم وي، بس صرف هغومره مقدار به مال اخيستل کيږي د دې لپاره چي ثلث پوره سي.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي برابره ده وصي د ثلث په اندازه مال جلا کړی وي او که تر هغه يې کم جلا کړی وي، په هر صورت کي له ما بقي ميراث څخه وصي ته د مال اخيستلو حق نسته: ځکه چي تقسيم کول د موصي حق دی او که چيري خپله موصي تقسيم وکړي او د خپل حج لپاره مال را جلا کړي او بيا هغه مال هلاک سي، نو وصيت باطليږي او موصي لره دوباره د مال اخيستلو حق نه پاتيږي. لهذا کله چي خپله د موصي لپاره دوباره د مال اخيستلو حق نسته، نو د هغه د وصي لپاره به هم دا حق نه وي: ځکه چي وصي صرف د موصي نائب او د هغه قائم مقام دی.

## د امام ابو یوسف او امام صاحب رَحِمَهُ الله دلائل

وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ مَحَلَّ الْوَصِيَّةِ الثُّلُثُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې د وصیت محل ثلث [دریمه حصه] ده فَيَجِبُ تَنْفِيذُهَا مَا بَقِيَ مَحَلُّهَا لهذا تر څو چې د وصیت محل [ثلث] پاته وي تر هغه وخته پورې د وصیت نافذول واجب دي وَإِذَا لَمْ يَبْقَ او کله چې محل باقي پاته نه سي بَطَلَتْ نو وصیت باطلیږي لِفَوَاتِ مَحَلِّهَا د محل د فوتېدلو په وجه وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْقِسْمَةَ لَا تُرَادُ لِذَاتِهَا بَلْ لِمَقْصُودِهَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې تقسیم بذات خود نه مرادیږي بلکي د خپل مقصود په وجه مرادیږي وَهُوَ تَأْدِيَةُ الْحَجِّ او هغه [د تقسیم مقصود] د حج اداء کول دي فَلَمْ تُعْتَبَرْ دُونَهُ نو ځکه له هغه [حج اداء کولو] څخه بغیر به تقسیم معتبر نه وي وَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ الْقِسْمَةِ او دا داسې سو لکه کله چې تر تقسیم مخکې مال هلاک سي فَيُحَجُّ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ نو د ما بقی مال په ثلث سره حج کول کیږي وَلِأَنَّ تَمَامَهَا بِالتَّسْلِيمِ إِلَى الْجِهَةِ الْمُسَمَّاةِ او ځکه چې د تقسیم بشپړتیا د هغه جهت وطرف ته په ورسپارلو سره کیږي کوم چې [د موصي له طرفه] متعین سوی دی [یعني تقسیم هغه وخت تامیږي کله چې د موصي په متعین کړده جهت کې مال صرف کړی سي] إِذْ لَا قَابِضَ لَهَا ځکه چې د هغه جهت لپاره خو هیڅ قابض نسته فَإِذَا لَمْ يُصْرَفْ إِلَى ذَلِكَ الْوَجْهِ لهذا کله چې مال هغه وجه [جهت] ته صرف نه کړی سي [یا په بله وینا دا چې کله مال په دې مذکوره طریقه سره صرف نه کړی سي] لَمْ يَتِمَّ نو تقسیم به پوره نه سي فَصَارَ كَهَلَاكِهِ قَبْلَهَا نو دا داسې سو لکه تر تقسیم مخکې مال هلاکېدل.

**اللغات**: ﴿تنفیذ﴾ د تفعیل مصدر دی: نافذول. ﴿تأدیة﴾ مخکنی صیغه ده: اداء کول. ﴿مسمّاة﴾ د تفعیل له بابه د واحد مؤنث مفعول صیغه ده: نومول سوی. متعین سوی. ټاکل سوی.

**تشریح**: د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل خو مخکې تېر سو. دلته د امام ابو یوسف او امام صاحب رَحِمَهُمَا الله دلیلونه بیانوي: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې دغه د حج وصیت دی او د وصیت د نافذېدلو محل ثلث (دریمه حصه) ده. لهذا تر څو چې د مال ثلث باقي پاته وي. تر هغه وخته پورې به د وصیت نافذول واجب وي. او کله چې د وصیت د نافذېدلو محل (ثلث) باطل سي. نو وصیت به باطلیږي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رحمه الله د دلیل حاصل دا دی چې تقسیم بذات خود مطلوب نه دی بلکې په تقسیم سره چې کوم څه مقصود وي د هغه حاصلېدل او ترلاسه کېدل د تقسیم اصل مطلوب دی او دلته اصلي مطلوب د حج اداء کول دي. نو تر څو چې حج اداء سوی نه وي. تر هغه وخته به تقسیم لره اعتبار نه وي او داسي به ګڼل کیږي چې تر اوسه هیڅ تقسیم سوی نه دی. نو ځکه د مابقی مال په ثلث سره به حج کول کیږي.

او بل دا چې د تقسیم تکمیل او بشپړتیا هغه وخت کیږي کله چې مال په هغه جهت کي صرف کړی سي او ورسپارل سي کوم جهت چې موصي متعین کړی وي. یعني د حج په اداینه کي مال صرف کړی سي ځکه د حج اداینه پر مال نه سي قابض کېدلای. لېکن څرنګه چې دلته مال هلاک سوی دی او د موصي په متعین کرده جهت کي هغه نه دی صرف کړی سوی. نو تقسیم تام نه سو. لهذا دغه تقسیم لره به اعتبار نه وي. او دا داسي سو لکه تر تقسیم مخکي د مال هلاکېدل. او په داسي صورت کي د مابقی مال په ثلث سره حج کول کیږي، نو همداسي به دلته هم کول کیږي.

## که قاضي د وارثانو په حکم میراث تقسیم کړي او ثلث د غائب موصی لهٔ لپاره جلا کړي (حکم)

قَالَ: وَمَنْ أَوْصٰى بِثُلُثِ أَلْفِ دِرْهَمٍ فرمایي: او چا چې د زرو درهمو د ثلث [دریمي حصې] وصیت وکړی فَدَفَعَهَا الْوَرَثَةُ إِلَى الْقَاضِيْ بیا وارثانو هغه زر درهمه قاضي ته ورکړل فَقَسَمَهَا وَالْمُوْصٰى لَهٗ غَائِبٌ نو قاضي هغه تقسیم کړل په داسي حال کي چې موصی لهٔ غائب دی فَقِسْمَتُهُ جَائِزَةٌ نو د قاضي تقسیم جائز دی لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ صَحِيْحَةٌ ځکه چې دا وصیت صحیح دی وَلِهٰذَا لَوْ مَاتَ الْمُوْصٰى لَهٗ قَبْلَ الْقَبُوْلِ همدا وجه ده که موصی لهٔ [د وصیت] له قبلولو څخه مخکي مړ سي تَصِيْرُ الْوَصِيَّةُ مِيْرَاثًا لِوَرَثَتِهٖ نو وصیت د هغه د وارثانو لپاره میراث ګرځي وَالْقَاضِيْ نُصِبَ نَاظِرًا. او قاضي [د مسلمانانو د اُمورو لپاره] د نګران [او مصلح] په توګه ټاکل سوی دی لَا سِيَّمَا فِيْ حَقِّ الْمَوْتٰى وَالْغُيَّبِ خصوصاً د مړو او د غائبو کسان په حق کي وَمِنَ النَّظَرِ إِفْرَازُ نَصِيْبِ الْغَائِبِ وَقَبْضُهٗ او له نظر [نګرانی] څخه د غائب د حصې جلا کول او پر هغه قبضه کول دي [یعني په تقسیم کي د غائب موصی لهٔ حصه را جلا کول او قبضه پرې کول دا هم له نظر او مصلحت څخه دي کوم چې د قاضي کار دی] فَنَفَذَ ذٰلِكَ وَصَحَّ نو ځکه دا تقسیم به نافذیږي او صحیح به وي حَتّٰى لَوْ حَضَرَ الْغَائِبُ وَقَدْ هَلَكَ الْمَقْبُوْضُ تر دې چې که غائب حاضر سي په داسي حال کي چې [د هغه د حصې] قبضه کړی سوی مال هلاک سوی

وي لَمْ يَكُنْ لَهُ عَلَى الْوَرَثَةِ سَبِيْلٌ نو هغه لره پر وارثانو هیڅ لاره نسته.

**اللغات**: ﴿نُصِبَ﴾ د ماضي مجهولي صيغه ده. له ضرب او نصر دواړو څخه راځي همدارنګه د تفعيل له باب څخه هم راځي يعني نُصِبَ: درول. مقرر کول (ټاکل). ﴿ناظر﴾ نګران. ساتونکی او پام کونکی. د مصلحت رعایت کونکی (مصلحت غوښتونکی). ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: د يو چا حصه جلا کول. د يو چا له مال څخه خپل مال جلا کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د يو سړي مثلاً د زيد ميراث زر درهمه دي او زيد دا وصيت وکړې چې زما له ميراث څخه دې يو ثلث خالد ته ورکول سي او د زيد وارثانو د ميراث ټول مال يعني زر درهمه قاضي ته ورکړل او قاضي هغه مال د وارثانو او موصیٰ لهٗ (خالد) ترمينځ تقسيم کړی. نو د قاضي دا تقسيم صحيح دی، برابره ده موصیٰ لهٗ د تقسيم په وخت کي غائب وي او که حاضر وي؛ ځکه چې د موصي (زيد) له طرفه د موصیٰ لهٗ لپاره دا وصيت صحيح دی. همدا وجه ده چې که موصي د موصیٰ لهٗ لپاره وصيت وکړي خو موصیٰ لهٗ د وصيت له قبلولو څخه مخکي مړ سي، نو دا وصيت (موصیٰ به) د هغه حق ګرځي او په وراثت کي يې داخليږي او د هغه وارثانو ته حاصليږي. له دې څخه معلومه سوه چې وصيت صحيح دی او کله چې وصيت صحيح دی. نو د قاضي تقسيم به هم صحيح وي؛ ځکه چې د قاضي کار همدا دی چې د مسلمانانو د مسائلو نګراني وکړي او حل يې کړي او کوم کسان چې مړه وي يا د قضا په وخت کي حاضر نه وي، د هغوی د نګرانی او مصلحت (ښېګني) په خاطر د هغوی د حقونو حفاظت او ساتنه وکړي. او د غائب موصیٰ لهٗ حق جلا کول او پر هغه قبضه کول هم د هغه د حق نګراني او ساتنه ده او د هغه لپاره مصلحت او ښېګنه ده. او په تقسيم سره قاضي همدا کړي دي، نو ځکه د هغه تقسيم به صحيح او نافذ وي.

او د موصیٰ لهٗ لپاره جلا کړی سوی مال که چيري د قاضي سره هلاک سي، نو د موصیٰ لهٗ قصه ختميږي او په دې باره کي موصیٰ لهٗ ته بيا له وارثانو څخه د پوښتني او غوښتني هيڅ حق نسته.

## د قرضخواهانو په نا موجوديت کي د وصي لپاره د بيع کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ الْوَصِيُّ عَبْدًا مِنَ التَّرِكَةِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْغُرَمَاءِ فرمايي: او که چيري وصي د غرماؤ [قرضخواهانو] په نا موجوديت کي له ميراث څخه يو غلام خرڅ کړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّ الْوَصِيَّ قَائِمٌ مُقَامَ الْمُوْصِيْ ځکه چې وصي د موصي قائم مقام دی وَلَوْ تَوَلَّى حَيًّا بِنَفْسِهِ او که چيري

موصي د ژوند په حالت کې په خپله بیع کړې وای يَجُوزُ بَيْعُهُ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْغُرَمَاءِ نو د قرضخواهانو په نا موجودیت کې به د هغه بیع جائز وی وَإِنْ كَانَ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ که څه هم هغه [موصي] په خپل مرض الموت کې وای فَكَذَا إِذَا تَوَلَّاهُ مَنْ قَامَ مَقَامَهُ نو همداسې [به بیع جائز وي] کله چې د موصي قائم مقام [وصي] د بیع متولي وي وَهٰذَا لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمَالِيَّةِ لَا بِالصُّوَرَةِ او دا ځکه چې د قرضخواهانو حق د مالیت سره متعلق دی، نه د صورت سره وَالْبَيْعُ لَا يُبْطِلُ الْمَالِيَّةَ او بیع مالیت نه باطلوي لِفَوَاتِهَا إِلَى خَلَفٍ ځکه چې مالیت د خلیفه [بدل] وطرف ته فوتیږي وَهُوَ الثَّمَنُ او هغه [خلیفه] ثمن دی بِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمَدْيُونِ په خلاف د مقروض غلام لِأَنَّ لِلْغُرَمَاءِ حَقَّ الِاسْتِسْعَاءِ ځکه چې قرضخواهانو لره [په غلام باندې] د سعی کولو حق سته وَأَمَّا هٰهُنَا فَبِخِلَافِهِ او هر چې دلته نو د هغه په خلاف دي.

**اللغات**: ﴿محضر﴾ د نصر له باب څخه مصدر میمي دی: حضور، موجودیت (موجودګي)، ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيمٌ" ده: د قرض مالک، قرضخواه (له مقروض څخه ترض غوښتونکی)، هغه څوک چې پر بل چا یې قرض (پور) باندې وي. ﴿تولّٰی﴾ د تفعّل د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه یې یوه معنیٰ ده: دیو کار ذمه واري اخیستل او کول (په غاړه اخیستل او کول). ﴿استسعاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی، اِسْتَسْعٰی يَسْتَسْعِيْ اِسْتِسْعَاءً: په غلام سعی او کوښښ کول، خواري په کښل، د مال ګټلو لپاره کسب او مزدوري په کول (مال په ګټل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زید مثلاً خالد خپل وصي ټاکلی دی او پر زید د څو خلکو قرضونه باندې دي، اوس که چیرې خالد (وصي) د دغه خلکو (قرضخواهانو) په نا موجودیت کې د زید له میراث څخه یو غلام خرڅ کړي، نو د هغه دا خرڅول جائز دي؛ ځکه که چیرې خپله موصي یعنې زید داسې وکړي چې په خپل مرض الموت کې د خپلو قرضخواهانو په نا موجودیت کې خپل غلام خرڅ کړي، نو هم جائز دي، لهذا کله چې خپله د موصي لپاره دا فعل جائز دی، نو د هغه د وصي او قائم مقام (خالد) لپاره به هم دا فعل (بیع) جائز او صحیح وي.

په دې هکله بل دلیل دا دی چې د قرضخواهانو حق د غلام د مالیت سره متعلق دی، نه د هغه د ذات او صورت سره، او بیع مالیت نه فوت کوي؛ ځکه چې د هغه مالیت د خلیفه یعنې د ثمن وطرف ته فوت کیږي (یعنې د هغه په بدله کې ثمن او پیسې ورته حاصلیږي)، نو د غلام د ذات خرڅولو باوجود

چې د کوم شي سره د قرضخواهانو حق متعلق دی یعني مالیت (قیمت) هغه پاته دی. نو ځکه دا بیع جائز ده.

د دې په خلاف که خپله پر غلام قرض باندې وي. نو د هغه د مالک یا وصي لپاره دا جائز نه دي چې د هغه د قرضخواهانو په ناموجودیت کې هغه خرڅ کړي؛ ځکه چې دلته د قرضخواهانو حق د غلام د مالیت سره هم متعلق دی او د هغه د ذات سره هم متعلق دی. په دې معنیٰ چې قرضخواهانو ته دا حق سته چې دا غلام خرڅ نه کړي بلکې په هغه سعی او ګټه وکړي او خپل قرضونه په اداء کړي. حال دا چې که مالک یا وصي دا غلام خرڅ کړي نو د قرضخواهانو دغه حق فوتیږي. نو ځکه په دې صورت کې د غلام مالک یا وصي ته د هغو په ناموجودیت کې د غلام د خرڅولو حق نسته. لېکن دلته د متن مسئله له دغه صورت څخه جلا ده، نو ځکه په هغه کې د غلام خرڅول جائز دي. که څه هم د هغه قرضخواهان غائب وي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَىٰ بِأَنْ يُبَاعَ عَبْدُهُ فرمايي: او څوک چې دا وصیت وکړي چې د هغه غلام دې خرڅ کړی سي وَيَتَصَدَّقَ بِثَمَنِهِ عَلَى الْمَسَاكِينِ او د غلام ثمن (قیمت) دې پر مسکینانو صدقه کړی سي فَبَاعَهُ الْوَصِيُّ وَقَبَضَ الثَّمَنَ نو وصي هغه خرڅ کړي او پر ثمن یې قبضه وکړه [ثمن یې له مشتري څخه واخیستی] فَضَاعَ فِي يَدِهِ بیا هغه ثمن دده په لاس کې هلاک سو فَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ بیا غلام مستحق وختی ضَمِنَ الْوَصِيُّ نو وصي ضامن کیږي لِأَنَّهُ هُوَ الْعَاقِدُ ځکه چې همدا وصي عقد کونکی دی فَتَكُونُ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ نو ځکه ذمه واري به [هم] پر هغه وي وَهٰذِهِ عُهْدَةٌ او دا ذمه واري ده لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ مِنْهُ مَا رَضِيَ بِبَذْلِ الثَّمَنِ إِلَّا لِيُسَلِّمَ لَهُ الْمَبِيعَ ځکه له وصي څخه [د غلام] رانیونکی کس صرف په دې وجه د ثمن په خرچ کولو [ورکولو] راضي سوی دی چې مبیع [غلام] هغه ته ورسپارل سي وَلَمْ يُسَلَّمْ حال دا چې مبیع هغه ته نه دی سپارل سوی فَقَدْ أَخَذَ الْوَصِيُّ الْبَائِعُ مَالَ الْغَيْرِ بِغَيْرِ رِضَاهُ نو خرڅونکي وصي د بل چا مال [ثمن] د هغه له رضا څخه بغیر اخیستی دی فَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّهُ نو ځکه پر وصي د دې مال [ثمن] واپس کول واجب دي [چې د ثمن ضمان (تاوان) به ورکوي] وَيَرْجِعُ فِيمَا تَرَكَ الْمَيِّتُ او وصي به رجوع کوي په هغه مال [میراث] کې کوم چې مړي پرې ایښی دی [یعني وصي چې د ثمن په ضمان (تاوان) کوم څه مال ورکړی دی. هغه به د مړي له میراث څخه اخلي] لِأَنَّهُ عَامِلٌ

لَهُ ځکه چې وصي د همدې مړي [موصي] لپاره کار کونکی دی فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه به رجوع کوي كَالْوَكِيْلِ لکه وکيل [چې پر خپل مؤکل رجوع کوي] وَكَانَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ يَقُوْلُ أَوَّلًا : لَا يَرْجِعُ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به اول فرمايل: چې وصي به رجوع نه کوي لِأَنَّهُ ضَمِنَ بِقَبْضِهِ ځکه چې وصي د خپل قبضې [ثمن اخيستلو] په وجه ضامن سوی دی ثُمَّ رَجَعَ إِلَىٰ مَا ذَكَرْنَا بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله زمونږ د ذکر سوي قول وطرف ته رجوع وکړه وَيَرْجِعُ فِيْ جَمِيْعِ التَّرِكَةِ او وصي به په ټوله ميراث کي رجوع کوي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَرْجِعُ فِي الثُّلُثِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې وصي به په ثلث کي رجوع کوي لِأَنَّ الرُّجُوْعَ بِحُكْمِ الْوَصِيَّةِ ځکه چې رجوع کول د وصيت د حکم په وجه دي فَأَخَذَ حُكْمَهَا نو رجوع به د وصيت حکم واخلي وَمَحَلُّ الْوَصِيَّةِ الثُّلُثُ او د وصيت محل ثلث [دريمه حصه] ده وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِحُكْمِ الْغُرُوْرِ د ظاهر روايت دليل دا دی چې وصي پر مړي د دوکه ورکولو په حکم سره رجوع کوي وَذٰلِكَ دَيْنٌ عَلَيْهِ او دا پر مړي قرض دی وَالدَّيْنُ يُقْضٰى مِنْ جَمِيْعِ التَّرِكَةِ او قرض له ټوله ميراث څخه اداء کول کيږي.

**اللغات:** ﴿يتصدق﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: صدقه کول. خيراتول. ﴿عهدة﴾ ذمه واري. ﴿بذل﴾ د نصر د باب ماضي ده: خرچول (خرچ کول)، مصرفول. ﴿التركة﴾ (په کسره د راء سره) او التِّرِكَة: مړی چې تر خپل شا کوم مال پرېږدي. ميراث.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که يو سړي مثلاً خالد دا وصيت وکړی چې زما فلانکی غلام دي خرڅ کړی سي او د هغه ثمن دي پر مسکينانو صدقه کړی سي، نو د خالد وصي د هغه د وصيت مطابق غلام خو خرڅ کړی. لېکن د هغه ثمن د وصي سره هلاک سو، يا هغه غلام د بل چا مستحَق وختی (يعني بل چا دعویٰ وکړه چې دا زما غلام دی او خپله دعویٰ يې ثابته کړه)، نو وصي د هغه ثمن ضامن کيږي يعني مشتري ته به د ثمن ضمان (تاوان) ورکوي: ځکه چې همدا وصي وصي د بيع عقد کړی دی (يعني همدا وصي هغه مستحَق غلام خرڅ کړی دی)، او په بيع کي ټوله حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي او د ثمن حفاظت کول هم له حقوقو څخه يو حق دی. نو ځکه دا حق به هم د عاقد يعني د وصي سره متعلق وي او همدا وصي به تر ګرېوان نيول کيږي.

دويمه خبره دا ده چې کله غلام د بل چا مستحَق وختی، نو په دې صورت کي چې مشتري و بائع يعني وصي ته کوم ثمن ورکړی دی، هغه بلا عوضه سو. حال دا چې بيع مبادلة المال ته وايي. نو

د مشتري د ثمن ورکولو منشا دا ده چي غلام (مبيع) مشتري ته وسپارل سي. حال دا چي د استحقاق (مستحق ختلو) په وجه غلام هغه ته نه وسپارل سو. نو ځکه بائع چي له مشتري څخه کوم ثمن اخيستی دی، هغه د ده له رضاء او خوښی څخه بغير سو. او ښکاره ده چي کله له رضا څخه بغير بائع د مشتري مال اخيستی دی، نو د هغه واپس کول ضروري دي. نو په دې وجه هم پر بائع (وصي) باندي د ثمن ضمان لازميږي چي هغه به مشتري ته ورکوي.

ويرجع فيما ترك الخ: يعني وصي ته دا حق سته چي د ضمان مقدار د موصي له ميراث څخه واپس واخلي (يعني وصي چي د ثمن کوم ضمان ورکړی دی. هغه د موصي له مال څخه واخلي): ځکه چي وصي د موصي لپاره کار کوي او د موصي د وصيت په وجه هغه غلام خرڅ کړی دی. لهذا څرنګه چي وکيل د مؤکل لپاره کار کوي نو که پر وکيل يو ضمان لازم سي او هغه ورکړي، نو وکيل هغه د ضمان مقدار د مؤکل له مال څخه اپس اخلي، نو همداسي وصي به هم په ضمان کي ورکول سوی مال د موصي له مال څخه واپس اخلي.

امام صاحب رَحِمَهُ الله مخکي د دې خبري قائل وو چي وصي ته د رجوع حق نسته چي په ضمان کي ورکول سوی مال د موصي له ميراث څخه واپس واخلي: ځکه چي هغه د خپلي قبضې په وجه ضمان اداء کړی دی. او اوس د غلام د مستحق ختلو په وجه وصيت باطل سوی دی او د مړي د ميراث سره د وارثانو حق متعلق سوی دی او وصي د موصي لپاره عامل وو، نه د وارثانو لپاره. نو ځکه هغه ته به د وارثانو په مال کي د رجوع حق نه وي. لېکن وروسته امام صاحب رَحِمَهُ الله له دغه قول څخه رجوع وکړه او د وصي لپاره د رجوع د جواز قائل سو.

ويرجع الى الخ: فرمايي چي د ظاهر روايت مطابق وصي به د موصي په ټوله ميراث کي رجوع کوي، نه فقط په ثلث کي، کله چي ضمان له ثلث څخه زائد وي؛ ځکه موصي وهغه (وصي) ته دوکه ورکړې ده. او د همدې دوکې (غرور) له کبله په آخر کي پر وصي ضمان واجب سوی دی، نو ځکه دا ضمان پر موصي قرض سو او قرض له ټوله مال څخه اداء کول کيږي. لهذا دا ضمان به هم له ټول مال څخه اداء کول کيږي. خو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي وصي ته صرف تر ثلث المال پوري د رجوع حق سته او له ثلث څخه په زائد کي هغه ته دا حق نسته؛ ځکه چي وصي ته دا حق د وصيت په وجه حاصل سوی دی او د وصيت محل ثلث مال دی، نو ځکه دا به هم د وصيت په حکم سره وي او صرف تر ثلث المال پوري به وصي ته د رجوع حق حاصل وي.

## په مذکوره مسئله کې که د وصي پر ځای قاضي یا د هغه امین وي (حکم او تفصیل)

بِخِلَافِ الْقَاضِيْ أَوْ أَمِيْنِهِ إِذَا تَوَلَّى الْبَيْعَ په خلاف د قاضي یا د هغه د امین کله چي هغه [قاضي یا امین] د دې بیع ذمه واري اخلي [یعني دا غلام خرڅ کړي بیا...] حَيْثُ لَا عُهْدَةَ عَلَيْهِ نو پر هغه [قاضي یا امین] هیڅ ذمه واري نسته لِأَنَّ فِي إِلْزَامِهَا الْقَاضِيَ تَعْطِيْلُ الْقَضَاءِ ځکه چي پر قاضي د ذمه واری په لازمولو کي د قضات معطل کول سته إِذْ يَتَحَامَى عَنْ تَقَلُّدِ هٰذِهِ الْأَمَانَةِ حَذَرًا عَنْ لُزُوْمِ الْغَرَامَةِ ځکه چي د تاوان لازمېدلو له بیري څخه به قاضي د دغه امانت له اخیستلو څخه ځان ساتي فَتَتَعَطَّلُ مَصْلَحَةُ الْعَامَّةِ نو د عام ولس مصلحت به معطله سي وَأَمِيْنُهُ سَفِيْرٌ عَنْهُ كَالرَّسُوْلِ او د قاضي امین د هغه سفیر دی لکه قاصد [استازی] وَلَا كَذٰلِكَ الْوَصِيُّ او وصي داسي نه دی لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيْلِ ځکه چي وصي د وکیل په درجه کي دی وَقَدْ مَرَّ فِيْ كِتَابِ الْقَضَاءِ او دا په کتاب القضاء کي تېر سوي دي فَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ قَدْ هَلَكَتْ بیا که [د موصي] میراث هلاک سي أَوْ لَمْ يَكُنْ بِهَا وَفَاءٌ یا په میراث کي [د ضمان لپاره] پوره [کافي] مقدار نه وي [یعني د میراث په ټوله مال سره ضمان نه پوره کیږي او نه اداء کیږي] لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ نو وصي به په هیڅ شي سره رجوع نه کوي كَمَا إِذَا كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ آخَرُ لکه کله چي پر مړي بل قرض باندي وي [نو هغه رجوع نه کوي].

**اللغات:** ﴿تَوَلّٰى﴾ د تفعل د باب ماضي ده، د دې باب ځو معناوي دي چي له هغوی څخه یې یوه معنیٰ دا ده: دیو کار ذمه واري اخیستل کول. ﴿أمين﴾ امانت ساتونکی، څوک چي دیو شي د ساتني او نګرانی ذمه واري واخلي. ﴿تعطيل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: شنډول، بېکاره کول، له کاره اچول، بې حاصله کول. ﴿يتحامٰى﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: ځان ساتل، پرهېز کول. ﴿تَقَلُّد﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: په غاړه اخیستل، (د امانت) بار پورته کول. ﴿غرامة﴾ د سمع له بابه اسم مصدر دی: تاوان (نقصان)، جرمانه. ﴿وفاء﴾ پوره کول، پوره اداء کول، مراد ځني دومره مقدار دی کوم چي د ضمان د اداء کولو لپاره کافي نه وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د وصي پر ځای قاضي دا بیع کړې وي (یعني قاضي هغه غلام خرڅ کړی وي). بیا د قاضي سره د غلام ثمن هلاک سي یا غلام مستحق وخیږي، نو پر قاضي هیڅ ضمان (تاوان) نه لازمیږي؛ ځکه که پر قاضي ضمان لازم کړی سي، نو هیڅوک به هم د قضاوت

منصب نه قبلوي او د ضمان لازمېدلو له بيرې څخه به د هيڅچا په مسئله او معامله کې لاس نه وهي او د خلکو مصلحتونه به معطله پاته سي. په همدې وجه پر قاضي ضمان نه لازميږي.

همدارنګه که دا بيع د قاضي امين کړې وي، نو پر هغه هم ضمان نه لازميږي: ځکه د قاضي امين ګواکې د قاضي سفير او ترجمان دی او د هغه د قاصد (استازي) په څېر دی. حال دا چې وصي [illegible]سي نه دی. بلکې وصي خپله عاقد دی او هغه د وکيل په درجه کې دی. او پر وکيل ضمان [illegible]. نو ځکه پر وصي به هم ضمان لازميږي.

فإن كانت [illegible]: د دې تعلق د مخکنۍ مسئلې سره دی. حاصل يې دا دی چې که چيرې د مړي ميراث هلاک سي، يا د هغه ميراث دومره کم وي چې د دې قرض (ضمان) اداء کولو لپاره نا کافي وي يعنې د ميراث په ټوله مال سره دا ضمان نه اداء کيږي. نو په دې صورت کې وصي ته د رجوع حق نسته. لکه څرنګه په هغه صورت کې وصي ته د رجوع حق نه حاصليږي کله چې پر مړي (موصي) بل قرض باندې وي، نو همداسې د ميراث د هلاکېدلو يا کمېدلو په صورت کې هم هغه ته د رجوع حق نه حاصليږي.

**د نا بالغ بچي قبضه کړی سوی مال که د وصي سره هلاک سي (حکم او تفصيل)**

قَالَ: وَإِنْ قَسَمَ الْوَصِيُّ الْمِيرَاثَ فرمايي: او که وصي ميراث تقسيم کړی فَأَصَابَ صَغِيرًا مِنَ الْوَرَثَةِ عَبْدٌ نو له وارثانو څخه يو کوچني [نابالغه وارث] ته غلام ورسېدی [يعنې په حصه کې يې يو غلام راغلی] فَبَاعَهُ وَقَبَضَ الثَّمَنَ نو وصي هغه خرڅ کړی او پر ثمن يې قبضه وکړه [ثمن يې له مشتري څخه واخيستی] فَهَلَكَ وَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ بيا هغه ثمن هلاک سو او غلام [د يو چا] مستحق وختی رَجَعَ فِي مَالِ الصَّغِيرِ نو وصي به د هغه کوچني په مال کې رجوع کوي لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چې وصي د هغه کوچني لپاره کار کونکی دی وَيَرْجِعُ الصَّغِيرُ عَلَى الْوَرَثَةِ بِحِصَّتِهِ او کوچنی به د خپلې حصې مطابق پر وارثانو رجوع کوي لِانْتِقَاضِ الْقِسْمَةِ بِاسْتِحْقَاقِ مَا أَصَابَهُ د تقسيم د ماتېدلو په وجه د هغه څه [غلام] په استحقاق سره کوم چې کوچني ته رسېدلی دی [يعنې د بچي په حصه کې چې کوم غلام راغلی دی. د هغه د مستحق ختلو په وجه تقسيم مات سو].

**اللغات**: ﴿أصاب﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسېدل. ﴿انتقاض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ماتېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د مړي وصي د هغه ميراث تقسيم کړی او د مړي په وارثانو کې يو کوچنی هلک هم دی چې د هغه په حصه کې يو غلام راغلی. بيا وصي د هغه کوچني هلک

غلا خرڅ کړي او د هغه ثمن يې د ځان سره خوندي کړي. خو بيا دا ثمن د وصي سره هلاک سو. يا هغه غلام د يو چا مستحق وختی. نو پر وصي د هغه د ثمن ضمان (تاوان) واجبیږي، خو وصي به بيا دا ضمان د صغير له مال څخه وپس اخلي: ځکه وصي دلته د صغير لپاره کار کونکی دی. لهذا ضمان وغيره اصلاً د همدې صغير په مال کي واجب دی. نو ځکه وصي به هغه له صغير څخه اخلي او صغير به بيا له نورو وارثانو څخه خپله حصه دوباره اخلي. ځکه کله چي د صغير حصه مستحقه وختله نو تقسيم مات سو. لهذا کله چي تقسيم مات سو. نو ښکاره ده چي اوس به بيا تقسيم کيږي او له ميراث څخه به صغير ته خپله حصه ورکول کيږي.

## که وصي د يتيم په مال کي حواله قبوله کړي، نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا احْتَالَ الْوَصِيُّ بِمَالِ الْيَتِيمِ فرمايي: او کله چي وصي د يتيم د مال حواله قبوله کړي فَإِنْ كَانَ خَيْرًا لِلْيَتِيمِ نو که دا [حواله قبول] د يتيم په حق کي خير وي جَازَ نو جائز دي وَهُوَ أَنْ يَكُونَ أَمْلَأَ او هغه دا چي محتال عليه مالدار وي [چي د دې مال په اداء کولو باندي قدرت لري] إِذِ الْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ ځکه چي دا ولايت پر مصلحت [او شفقت] مبني دی وَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ أَمْلَأَ او که اول [مقروض محيل] مالدار وي لَا يَجُوزُ نو دا [حواله قبول] جائز نه دي لِأَنَّ فِيهِ تَضْيِيعَ مَالِ الْيَتِيمِ عَلَى بَعْضِ الْوُجُوهِ ځکه چي په دې کي پر بعضي صورتونو د يتيم د مال ضايع کول سته [او هغه دا چي که محتال عليه مالدار نه وي. نو په اداء کولو کي به تأخير وکړي. والتأخير تضييع من وجه].

**اللغات**: ﴿احتال﴾ د افتعال د باب ماضي ده: حواله قبلول. ﴿أملأ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مال والا. شتمن. ﴿نظرية﴾ پر مصلحت مبني. پر شفقت مبني (شارحينو يې همدغه دوې معناوي کړي دي). ﴿تضييع﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ضايع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي پر يو سړي مثلاً پر خالد د يو يتيم قرض باندي دی او د يتيم وصي چي کله له خالد (مقروض) څخه د هغه مطالبه وکړه. نو خالد هغه وصي د حامد وطرف ته حواله کړی چي زما قرض به حامد درکړي او وصي دا حواله قبوله کړه او حامد (محتال عليه) هم قبوله کړه. نو که چيري حامد کوم چي محتال عليه دی مالدار (شتمن) وي. نو وصي لره حواله قبلول جائز دي: ځکه په دې کي د يتيم مصلحت او فايده ده چي د يتيم حق او مال به هغه ته ژر حاصل سي او د وصي ولايت مبني بر مصلحت و شفقت دی. او مصلحت و شفقت په همدې کي دی چي يتيم ته خپل مال ژر حاصل سي.

او که چیري مقروض (یعني خالد) خپله هم مالدار وي او قرض اداء کولای سي. نو بیا دا حواله قبلول جائز نه دي؛ ځکه چي په دې کي د یتیم د مال په اداینه کي د تأخیر امکان سته (چي محتال علیه به تاخیر پکښي وکړي او په ځنډ سره به یې اداء کړي) او تأخیر هم من وجه تضییع او اتلاف دی. حال دا چي د وصیت پر مصلحت وشفقت مبني دی نو په کوم صورت کي د بچي مصلحت (ښېګڼه) نه وي. د هغه په اختیارولو کي هیڅ خیر او مصلحت نسته. نو ځکه په دې صورت کي حواله قبلول جائز نه دي.

## د وصي د تصرفاتو د انعقاد شرط

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْوَصِيِّ وَلَا شِرَاؤُهُ إِلَّا بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِي مِثْلِهِ فرمايي: او جائز نه دي د وصي بیع او د هغه شراء [خرڅول او رانیول] مګر په هغه مقدار سره چي په هغومره مقدار کي خلک خساره زغمي لِأَنَّهُ لَا نَظَرَ فِي الْغَبْنِ الْفَاحِشِ ځکه چي په غبنِ فاحش [زیاته خساره] کي مصلحت [او شفقت] نسته بِخِلَافِ الْيَسِيرِ په خلاف د غبنِ یسیر [یعني معمولي خساره] لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ځکه چي له هغه ځخه بچ کېدل ناممکن دي فَفِي اعْتِبَارِهِ انْسِدَادُ بَابِهِ نو د هغه په اعتبار کولو کي د وصایت د دروازې بندېدل سته وَالصَّبِيُّ الْمَأْذُونُ وَالْعَبْدُ الْمَأْذُونُ وَالْمُكَاتَبُ يَجُوزُ بَيْعُهُمْ وَشِرَاؤُهُمْ بِالْغَبْنِ الْفَاحِشِ او د مأذون [اجازه ورکول سوي] بچي او د مأذون غلام او د مکاتب بیع او شراء په غبنِ فاحش سره [هم] [جائز دي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز لِأَنَّهُمْ يَتَصَرَّفُونَ بِحُكْمِ الْمَالِكِيَّةِ ځکه چي دا کسان د مالکیت په حکم سره تصرّف کوي وَالْإِذْنُ فَكُّ الْحَجْرِ او اجازه ورکول د بندیز لیري کول دي بِخِلَافِ الْوَصِيِّ په خلاف د وصي لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ النِّيَابَةِ الشَّرْعِيَّةِ نَظَرًا ځکه چي وصي د شرعي نائب والي په حکم سره بناء بر مصلحت [و شفقت] تصرّف کوي فَيَتَقَيَّدُ بِمَوْضِعِ النَّظَرِ لهذا دا تصرّف به د مصلحت په مقام سره مقید وي وَعِنْدَهُمَا لَا يَمْلِكُونَهُ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا کسان [مأذون بچی وغیره] د دغه تصرف ملکیت نه لري لِأَنَّ التَّصَرُّفَ

بِالْفَاحِشِ مِنْهُ تَحَرُّزٌ لَا ضَرُوْرَةَ فِيْهِ ځکه چي په غبن فاحش سره تصرّف کول داسي تبرّع ده چي د هغه هيڅ ضرورت نسته وَهُمْ لَيْسُوْا مِنْ أَهْلِهِ او دا کسان د تبرّع اهل نه دي.

**اللغات:** ﴿يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده. تَغَابَنَ يَتَغَابَنُ تَغَابُنًا: د دې باب خپله معنیٰ ده: يو بل ته (په قيمت وغيره کي) نقصان رسول. يو بل ته دوکه ورکول. لېکن شارحينو يې دا معناوي هم ذکر کړي دي: دوکه خوړل (دوکه کېدل). خساره زغمل (تاوان برداشتول). دوکه او فرېب ګټل. مثلاً په يو علاقه کي د يوې بازاري قيمت عموماً سل [۱۰۰] درهمه وي او له هغه څخه نه زياتول کيږي. اوس که يو څوک يو نيم سل [۱۵۰] درهمه د هغه قيمت ولګوي. نو پنځوس درهمه د هغه پر قيمت اضافه کول بيخي زيات ګڼل کيږي او خلک يې نه زغمي. نو دومره زياتوب ته "غبن فاحش" وايي. او که د هغه قيمت يو سل ولس [۱۱۰] درهمه ولګوي او صرف لس درهمه پرې اضافه کړي نو صحيح دي ځکه چي لس درهمه بيخي زيات نه ګڼل کيږي او خلک يې زغمي. نو دې معمولي زياتوب ته "غبن يسير" وايي او داسي سودا ته "ما يتغابن الناس" وايي. ﴿فاحش﴾ د کرُم د باب فاعل دی. د دې لفظ له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: له حدّ څخه تېر. ډېر زيات. ﴿يسير﴾ معمولي. لږ. غوندي. ﴿تحرز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل. ساتل کېدل. ځان ساتل او پرهيز کول. ﴿انسداد﴾ د انفعال د باب مصدر دی بندېدل. ﴿فَلَق﴾ د نصر د باب مصدر دی: ليري کول او ختمول. خلاصول. ﴿الحجر﴾ بنديز. ممانعت. پابندي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي وصي ته د دې پوره اختيار سته چي د مړي (موصي) د بچيانو لپاره خرڅول او رانيول (بيع و شراء) وکړي او د هغوی په اُمورو او مالونو کي تصرّف وکړي. لېکن شرط دا دی چي وصي په غبن فاحش سره تصرّف نه وکړي. لهذا که چيري وصي په غبن فاحش سره بيع و شراء وکړي، نو د هغه تصرّف نه جائز کيږي. ها! که په غبن يسير سره تصرّف وکړي، نو بيا يې تصرّف جائز کيږي او هغه به نافذول کيږي؛ ځکه معمولي خساره خو په هر تصرّف کي کيږي او له هغه څخه بچ کېدل مشکل دي. لهذا معمولي خساره به زغمل کيږي، لېکن غبن فاحش په هيڅ صورت کي د زغملو وړ نه دی؛ ځکه چي د وصي وصايت پر مصلحت و شفقت مبني دی او په غبن فاحش کي هيڅ مصلحت و شفقت نسته.

**والصبي المأذون إلخ:** فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مأذون بچي او د مأذون غلام او د مکاتب تصرّفات په غبن فاحش سره هم جائز دي؛ ځکه چي دا کسان د مالک والي په توګه تصرّف کوي. نه د نائب والي په توګه. ځکه کله چي دوی ته د تصرّف اذن (اجازت) حاصل دی. نو اوس دوی په تصرّف کي مالکان او خود مختاره دي، نائبان نه دي. لهذا دوی که په غبن يسير سره تصرّف وکړي او که په غبن فاحش سره تصرّف وکړي. په هر صورت کي د دوی تصرّف جائز دی. حال دا چي وصي شرعاً د مصلحت و شفقت پر بناء د نائب په توګه تصرّف کوي يعني بناء بر مصلحت شريعت

هغه د موصي نائب جوړ کړی دی. نو ځکه د هغه تصرف په مصلحت وشفقت سره مقید دی. او څرنګه چي په غبنِ فاحش کي د مصلحت و شفقت اړخ معدوم دی (یعني په هغه کي د بچي او غلام او مکاتب لپاره هیڅ مصلحت [ښېګڼه] نسته). نو ځکه د وصي لپاره په غبنِ فاحش سره د تصرف کولو اختیار نسته.

**وعندهما لا یملکونه إلخ:** د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز مأذون بچی، مأذون غلام او مکاتب په غبنِ فاحش سره د تصرف کولو هیڅ ملکیت او اختیار نه لري؛ ځکه په غبنِ فاحش سره تصرف کول یو ډول تبرّع ده او دا کسان د تبرّع اهل نه دي.

**د وصي په بیع کي به بیع نامه او وصیت نامه دواړه جلا، جلا لیکل کیږي، نه یو ځای**

وَإِذَا كُتِبَ كِتَابُ الشِّرَاءِ عَلَى وَصِيٍّ او کله چي پر وصي د رانیولو خط [بیع نامه] ولیکل سي كُتِبَ كِتَابُ الْوَصِيَّةِ عَلَى حِدَةٍ نو د وصیت خط [وصیت نامه] به جلا ولیکل سي وَكِتَابُ الشِّرَاءِ عَلَى حِدَةٍ او د رانیولو خط [بیع نامه] به جلا ولیکل سي لِأَنَّ ذَلِكَ أَحْوَطُ ځکه چي دا احوط دي [یعني په دې کي زیات احتیاط دی] وَلَوْ كُتِبَ جُمْلَةً او که چیري [وصیت نامه او بیع نامه] یو ځای ولیکل سي عَسَى أَنْ يَكْتُبَ الشَّاهِدُ شَهَادَتَهُ فِي آخِرِهِ مِنْ غَيْرِ تَفْصِيلٍ نو کېدلای سي چي ګواه خپله ګواهي په آخر کي بغیر له تفصیله ولیکي فَيَصِيرُ ذَلِكَ حَمْلًا لَهُ عَلَى الْكَذِبِ نو دا به پر دروا‌غو د هغه باعث [پارونکي] وګرځي ثُمَّ قِيلَ: يُكْتَبُ: اِشْتَرَى مِنْ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ بیا ویل سوي دي: داسي به لیکل کیږي: چي هغه له فلانکي شخصه کوم چي د فلانکي ځوی دی رانیولی دی وَلَا يُكْتَبُ: مِنْ فُلَانٍ وَصِيِّ فُلَانٍ او داسي به نه لیکل کیږي: چي له فلانکي شخصه کوم چي د فلانکي وصي دی [رانیولي دی] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیا کړی دی وَقِيلَ: لَا بَأْسَ بِذَلِكَ او ویل سوي دي: چي په دې کي هیڅ پروا نسته لِأَنَّ الْوِصَايَةَ تُعْلَمُ ظَاهِرًا ځکه چي وصایت په ښکاره معلومیږي.

**اللغات:** ﴿کتاب﴾ مکتوب، خط. ﴿أحوط﴾ داسم تفضیل صیغه ده: زیات احتیاط والا. زیات محتاط. ﴿جملةً﴾ یو ځای، پر یوه ځای. ﴿عسیٰ﴾ ممکنه ده، کېدلای سي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که له وصي شخصه یو څوک شی رانیسي او بیا پر هغه د "بیع نامه" د لیکلو نوبت راسي، نو هلته به بیع نامه او وصیت نامه پر یوه ځای او په یوه صفحه کي نه لیکل

کیږي. بلکي دواړه به جلا، جلا لیکل کیږي؛ ځکه عموماً داسي کیږي چي د وصیت ګواهان او د بیع ګواهان سره جلا، جلا وي، نو اوس که د بیع نامه د لیکلو په وخت کي وصیت نامه هم په هغه صفحه کي ولیکل سي، نو کوم چي د بیع ګواهان دی، هغه به د صفحې په آخر کي خپلي امضاوي (لاسلیکونه) وکړي چي له هغه څخه به په ښکاره دا معلومیږي چي دا کسان د وصیت او بیع دواړو ګواهان دي، حال دا چي هغوی فقط د بیع ګواهان دي، نو ځکه زیات احتیاط په دې طریقه کي دی چي د دواړو خطونه جلا، جلا وي.

ثم قیل یکتب إلخ: کله چي بیع نامه لیکل کیږي یعني قاضي یا مشتري یا د دوی په حکم سره چي کوم څوک بیع نامه لیکي، نو د هغه الفاظ به داسي لیکي چي "فلاني کس له فلان بن فلان څخه فلانکی شی رانیوی"، او داسي به نه لیکي چي "فلاني کس له فلاني څخه کوم چي د فلاني وصي دی دا شی رانیوی"، د دې لپاره چي په لیکنه کي هم وصیت او بیع یو ځای سره ذکر نه سي. ځکه چي دا د احتیاط خلاف دي، ځکه ځیني وخت له دې څخه هم دوکه پېښېدلای سي. لهذا داسي نه کول پکار دي.

وقیل إلخ: د بعضي حضراتو رایه دا ده چي په دې کي څه حرج نسته (کله چي بیع نامه او وصیت نامه جلا، جلا ولیکل سي)؛ ځکه په عامه توګه خلګو ته معلومه او مشهوره وي چي دا د فلانکي وصي دی، نو د شهرت پر بنیاد په بیع نامه کي دا الفاظ لیکل کیږي، نور په دې هر څوک پوهیږي چي کوم څه چي بیع نامه ده هغه جلا ده او د وصایت ذکر په هغه کي تابع دی.

## وصي د بالغ وارث د سامان خرڅولو اختیار لري او که نه؟

قَالَ: وَبَیْعُ الْوَصِيِّ عَلَی الْکَبِیْرِ الْغَائِبِ جَائِزٌ فِيْ کُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي الْعَقَارِ فرمایي: او پر غائب لوی [بالغ] د وصي بیع له جایداد څخه بغیر بل په هر شي کي جائز ده لِأَنَّ الْأَبَ یَلِيْ مَا سِوَاهُ ځکه چي پلار [موصي] د جایداد له بیع [خرڅولو] څخه د ماسوا [یعني د بل شي د خرڅولو] ولایت لري وَلَا یَلِیْهِ او د جایداد د بیع [خرڅولو] ولایت نه لري فَکَذَا وَصِیُّهُ فِیْهِ نو همداسي به د هغه وصي وي په دې [بیع العقار] کي [یعني هغه به هم له بیع العقار څخه ماسوا د بل شي د خرڅولو ولایت لري] وَکَانَ الْقِیَاسُ أَنْ لَا یَمْلِكَ الْوَصِيُّ غَیْرَ الْعَقَارِ أَیْضًا او قیاس دا دی چي وصي له جایداد څخه بغیر د بل شي [د خرڅولو] هم ملکیت نه لري لِأَنَّهُ لَا یَمْلِکُهُ الْأَبُ عَلَی الْکَبِیْرِ ځکه چي [د ولایتِ حقیقیه په توګه] پلار پر کبیر د هغه ملکیت نه لري [خو د حفاظت او مصلحت پر بناء پلار پر کبیر د هغه ملکیت او ولایت لري] إِلَّا أَنَّا

اِسْتِحْسَانًا خو بناء بر استحسان موږ دا بیع [د غیر العقار] جائز ګرځولی ده لِمَا أَنَّهُ حِفْظٌ ځکه چي دا [بیع د غیر العقار] د حفاظت ذریعه ده لِتَسَارُعِ الْفَسَادِ إِلَيْهِ ځکه چي د غیرالعقار [منقولاتو] وطرف ته خرابي ژر راځي [یا په بله وینا دا چي د هغه وطرف ته خرابوالی تېزي او وړاندیتوب کوي یعني ژر خرابیږي] وَحِفْظُ الثَّمَنِ أَيْسَرُ او د ثمن حفاظت کول زیات آسانه دي وَهُوَيَمْلِكُ الْحِفْظ او وصي د حفاظت ملکیت [او اختیار] لري أَمَّا الْعَقَارُ فَمُحْصَنٌ بِنَفْسِهِ او کوم چي جایداد دی نو هغه خپله خوندي [محفوظ] دی.

**اللغات:** ﴿عقار﴾ غیرِ منقولي جایداد، هغه څه چي له یوه ځای څخه بل ځای ته نقل کېدلای نه سي، لکه ځمکه او داسي نور. ﴿یلي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: ولي کېدل، ولایت لرل. ﴿تسارع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: تېزي کول، وړاندیتوب کول.

**تشریح:** مخکي ذکر سوه چي د مړي وصي ته د هغه د بچیانو په مالونو کي د تصرّف کولو (بیع و شراء) حق حاصل دی، لېکن که د مړی یو لوی (بالغ) بچی وي او هغه چیري غائب وي، نو آیا وصي د هغه سامان خرڅولای سي، که نه؟، په دې باره کې د قیاس او استحسان دوې جلا فیصلې دي. د قیاس تقاضا او فیصله دا ده چي وصي ته دا حق نسته چي د کبیر غائب په مال کې تصرّف وکړي، لېکن استحساناً وصي ته دا حق سته چي له جایداد څخه بغیر د هغه په نور مال او سامان (منقولاتو) کي تصرّف وکړي او خرڅ یې کړي؛ ځکه چي وصي د موصي قائم مقام دی یعني د کبیر (لوی بچي) د پلار قائم مقام دی، او پلار ته له جایداد څخه بغیر په نورو شیانو (منقولاتو) کي د کبیر پر مال ولایت حاصل دی، نو ځکه وصي ته به هم له جایداد څخه بغیر پر نور مال ولایت حاصل وي او هغه ته به د دې پوره اختیار وي چي د کبیر غائب مال او سامان خرڅ کړي؛ ځکه چي په نور مال (منقولاتو) کي د خرابېدلو او ضایع کېدلو بېره سته، حال دا چي مال خرڅول او د هغه د ثمن حفاظت کول زیات آسانه دي، او وصي ته د همدې حفاظت کولو ولایت او اختیار حاصل دی.

او د جایداد (عقار) د خرڅولو اختیار ځکه ورته نسته چي د هغه د ضایع کېدلو بېره او خطره نسته. بلکي جایداد (ځمکه وغیره) بذاتِ خود محفوظ دي، لهٰذا د هغه د حفاظت کولو څه ضرورت نسته.

## وصي ته په مال سره د تجارت کولو اختیار نسته

قَالَ: وَلَايَتَّجِرُ فِي الْمَالِ فرمایي: او وصي به په مال کي تجارت نه کوي لِأَنَّ الْمُفَوَّضَ إِلَيْهِ الْحِفْظ دُوْنَ التِّجَارَةِ ځکه چي هغه ته سپارل سوی کار [د مال] حفاظت کول دي، نه تجارت کول.

**اللغات:** ﴿لا يَتَّجِرُ﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده. د افتعال له بابه هم راځي يعني لَا يَتَّجِرُ: تجارت او کاروبار کول، سوداګري کول. ﴿مفوّض﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: ورسپارل سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې وصي ته دا اختيار نسته چې د موصي په مال سره تجارت او کاروبار وکړي؛ ځکه چې موصي د خپلو مالونو د حفاظت او ساتنې لپاره هغه وصي ټاکلی دی، نه د تجارت لپاره. لهذا د هغه مالونه به په تجارت او کاروبار نه بندوي.

## د ورور وغيره د وصي لپاره د تصرّف کولو حکم

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: وَصِيُّ الْأَخِ فِي الصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ الْغَائِبِ چې د ورور وصي د کوچني ورور او لوی غائب ورور په باره کې داسې دی بِمَنْزِلَةِ وَصِيِّ الْأَبِ فِي الْكَبِيْرِ الْغَائِبِ لکه د پلار وصي د غائب ځوی په باره کې وَكَذَا وَصِيُّ الْأُمِّ وَوَصِيُّ الْعَمِّ او همداسې د مور وصي او د اکا وصي دی وَهٰذَا الْجَوَابُ فِي تَرِكَةِ هٰؤُلَاءِ او دغه جواب [حکم] د دې کسانو د ميراث په باره کې دی لِأَنَّ وَصِيَّهُمْ قَائِمٌ مُقَامَهُمْ ځکه چې د دوی وصي د دوی پر ځای ولاړ دی وَهُمْ يَمْلِكُوْنَ مَا يَكُوْنُ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ او دوی د هغه اُمورو ملکيت [اختيار] لري کوم چې د حفاظت له باب څخه وي فَكَذَا وَصِيُّهُمْ نو همداسې به د دوی وصي هم وي [يعني وصي به يې هم د هغه اُمورو اختيار لري].

**اللغات:** ﴿يملكون﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: مالک کېدل، ملکيت او اختيار لرل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د يو سړي مثلاً د خالد دوه وروڼه دي او له دوی څخه يو صغير (نابالغ) دی او بل کبير (بالغ ورور) دی کوم چې غائب دی او خالد د ځان لپاره يو وصي هم ټاکلی دی، بيا خالد مړ سو، نو آيا د خالد وصي د هغه د دواړو وروڼو په مال کې (کوم چې له خالد څخه دوی ته په ميراث کې حاصل سوی دی) تصرّف کولای سي، که نه؟، نو فرمايي چې کوم حکم د پلار د وصي وو د غائب کبير (بالغ بچی) په حق کې، هاغه حکم دلته د دواړو وروڼو په حق کې د ورور د وصي دی. يعني د ورور (خالد) وصي له جايداد (عقار) څخه بغير د دوی نور مال او سامان خرڅولای سي. خو د دوی په جايداد کې تصرف نه سي کولای.

او همدا حکم د مور د وصي او د اکا د وصي دی: يعني د دوی وصي لره هم دغه اختيارات سته چې وصي د دوی د وارثانو له جايداد څخه بغير په نور مال او سامان کې تصرف کولای سي: ځکه

چي وصي د خپل موصي قائم مقام وي، او موصي يعني ورور، مور او اکا ته دغه اختيارات حاصل دي. لهذا دا حکم به د هغو د وصي هم وي.

لېکن وصي ته چي کوم دا اختيارات حاصل دي دا صرف په هغه مال کي ورته حاصل دي، کوم چي د هغه د موصي له طرفه وارثانو ته په ميراث کي حاصل سوی وي، لېکن هغه مال کوم چي له مخکي شخصه د وارثانو (خپل مال) دی، په هغه کي وصي ته د تصرّف کولو حق نسته.

## له وصي او نيکه څخه کوم يو د بچيانو د مال زيات حقدار دی؟

قَالَ: وَالْوَصِيُّ أَحَقُّ بِمَالِ الصَّغِيْرِ مِنَ الْجَدِّ فرمايي: او وصي د بچي د مال زيات حقدار دی له نيکه څخه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: اَلْجَدُّ أَحَقُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نيکه زيات حقدار دی لِأَنَّ الشَّرْعَ أَقَامَهُ مُقَامَ الْأَبِ حَالَ عَدَمِهِ ځکه شريعت د پلار د نشتوالي په حالت کي نيکه د هغه قائم مقام کړی دی حَتّٰى أَحْرَزَ الْمِيْرَاثَ همدا وجه ده چي هغه ميراث اخلي فَيُقَدَّمُ عَلٰى وَصِيِّهِ نو ځکه هغه به د پلار پر وصي مخکي کول کيږي وَلَنَا: أَنَّ بِالْإِيْصَاءِ تَنْتَقِلُ وِلَايَةُ الْأَبِ إِلَيْهِ زموږ دليل دا دی: چي د وصيت کولو [وصي جوړولو] په وجه د پلار ولايت د وصي وطرف ته منتقل کيږي فَكَانَتْ وِلَايَتُهُ قَائِمَةً مَعْنًى لهذا د پلار ولايت د معنیٰ په اعتبار سره موجود دی فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ نو ځکه وصي به پر نيکه مخکي کول کيږي كَالْأَبِ نَفْسِهِ لکه خپله پلار [چي پر نيکه مخکي کول کيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ اخْتِيَارَهُ الْوَصِيَّ مَعَ عِلْمِهِ بِقِيَامِ الْجَدِّ يَدُلُّ عَلٰى او دا ځکه چي د پلار وصي اختيارول [يعني پلار چي وصي اختيار کړی] سره د دې چي هغه د نيکه په وجود خبر دی دا پر دې دلالت کوي أَنَّ تَصَرُّفَهُ أَنْظَرُ لِبَنِيْهِ مِنْ تَصَرُّفِ أَبِيْهِ چي د وصي تصرّف د هغه د زامنو لپاره زيات مصلحت [ښېګڼي] والا دی د هغه د پلار [نيکه] له تصرف څخه فَإِنْ لَمْ يُوْصِ الْأَبُ لېکن که پلار وصيت نه وي کړی [يعني وصي يې نه وي اختيار او مقرر کړی] فَالْجَدُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ نو بيا نيکه د پلار په درجه کي دی لِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِ وَأَشْفَقُهُمْ عَلَيْهِ ځکه چي نيکه بچي ته تر ټولو خلکو زيات نژدې دی او تر ټولو زيات پر هغه مهربانه دی حَتّٰى يَمْلِكَ الْإِنْكَاحَ دُوْنَ وَصِيٍّ همدا وجه ده چي نيکه د نکاح کولو ملکيت [اختيار] لري، نه وصي غَيْرَ أَنَّهُ يُقَدَّمُ عَلَيْهِ وَصِيُّ الْأَبِ فِي التَّصَرُّفِ خو د پلار وصي به په تصرف کي پر نيکه

مخکي کول کيږي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿أحق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات حقدار. ﴿أحرز﴾ د افعال د باب ماضي ده: ذخيره کول. اخيستل او خوندي کول. ﴿إيصاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: وصيت کول. څوک د ځان وصي جوړول. ﴿أنظر﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مصلحت والا. زيات شفقت والا.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د مُوصي پلار يعني نيکه هم موجود وي او د پلار وصي هم موجود وي، نو په دې صورت کي کوم يو د مُوصي د بچيانو (کوچنيانو) په مال کي د تصرّف کولو زيات حقدار دی، نو فرمايي چي زموږ په نيز وصي زيات حقدار دی. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز نيکه مخکي او زيات حقدار دی؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي شريعت د پلار په نا موجوديت کي نيکه د هغه قائم مقام ګرځولی دی. همدا وجه ده چي نيکه ته د پلار ميراث حاصليږي (يعني د پلار چي کوم ميراث وي، هغه نيکه اخلي)، لېکن وصي ته هيڅ ميراث نه حاصليږي. نو ځکه نيکه به پر وصي مخکي کول کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي کله موصي خپل وصي مقرر کړی، نو د پلار ولايت د وصي وطرف ته منتقل سو. ګواکي د وصي په صورت کي معناً د پلار ولايت قائم او موجود دی. نو ځکه وصي به پر نيکه مخکي کول کيږي. لکه که چيري پلار خپله موجود وای نو هغه به هم پر نيکه مخکي کېدلای. لهذا وصي به هم مخکي کول کيږي.

او بل دا چي کله پلار په دې خبر دی چي زما پلار يعني د بچيانو نيکه موجود دی خو بيا هم خپل وصي مقرر کوي. نو د دې ښکاره مطلب همدا دی چي هغه پر خپل نيکه وصي ته ترجيح ورکوي او د نيکه په مقابله کي وصي د خپلو بچيانو په حق کي زيات مصلحت والا ګڼي. نو ځکه په دې حواله سره به هم وصي پر نيکه مخکي کول کيږي.

فإن لم إلخ: د دې حاصل دا دی چي که پلار خپل وصي مقرر کړی نه وي، نو بيا نيکه د پلار په درجه کي دی چي همدا نيکه به د بچيانو (لمسيانو) په مال کي تصرّف کوي. همدا وجه ده چي نيکه ته د نکاح کولو ولايت هم حاصل دی. نو ځکه د وصي د نشتوالي په صورت کي به د تصرّف کولو ولايت هم هغه ته حاصل وي. لېکن که چيري وصي موجود وي، نو بيا په تصرّف کي هغه له نيکه څخه مخکي کيږي د مذکوره دليل په وجه. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِي الشَّهَادَةِ

(دا) کتاب په (بيان د احکامو د) "ګواهۍ" کي دی

**تشريح:** مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د وصيت احکام بيان کړل. اوس له دې ځايه د شهادت (ګواهۍ) احکام بيانوي. له وصيت څخه د شهادت د مؤخر کولو وجه دا ده چي وصيت اصل دی او شهادت عارض دی، او ښکاره ده چي عارض له اصل څخه مؤخّر او وروسته وي، نو ځکه يې د شهادت احکام د وصيت تر احکامو وروسته بيان کړي دي.

**که دوه وصيان د بل چا د وصي کېدلو ګواهي ورکړي، نو څه حکم دی؟**

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ الْوَصِيَّانِ أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصٰى إِلٰى فُلَانٍ مَعَهُمَا فرمايي: او کله چي دوه وصيان دا ګواهي ورکړي چي مړي د دوی دواړو سره فلانکي ته [هم] وصيت کړی دی [يعني فلانکی يې هم زموږ سره وصي جوړ کړی دی. خو فلانکی (مشهود لهٗ) د دې دعوىٰ نه وکړي] فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ نو ګواهي باطله ده [چي نه به قبلول کيږي] لِأَنَّهُمَا مُتَّهَمَانِ فِيهَا ځکه چي دا دواړه په خپله ګواهۍ کي متهم دي لِإِثْبَاتِهِمَا مُعِينًا لِأَنْفُسِهِمَا ځکه چي دوی [په خپله ګواهي] سره د خپلو ځانو لپاره يو مرستيال ثابتوي قَالَ: إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَهَا الْمَشْهُودُ لَهٗ فرمايي: مګر دا چي مشهود لهٗ د وصايت [وصي کېدلو] دعوىٰ وکړي [نو د دوی ګواهي به قبلول کيږي] وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَهُوَ فِي الْقِيَاسِ كَالْأَوَّلِ او دا [د ګواهۍ قبلول...] په قياس کي د اول صورت په څېر دی [چي دا ګواهي به نه قبلول کيږي. له اول صورت څخه مراد دا دی چي کله مشهود لهٗ د وصايت دعوىٰ نه وکړي] لِمَا بَيَّنَّا مِنَ التُّهْمَةِ د هغه تهمت په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ لِلْقَاضِي وِلَايَةَ نَصْبِ الْوَصِيِّ ابْتِدَاءً د استحسان دليل دا دی چي قاضي ته ابتداءً د وصي درولو [مقرّرولو] ولايت سته أَوْ ضَمَّ آخَرَ إِلَيْهِمَا بِرِضَاهُ بِدُونِ شَهَادَتِهِمَا يا د دوو وصيانو سره د هغوی له ګواهۍ څخه بغير د بل وصي د ضمولو ولايت ورته سته فَيَسْقُطُ بِشَهَادَتِهِمَا مُؤْنَةُ التَّعْيِينِ عَنْهُ نو د هغوی په ګواهۍ سره [صرف] د وصي متعيّنولو مشقت له

قاضي څخه ساقطیږي أَمَّا الْوِصَايَةُ تَثْبُتُ بِنَصْبِ الْقَاضِيْ او کوم چي وصایت [وصي کېدل] دي هغه د قاضي په درولو [مقررولو] سره ثابتیږي.

**اللغات:** ﴿متهمان﴾ تثنيه د مُتَّهَمٌ ده، دافتعال د باب مفعول دی: تورن، تومتي، پر چا چي څه تهمت وي، ﴿ضم﴾ د نصر د باب مصدر دی: يو څه د بل سره يو ځای کول، ور سره اضافه کول، ﴿مؤنة﴾ مشقت، بار، خرچ او لګښت.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي زيد مثلاً خالد او حامد د ځان وصيان جوړ کړل، بيا دې دواړو ګواهي ورکړه چي موصي (زيد) زموږ سره شاکر هم وصي جوړ کړی دی، نو که چيري شاکر هم دا دعویٰ وکړه چي هو! موصي زه هم وصي ټاکلی يم، نو بيا د دواړو وصيانو ګواهي مقبوله ده، لېکن که مشهود لهٗ يعني شاکر دعویٰ نه وکړي، نو د دوی ګواهي باطله ده لهذا هغه به نه قبلول کيږي؛ ځکه په دې صورت کي دواړه وصيان په خپله ګواهۍ کي متهم او تورن دی؛ ځکه په دې صورت کي دوی په خپله ګواهۍ سره د ځان لپاره يو مُعين او مرستيال مقرّر کوي، او د متهم کس ګواهي نه قبليږي.

خو د مشهود لهٗ (شاکر) د دعوې کولو په صورت کي فقهاؤ د وصيانو ګواهي استحساناً معتبره منلې ده، کنې قياساً په دې صورت کي هم د دوی ګواهي باطله ده؛ د استحسان دليل دا دی چي قاضي ته ابتداءً هم د وصي مقرّرولو ولايت حاصل دی (چي د مړي له طرفه وصي مقرّر کړي) همدارنګه قاضي ته د يوه وصي سره د بل وصي د ضمولو (يو ځای کولو) ولايت هم حاصل دی په دې شرط چي هغه بل وصي کوم چي ور سره ضمول کيږي په وصايت راضي وي، او د دغه ضمّ لپاره د نورو وصيانو ګواهي ضروري نه ده، لهذا کله چي بغير له ګواهۍ څخه قاضي ته د وصي مقرّرولو او ضمولو حق حاصل دی، نو په ګواهۍ سره به هم هغه ته دا حق حاصل وي، خو د ګواهۍ په صورت کي له قاضي څخه د تعيين مشقت ختميږي چي وصي دهغه له کوښښ او تعيين څخه بغير د ګواهانو د ګواهۍ په وجه متعيّن کيږي، يا په بله وينا دا چي کله قاضي ته خپله د وصي مقرّر کولو ولايت حاصل دی، نو دلته د وصيانو د ګواهۍ د قبلولو مطلب دا سو چي د دغه دريم وصي مقرّرول (درول) خو قاضي کړي دي، خو د دواړو وصيانو د ګواهۍ په وجه قاضي صرف د وصي د تعيين (متعيّنولو) له مشقت څخه خلاص سو، لنډه دا چي د وصايت ثبوت د دوی په ګواهۍ سره نه بلکي د قاضي په مقرّرولو سره سوی دی.

## که دوه زامن د یو چا د وصي کېدلو ګواهي ورکړي، نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَكَذٰلِكَ الِابْنَانِ فرمايي: او همدارنګه دوه زامن مَعْنَاهُ إِذَا شَهِدَا أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصٰى إِلٰى رَجُلٍ يعني کله چي دوه زامن دا ګواهي ورکړي چي مړي فلانکي کس ته وصيت کړی دی [يعني زموږ مړه پلانکی فلانکی کس خپل وصي جوړ کړی دی] وَهُوَ يُنْكِرُ حال دا چي هغه [فلانکی] انکار کوي [نو وصيت باطل دی] لِأَنَّهُمَا يَجُرَّانِ إِلٰى أَنْفُسِهِمَا نَفْعًا بِنَصْبِ حَافِظٍ لِلتَّرِكَةِ ځکه چي دوی دواړه [په خپله ګواهي سره] خپلو ځانو ته نفع کشوي د ميراث لپاره د ساتونکي [نګران] په درولو سره وَلَوْ شَهِدَا يَعْنِي الْوَصِيَّيْنِ لِوَارِثٍ صَغِيرٍ بِشَيْءٍ مِنْ مَالِ الْمَيِّتِ أَوْ غَيْرِهِ او که چيري دوی دواړه يعني دوه وصيان د يو کوچني وارث لپاره د مړي له مال [ميراث] څخه يا له بل مال څخه د يو شي ګواهي ورکړي فَشَهَادَتُهُمَا بَاطِلَةٌ نو د دوی ګواهي باطله ده لِأَنَّهُمَا يُظْهِرَانِ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ لِأَنْفُسِهِمَا فِي الْمَشْهُودِ بِهِ ځکه چي دوی دواړه [په خپل دغه ګواهي سره] د خپلو ځانو لپاره په مشهود بهٖ مال کي د تصرّف ولايت ښکاره کوي.

**اللغات:** ﴿يجرّان﴾ د نصر له بابه د تثنيه غائب مضارع صيغه ده: کشول، را منتقل کول. ﴿نَصْب﴾ د نصر او ضرب له باب څخه مصدر دی: درول، مقرر کول (ټاکل). ﴿مشهود﴾ د سمع له بابه د مفعول صيغه ده. مشهود بهٖ: د کوم څه په باره کي چي ګواهي ورکول سوې وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د مړي دوو زامنو دا ګواهي ورکړه چي زموږ پلار فلانکی سړی مثلاً حامد خپل وصي جوړ کړی وو. او حامد د دې انکار وکړی، نو د دوی ګواهي باطلېږي او په دې سره وصايت نه ثابتېږي؛ ځکه دا دوه زامن په خپله ګواهي کي متهم دي يعني د خپلې نفعې او فايدې لپاره دا ګواهي ورکوي (او نفع دا) چي زموږ د پلار د ميراث د حفاظت لپاره يو نګران پيدا سي او زموږ مال له ضايع کېدلو څخه خوندي سي، نو ځکه د دوی ګواهي باطلېږي.

ولو شهدا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د يو مړي دوه وصيان وي او د هغه وارث کوچنی بچی (نابالغ) وي، اوس که دغه دواړو وصيانو د هغه بچي لپاره له ميراث څخه د يو مال ګواهي ورکړه چي دا مال د دغه بچي دی. يا له ميراث څخه بغير د بل مال په هکله يې دا ګواهي ورکړه چي هغه مال د دغه بچي دی، نو د هغوی ګواهي باطله ده او نه به قبلول کېږي؛ ځکه دا دوه وصيان په خپله ګواهي کي متهم دي؛ ځکه په دغه ګواهي کي د دوی نفع ده په دې توګه چي که هغه مال د دې بچي لپاره ثابت سي او د بچي په ملکيت کي داخل سي، نو دوی ته پر هغه هم د تصرّف ولايت او اختيار حاصلېږي؛ لهذا

دوی په خپله ګواهۍ کي متهم دي او د متهم ګواهي باطله او غیر مقبوله وي. نو ځکه د دوی ګواهي به هم باطله وي.

**که د مړي دوه وصیان د بالغ وارث په حق کي ګواهي ورکړي، نو څه حکم دی؟**

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَا لِوَارِثٍ كَبِيرٍ فِي مَالِ الْمَيِّتِ فرمايي: او که دوو وصیانو د مړي په مال [میراث] کي د لوی [بالغ] وارث لپاره ګواهي ورکړه لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي وَإِنْ كَانَ فِي غَيْرِ مَالِ الْمَيِّتِ او که ګواهي د مړي له مال څخه بغیر په بل مال کي وي جَازَ نو جائز دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا❁: إِنْ شَهِدَا لِوَارِثٍ كَبِيرٍ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که دواړه وصیان د لوی [بالغ] لپاره ګواهي ورکړي تَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ نو په دواړو صورتونو کي جائز دي لِأَنَّهُ لَا يَثْبُتُ لَهُمَا وِلَايَةُ التَّصَرُّفِ فِي التَّرِكَةِ إِذَا كَانَتِ الْوَرَثَةُ كِبَارًا ځکه چي [په دغه ګواهۍ سره] د دې دواړو وصیانو لپاره په میراث کي د تصرّف ولایت نه ثابتیږي کله چي وارثان لویان وي فَعَرِيَتْ عَنِ التُّهْمَةِ نو ګواهي له تهمت څخه خالي سوه وَلَهُ: أَنَّهُ يَثْبُتُ لَهُمَا وِلَايَةُ الْحِفْظِ وَوِلَايَةُ بَيْعِ الْمَنْقُولِ عِنْدَ غَيْبَةِ الْوَارِثِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي د وارث د غائبوالي په وخت کي د دې دواړو لپاره د حفاظت کولو ولایت او د نقل کېدونکي مال د خرڅولو ولایت ثابتیږي فَتَحَقَّقَتِ التُّهْمَةُ نو تهمت ثابت سو بِخِلَافِ شَهَادَتِهِمَا فِي غَيْرِ التَّرِكَةِ په خلاف له میراث څخه بغیر په بل مال کي د دوی دواړو [وصیانو] د ګواهۍ لِانْقِطَاعِ وِلَايَةِ وَصِيِّ الْأَبِ عَنْهُ ځکه چي له هغه [غیر میراث (بل مال)] څخه د پلار د وصي ولایت منقطع دی لِأَنَّ الْمَيِّتَ أَقَامَهُ مُقَامَ نَفْسِهِ فِي تَرِكَتِهِ لَا فِي غَيْرِهَا ځکه چي مړي هغه [وصي] صرف په خپل میراث کي د ځان قائم مقام کړی دی، نه په بل مال کي.

**اللغات:** ﴿عریت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: خالي کېدل. ﴿تحققت﴾ د تفعل له بابه مخکنۍ صیغه ده: موجودېدل او ثابتېدل. ﴿غیبة﴾ غائب والی، نا موجودیت (غیر موجودګی). ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: پرېکېدل، ختمېدل.

---

❁ القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۳۸۷]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د مړي دوه وصیان د بالغ وارث په حق کي ګواهي ورکړي. او هغه ګواهي د مړي د مال یعني د میراث په هکله وي، نو جائز نه ده، لېکن که له میراث څخه بغیر د یو بل مال په هکله وي، نو جائز ده؛ دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي کله ګواهي د بالغ وارث (کبیر) لپاره وي، نو مطلقاً جائز ده برابره ده د میراث په باره کي وي او که له هغه څخه بغیر د بل مال په باره کي وي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي کله وارثان لویان او بالغان وي او ګواهي له هغو څخه د یوه په حق کي وي، نو ښکاره ده چي وصیانو ته په دغه ګواهي سره د تصرّف ولایت نه حاصلیږي، لهٰذا په دغه ګواهي کي د هغو نفع نسته چي متّهم وګرځي، نو ځکه د بالغ وارث په حق کي به دا ګواهي مقبوله وي.

ولهٗ إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي کله ګواهي د مړي د مال (میراث) په هکله وي، نو هغوی خامخا متهم کیږي، ځکه که څه هم د وارث په موجودیت کي وصیانو ته د تصرّف ولایت نه حاصلیږي، لېکن د وارث په نا موجودیت کي وصیانو ته د هغه د مال د حفاظت کولو او د هغه د منقولي مال (سامان وغیره) د خرڅولو ولایت خامخا حاصلیږي، لهذا تهمت ثابتیږي، نو ځکه د مړي د مال (میراث) په هکله به د دوی ګواهي خو باطله او غیر مقبوله وي. ها! د مړي له مال څخه بغیر د بل مال په هکله د دوی ګواهي مقبوله ده؛ ځکه چي له میراث څخه بغیر په بل مال کي وصیانو ته د ولایت حق نسته، ځکه موصي هغوی صرف په خپل مال او میراث کي وصیان جوړ کړي دي، نه له میراث څخه بغیر په بل څه کي، نو ځکه له میراث څخه بغیر په بل مال کي هغو ته د تصرّف ولایت هم حاصل نه دی، لهذا په دې صورت کي به هغوی په خپله ګواهي کي متهم نه وي، نو ځکه د بل مال په هکله به د هغو ګواهي جائز او مقبوله وي.

## که څلور خلک یو د بل لپاره پر مړي د قرض یا د وصیت ګواهي ورکړي، نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ لِرَجُلَيْنِ عَلَى مَيِّتٍ بِدَيْنِ أَلْفِ دِرْهَمٍ فرمایي: او کله چي دوه سړي د نورو دوو سړیو لپاره پر مړي د یو زر درهمو د قرض ګواهي ورکړي وَشَهِدَ الْآخَرَانِ لِلْأَوَّلَيْنِ بِمِثْلِ ذٰلِكَ او دا نورو دوو سړیو [مشهود لهما] د اول دوو سړیو لپاره په همدې ډول ګواهي ورکړه جَازَتْ شَهَادَتُهُمَا نو د دوی دواړو [یعني د هر فریق] ګواهي جائز ده فَإِنْ كَانَتْ شَهَادَةُ كُلِّ فَرِيقٍ لِلْآخَرِ بِوَصِيَّةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ او که د هر فریق ګواهي د بل فریق لپاره د یو زر درهمو د وصیت ګواهي وي لَمْ تَجُزْ نو جائز نه ده وَهٰذَا

قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ❁ : لَا تُقْبَلُ فِي الدَّيْنِ أَيْضًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په قرض کي به هم دا ګواهي نه قبلول کيږي وَأَبُوْ حَنِيْفَةَ فِيْمَا ذَكَرَ الْخَصَّافُ مَعَ أَبِي يُوْسُفَ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د هغه روايت مطابق کوم چي امام خصاف ذکر کړی دی د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی وَعَنْ أَبِي يُوْسُفَ مِثْلُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څېر روايت سوی دی

**اللغات:** ﴿دَين﴾ قرض (قرضه)، پور، ﴿لا تُقبل﴾ د سمع له بابه د نفي مجهول صيغه ده: قبلول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي يو سړی مثلاً زيد مړ سو او بيا دوو خلکو مثلاً خالد او حامد دا ګواهي ورکړه چي د شاکر او عُمر پر زيد زر درهمه قرض باندي دی او شاکر او عمُر هم دا ګواهي ورکړه چي د خالد او حامد پر زيد زر درهمهٔ قرض باندي دی، نو دا ګواهي جائز ده، لهذا هغه به قبلول کيږي، لېکن که هر فريق د بل فريق په هکله دا ګواهي ورکړه چي مړي (زيد) د هغو لپاره د زرو درهمو وصيت کړی دی، نو دا ګواهي جائز نه ده.

په وصيت کي د ګواهۍ نه جائز کېدل متفق عليه دي، لېکن د قرض په هکله د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ګواهي جائز ده چي هغه به قبلول کيږي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه ده چي نه به قبلول کيږي بلکي هغه به ردول کيږي.

وأبوحنيفة إلخ: فرمايي چي د امام خصاف رَحِمَهُ الله د روايت مطابق امام صاحب رَحِمَهُ الله هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره يو ځای دی، لېکن له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څېر نقل سوی دی چي دا ګواهۍ جائز ده چي هغه به قبلول کيږي.

## د پورتنی مسئلې دلائل

وَجْهُ الْقَبُوْلِ أَنَّ الدَّيْنَ يَجِبُ فِي الذِّمَّةِ او د ګواهۍ قبلېدلو وجه دا ده چي قرض پر ذمه واجبېږي وَهِيَ قَابِلَةٌ لِحُقُوْقٍ شَتّٰى او ذمه مختلفه حقونه قبلولای سي فَلَا شِرْكَةَ نو شرکت نسته وَلِهٰذَا لَوْ تَبَرَّعَ أَجْنَبِيٌّ بِقَضَاءِ دَيْنِ أَحَدِهِمَا همدا وجه ده که يو اجنبي کس له دوی دواړو څخه د يوه فريق د قرض په

---

❁ القول الراجح: قول ابی يوسف رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:٢، ص:٣٨٨]

اداء کولو سره تبرّع وکړي [احساناً دیوه فریق قرض اداء کړي] لَيْسَ لِلْآخَرِ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ نو بل فریق ته [په هغه کي] د شرکت کولو حق نسته وَجْهُ الرَّدِّ أَنَّ الدَّيْنَ بِالْمَوْتِ يَتَعَلَّقُ بِالتَّرِكَةِ او د ګواهۍ رد کېدلو دلیل دا دی چي د مرګ په وجه قرض د میراث سره متعلق کیږي إِذِ الذِّمَّةُ خَرِبَتْ بِالْمَوْتِ ځکه چي د مرګ په وجه ذمه خرابه [ضایع] سوه وَلِهَذَا لَوِ اسْتَوْفَى أَحَدُهُمَا حَقَّهُ مِنَ التَّرِكَةِ همدا وجه ده چه که د دواړو فریقو څخه یو فریق له میراث څخه خپل حق [قرض] ترلاسه کړي يُشَارِكُهُ الْآخَرُ فِيهِ نو بل شریک [هم] په هغه کي ور سره شریک کیږي فَكَانَتِ الشَّهَادَةُ مُثْبِتَةً حَقَّ الشَّرِكَةِ نو دا ګواهي د شرکت د حق ثابتونکې سوه فَتَتَحَقَّقُ التُّهْمَةُ لهذا تهمت ثابت سو بِخِلَافِ حَالِ حَيَاةِ الْمَدْيُونِ په خلاف د مقروض د ژوند د حالت لِأَنَّهُ فِي الذِّمَّةِ لِبَقَائِهَا لَا فِي الْمَالِ ځکه چي [د ژوند په حالت کي] قرض پر ذمه [واجب] وي د ذمې د پاتېدلو په وجه، نه په مال کي فَلَا يَتَحَقَّقُ الشَّرِكَةُ نو شرکت به نه ثابتیږي.

**اللغات:** ﴿شتّى﴾ جمع د شَتِيْتٌ ده: مختلف او متفرق، یو له بل څخه جلا. بېلا بېل. ﴿تبرّع﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: غیرِ واجب کار کول. احساناً یو کار کول (چي پر هغه د څه عوض طلب نه وي)، بلا عوضه کول، مفت یو شی ورکول. ﴿استوفى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره اخیستل، ترلاسه کول. ﴿مدیون﴾ د ضرب له بابه د مفعول صیغه ده: مقروض (پور وړی).

**تشریح:** مخکي چي د ګواهۍ د قبول او ردّ په هکله کوم دوه قولونه بیان سول، په دې عبارت کي د هغوی دواړو دلیلونه بیان سوي دي، نو د ګواهۍ د مقبولیت (چي هغه به قبول کیږي) دلیل دا دی چي قرض د انسان پر ذمّه (غاړه) واجب وي او ذمّه مختلفه حقوق قبلولای سي. یعني د یوې ذمې سره د څو خلکو حقوق متعلق کېدلای سي په انفرادي توګه هم او په اجتماعي توګه هم. لهذا کله چي مذکوره دواړو فریقو جلا، جلا یو د بل لپاره ګواهي ورکړه، نو دا ګواهي د مشهودٌ لهٗ فریق لپاره سوه، نه د شاهدانو (ګواهانو) لپاره، او کله چي ګواهي د ګواهانو لپاره نه سوه، نو ښکاره ده چي ګواهان په خپله ګواهۍ کي متهم هم نه سول، نو ځکه د هغو ګواهي به قبول کیږي. همدا وجه ده که د مړي (زید) له طرفه یو څوک تبرعاً له مذکوره دواړو فریقو څخه دیوه فریق قرض اداء کړي، نو په هغه کي بل فریق نه شاملیږي او نه شریک کیږي؛ ځکه د هر یوه فریق ګواهي له بل فریق څخه جلا او علیحده ده.

**وجه الردّ إلخ:** فرمايي چي د گواهۍ د ردّاو نامقبوليت د قول (چي هغه به نه قبلول کيږي) دليل دا دی چي کله مقروض (زيد) مړ سو، نو اوس پر ذمه قرض باقي پاته نه سو؛ ځکه په مرګ سره ذمه معدومه سوه، اوس پر ذمه واجب سوی قرض د هغه د ميراث سره متعلق سو، او کله چي د قرض تعلّق د ذمې سره نه بلکي د ميراث سره سو، نو شرکت ثابت سو (يعني د مړي په ميراث کي دواړه فريقه مشترک سول چي هر فريق ته به له هغه څخه قرض ورکول کيږي)، ځکه چي د هر فريق په حق کي گواهي ورکول سوې ده، نو دا گواهي د شرکت ثابتونکې سوه، او کله چي شرکت ثابت سو، نو تهمت ثابت سو چي په دې گواهي سره هر فريق خپل قرض ترلاسه کول غواړي، او تهمت د گواهۍ له مقبوليت څخه مانع دی.

دلته د شرکت يو دليل دا هم دی چي که له دواړو فريقو څخه يو فريق له ميراث څخه خپل قرض واخلي، نو بل فريق په هغه کي شريک کيږي، او همدا د بل فريق پکښي شريک کېدل د شرکت دليل دی. د دې په خلاف که مقروض خپله ژوندی وي، نو قرض د هغه د ذمې سره متعلق وي، او په ذمه کي شرکت نه ثابتيږي، نو ځکه په هغه صورت کي گواهي مقبوله ده او د مقروض د مرګ په صورت کي گواهي سردوده او غير مقبوله ده.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

| |
|---|
| قَالَ: وَلَوْشَهِدَا أَنَّهُ أَوْصٰى لِهٰذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِجَارِيَتِهٖ فرمايي: او که دوو کسانو دا گواهي ورکړه چي مړي د دغه دوو سړيو لپاره د خپلې مينځي وصيت کړی دی وَشَهِدَ الْمَشْهُوْدُ لَهُمَا او مشهود لهما سړيو [يعني د کومو دوو سړيو لپاره چي گواهي ورکول سوې ده. هغوی] دا گواهي ورکړه أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصٰى لِلشَّاهِدَيْنِ بِعَبْدِهٖ چي مړي د دې دوو گواهانو لپاره د خپل غلام وصيت کړی دی جَازَتِ الشَّهَادَةُ بِالْاِتِّفَاقِ نو گواهي بالاتفاق جائز ده لِأَنَّهُ لَاشِرْكَةَ ځکه چي شرکت نسته فَلَاتُهْمَةَ نو تهمت [هم] نسته. |

**اللغات:** ﴿جارية﴾ مينځه. ﴿شهادة﴾ گواهي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که دوو کسانو مثلاً خالد او حامد دا گواهي ورکړه چي مړي مثلاً زيد خپله مينځه د شاکر او عُمر لپاره وصيت کړې ده او دا بل فريق (يعني شاکر او عُمر) د اول فريق (خالد او حامد) لپاره دا گواهي ورکړه چي مړي (زيد) خپل غلام د دوی لپاره وصيت کړی دی، نو دا گواهي جائز او مقبوله ده چي هغه به قبلول کيږي که څه هم هغه د وصيت سره متعلق ده. او په دې کي د هيڅ اختلاف هم نسته؛ ځکه چي دلته مشهود به جلا، جلا دي (په يوه گواهۍ کي مينځه ده او په بله گواهۍ کي غلام دی)، لهذا شرکت معدوم دی او کله چي شرکت معدوم دی، نو تهمت هم معدوم دی او د گواهۍ د مقبوليت لاره بلکل صفا ده.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْ شَهِدَا أَنَّهُ أَوْصٰى لِهٰذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِثُلُثِ مَالِهِ او که چيرې دوو کسانو دا ګواهي ورکړه چې مړي د دغه دوو سړيو لپاره د خپل مال د درېيمي حصې وصيت کړی دی وَشَهِدَ الْمَشْهُوْدُ لَهُمَا أَنَّهُ أَوْصٰى لِلشَّاهِدَيْنِ بِثُلُثِ مَالِهِ او مشهود لهما سړيو دا ګواهي ورکړه چې مړي د دې دوو ګوهانو لپاره د خپل مال د درېيمي حصې وصيت کړی دی فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ نو ګواهي باطله ده وَكَذَا إِذَا شَهِدَ الْأَوَّلَانِ أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصٰى لِهٰذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِعَبْدٍ او همدارنګه کله چې اولو دوو کسانو دا ګواهي ورکړه چې مړي د دغه دواړو سړيو لپاره د غلام وصيت کړی دی وَشَهِدَ الْمَشْهُوْدُ لَهُمَا أَنَّهُ أَوْصٰى لِلْأَوَّلَيْنِ بِثُلُثِ مَالِهِ او مشهود لهما سړيو دا ګواهي ورکړه چې مړي د اولو دوو کسانو لپاره د خپل مال د درېيمي حصې وصيت کړی دی فَهِيَ بَاطِلَةٌ نو [هم] ګواهي باطله ده لِأَنَّ الشَّهَادَةَ فِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ مُثْبِتَةٌ لِلشَّرِكَةِ ځکه چې ګواهي په دغه صورت کې د شرکت ثابتونکې ده.

**اللغات**: ﴿ثُلُث﴾ او ثُلْث: درېيمه حصه، ﴿مشهود﴾ د سمع له بابه د مفعول صيغه ده، مشهود لهما: د کوم دوو کسانو لپاره چې ګواهي ورکول سوې وي، ﴿مُثْبِتَة﴾ د افعال له بابه د مؤنث مفعول صيغه ده: ثابتونکی.

**تشريح**: مخکې دا خبره تېره سوه چې په کوم صورت کې چې ګواهي د شرکت ثابتونکې وي، نو ګواهي باطلېږي، د هغه مطابق دلته دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که دوو کسانو مثلاً خالد او حامد دا ګواهي ورکړه چې مړي (زيد) د فلانکي او فلانکي مثلاً د شاکر او عُمر لپاره د خپل مال د ثلث (درېيمي حصې) وصيت کړی دی او شاکر او عُمر (کوم چې مشهود لهمادي) هم دا ګواهي ورکړه چې مړي د هغو (خالد او حامد) لپاره د خپل مال د ثلث وصيت کړی دی، نو دا ګواهي باطله ده، او هيڅ فريق ته هم څه نه حاصلېږي؛ ځکه چې دلته مشهود به يو (ثلث) دی او په مذګوره ګواهۍ سره په هغه کې شرکت ثابت کړی سوی دی، نو ځکه دا ګوهي باطله ده.

(۲)... که اول فريق (خالد او حامد) دا ګواهي ورکړه چې مړي د دويم فريق (شاکر او عُمر) لپاره د خپل غلام وصيت کړی دی او دويم فريق دا ګواهي ورکړه چې مړي د اول فريق لپاره د خپل ثلث مال وصيت کړی دی، نو دا ګواهي هم باطله ده؛ ځکه دلته مشهود به که څه هم لفظاً مختلف دي، لېکن معناً يو دي؛ ځکه غلام هم مال دی او په ثلث کې داخل دی (ځکه چې وصيت په ثلث کې جاري کېږي)، لهذا شرکت ثابت سو. او کومه ګواهي چې د شرکت ثابتونکې وي، هغه باطلېږي، نو ځکه دا ګواهي هم باطله ده. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# كِتَابُ الْخُنْثٰى

(دا) کتاب د "نر ښځي" (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح**: په یوه انسان کي هغه که نارینه وي او که ښځینه وي عموماً یوه آله وي، او په انسان کي د دوو آلو جمع کېدل ډېر نادر دي او کله نا کله داسي کیږي (چي داسي انسان ته خُنثیٰ او نر ښځی [نر ګډی] وايي)، لهذا کله چي دا نادر دي، نو ځکه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د خنثیٰ د احکامو او مسائلو کتاب تر ټولو په آخر کي بیان کړی دی.

# فَصْلٌ فِيْ بَيَانِهٖ

(دا) فصل د "خنثیٰ" (د پېژندني) په بیان کي دی

### د خنثیٰ تعریف او پېژندنه

قَالَ: وَإِذَا كَانَ لِلْمَوْلُودِ فَرْجٌ وَذَكَرٌ فرمايي: او کله چي بچي لره فرج او ذکر دواړه وي فَهُوَ خُنْثٰى نو هغه خنثیٰ [نر ښځی] دی فَإِنْ كَانَ يَبُوْلُ مِنَ الذَّكَرِ بیا که هغه له ذکر څخه متیازي کولې فَهُوَ غُلَامٌ نو هغه هلک دی وَإِنْ كَانَ يَبُوْلُ مِنَ الْفَرْجِ او که له فرج څخه یې متیازي کولې فَهُوَ أُنْثٰى نو هغه ښځه ده لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] سُئِلَ عَنْهُ كَيْفَ يُوَرَّثُ؟ ځکه له نبي کريم ﷺ څخه د خنثیٰ په هکله پوښتنه وسوه چي هغه ته به میراث څنګه ورکول کیږي؟ [د سړیو په څېر او که د ښځو؟ یا په بله وینا دا چي خنثیٰ څنګه وارث کیږي، د سړیو په څېر او که د ښځو؟] فَقَالَ: مِنْ حَيْثُ يَبُوْلُ نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: چي له کوم ځایه چي هغه متیازي کوي [یعني که له ذکر څخه متیازي کوي نو د سړیو میراث به ورکول کیږي او

[1] تخریج: أخرجه البيهقي في كتاب الفرائض، باب ميراث الخنثى، حديث رقم: ۱۲۵۱۸. (احسن الهدایه)

که له فرج څخه نو د ښځو...] وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ مِثْلُهُ او له حضرت علي ﷺ څخه د همدې په څېر روایت سوی دی وَلِأَنَّ الْبَوْلَ مِنْ أَيِّ عُضْوٍ كَانَ او ځکه متيازي چي له كوم اندام څخه وي فَهُوَ دَلَالَةٌ عَلَى أَنَّهُ هُوَ الْعُضْوُ الْأَصْلِيُّ الصَّحِيحُ نو هغه پر دې خبره دليل دی چي هماغه صحيح اصلي اندام دی وَالْآخَرُ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ او بل اندام [چي له هغه څخه متيازي نه وځي] د عيب په درجه كي دی.

**اللغات:** ﴿مولود﴾ د ضرب له بابه د مفعول صيغه ده: پيدا كېدونكی، بچی. ﴿فَرج﴾ د ښځي شرمگاه. ﴿ذَكَر﴾ د نارينه تناسلي (زېږنی) اندام، تناسلي آله. ﴿خنثى﴾ نرښځی كوم چي ذكر او فرج دواړه لري. ﴿يبول﴾ د نصر د باب مضارع ده: متيازي (بولي) كول. ﴿يورث﴾ د ضرب له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: وارث كېدل، چا ته ميراث حاصلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي كه د يو بچي هم د نارينه اندام (ذَكَر) وي او هم يې ښځينه اندام (فَرْج) وي يعني په پيدايشي توگه په هغه كي د نر او ښځي دواړو آلې او علامات وي، داسي محترم ته خنثىٰ وايي (چي زموږ په اصطلاح نرښځي او نرگدې ورته وايي)، او د هغه حكم دا دی چي كه هغه له ذَكَر څخه متيازي كوي، نو هغه هلک دی، او كه له فرج څخه متيازي كوي، نو انجلۍ ده او د مؤنث په صف كي داخله ده؛ دليل يې دا دی چي كله له نبي كريم ﷺ څخه د خنثىٰ په هلكه پوښتنه وسوه چي داسي انسان ته به څنگه ميراث وركول كيږي؟، د سړيو ميراث به وركول كيږي او كه د ښځو په څېر حصه به وركول كيږي او ښځه به شمېرل كيږي، نو نبي كريم ﷺ وفرمايل چي داسي انسان چي له كومه اندامه څاځي، د هغه اعتبار وكړئ!، يعني كه هغه له ذَكَر څخه متيازي كوي نو هغه نارينه وگڼئ او د سړيانو ميراث وركړئ! او كه له فرج څخه متيازي كوي نو ښځه يې وگڼئ او د ښځو ميراث وركړئ!. همداسي فيصله له حضرت علي ﷺ څخه هم نقل سوې ده، كوم چي په مصنف عبد الرزاق كي مذكوره ده.

په دې هكله عقلي دا دی چي داسي انسان چي كوم له اندام څخه متيازي كوي، نو هغه د دې خبري دليل دی چي همدا يې اصلي او حقيقي اندام دی او همدا اندام يې صحيح دی او هغه دويم اندام د عيب په درجه كي دی، نو ځكه د داسي انسان د مذكر يا مؤنث شمېرلو په هكله به د هغه د متيازو (بولو) د مقام اعتبار كيږي.

## که خنثیٰ له دواړو لارو څخه متیازي کوي، نو څه حکم دی؟

وَإِنْ بَالَ مِنْهُمَا او که هغه له دواړو څخه متیازي کوي فَالْحُكْمُ لِلْأَسْبَقِ نو حکم د مخکینۍ یوه لپاره دی لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلَالَةٌ أُخْرٰی عَلٰی أَنَّهُ هُوَ الْعُضْوُ الْأَصْلِيُّ ځکه چې دا بل دلیل دی پر دې خبره چې هماغه اصلي اندام دی.

**اللغات**: ﴿أسبق﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: تر ټولو مخکنی. مخکې کېدونکی.

**تشریح**: فرمایي چې که خنثیٰ (نربنځی) له خپل ذکر او فرج دواړو څخه متیازي کوي. نو د دې اعتبار به کیږي چې اول د هغه له کوم اندام څخه متیازي وځي. یعني د هغه له ذکر څخه مخکې وځي او که له فرج څخه او د همدې مطابق به پر هغه د مذکر یا مؤنث فیصله کول کیږي: ځکه له کوم یوه څخه چې مخکې متیازي وځي، دا د هغه د اصلي اندام کېدلو دلیل دا دی چې همدا یې اصلي او حقیقي اندام دی: ځکه متیازي مخکې له هغه لاري څخه وځي کوم چې د ده اصلي نالي ده او تر هغه وروسته له بلې لاري څخه متیازي وتل د مرض او عیب علامت دی چې هغه لره اعتبار نشته. همدارنګه له کومې لاري څخه چې اولاً متیازي وځي، د هغه هیڅ معارض موجود نه دی. نو ځکه هغه به یې اصلي اندام ګڼل کیږي او د هغه مطابق به فیصله کول کیږي.

## که د خنثیٰ له دواړو اندامونو څخه یو ځای متیازي وځي، نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَا فِي السَّبْقِ عَلَى السَّوَاءِ او که دواړه اندامونه [د متیازو] په مخکیوالي کې سره برابر وي فَلَا مُعْتَبَرَ بِالْكَثْرَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د متیازو] زیاتوب لره اعتبار نشته وَقَالَا: يُنْسَبُ إِلٰى أَكْثَرِهِمَا بَوْلًا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې هغه [مولود خنثیٰ] به له دواړو اندامونو څخه د زیاتو متیازو والا لره منسوبول کیږي لِأَنَّهُ عَلَامَةُ قُوَّةِ ذٰلِكَ الْعُضْوِ وَكَوْنُهُ عُضْوًا أَصْلِيًّا ځکه چې دا [د متیازو کثرت] د هغه اندام د قوي کېدلو او د هغه د اصلي کېدلو دلیل دی وَلِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ فِي أُصُوْلِ الشَّرْعِ او ځکه چې د شریعت په اُصولو کې زیات یوه لره د کُل حکم حاصل وي فَيَتَرَجَّحُ بِالْكَثْرَةِ نو ځکه د زیاتوب په وجه به راجح کیږي [یعني ترجیح به د کثرت په وجه وي] وَلَهُ:

أَنَّ كَثْرَةَ الْخُرُوجِ لَيْسَ يَدُلُّ عَلَى الْقُوَّةِ دامام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي د وتلو زیاتوب [زیاتي متیازي وتل] پر قوت دلالت نه کوي لِأَنَّهُ قَدْ يَكُونُ لِاتِّسَاعٍ فِي أَحَدِهِمَا وَضِيقٍ فِي الْآخَرِ ځکه چي دا زیاتوب ځیني وخت له دوی ځخه دیوه اندام د پراخوالي او د بل د تنګوالي په وجه وي وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ مِنْهُمَا عَلَى السَّوَاءِ او که چیري له دواړو ځخه په برابره توګه متیازي وځي فَهُوَ مُشْكِلٌ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق هغه خنثیٰ مشکل دی لِأَنَّهُ لَا مُرَجِّحَ ځکه چي [په دې صورت کي] هیڅ ترجیح ورکونکی نشته.

**اللغات**: ﴿سبق﴾ د نصر او ضرب له باب ځخه مصدر دی: مخکي کېدل، وړاندیتوب کول. ﴿یترجّح﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: راجح کېدل، غالب کېدل. ﴿اتساع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پراخوالی، پراخ کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که چیري له دواړو اندامونو ځخه یو ځای متیازي وځي یا په بله وینا دا چي د متیازو په خروج کي یو اندام له بل ځخه اسبق او مخکي نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دې ته "خنثیٰ مشکل" وایي او د هغه د متیازو د قلت او کثرت اعتبار به نه کیږي. لېکن د صاحبینو رَحِمَهُ الله په داسي صورت کي به د متیازو د قلت او کثرت اعتبار کیږي یعني که زیاتي متیازي د هغه له ذکر ځخه وځي، نو هغه به مذکّر ګڼل کیږي او که د هغه له فرج ځخه وځي، نو هغه به مؤنث ګڼل کیږي او د همدې مطابق به فیصله کول کیږي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قلت او کثرت لره اعتبار نشته.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي له کوم اندام ځخه چي زیاتي متیازي را وځي، دا د هغه اندام د قوي کېدلو او اصلي کېدلو دلیل دی، او بل دا چي په شریعت کي د "للأكثر حكم الكل" أصول هم جاري دی، لهذا دې ته په کتلو سره به د اکثره متیازو والا اندام لره ترجیح حاصله وي او د هغه مطابق به فیصله کول کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي له يوه اندام څخه زياتي متيازي وتل د هغه اندام د قوي کېدلو دليل نه دی؛ ځکه ځيني وخت داسي کيږي چي د يوه اندام لاره پراخه وي او د بل لاره تنګه وي. لهذا د لاري د پراخوالي او تنګۍ په وجه متيازي زياتي او کمي وځي. نه د اندام د قوت او کمزورۍ په وجه. لهذا دا به د قوت او اصليت دليل نه وي.

وإن كان يخرج إلخ: فرمايي چي که له دواړو اندامونو څخه په برابره توګه متيازي وځي او داسي نه وي چي له يوه اندام څخه زياتي او له بل څخه کمي وځي. نو دا د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نيز خنثیٰ مشکل دی؛ ځکه چي د هغه په حق کي هيڅ مُرَجِّح دليل نسته چي د هغه يوه طرف ته ترجيح ورکول سي.

## د بالغ خنثیٰ د جنس پېژندلو بيان

قَالَ: وَإِذَا بَلَغَ الْخُنْثَى فرمايي: او کله چي خنثیٰ بالغ سي وَخَرَجَتْ لَهُ اللِّحْيَةُ او د هغه ږيره را ووځي أَوْ وَصَلَ إِلَى النِّسَاءِ يا هغه ښځو ته رسيږي فَهُوَ رَجُلٌ نو هغه سړی [نارينه] دی وَكَذَا إِذَا احْتَلَمَ كَمَا يَحْتَلِمُ الرَّجُلُ او همدارنګه کله چي د خلکو د احتلام په څېر هغه احتلام سي أَوْ كَانَ لَهُ ثَدْيٌ مُسْتَوٍ يا د هغه تي [سينه] برابره وي لِأَنَّ هٰذِهِ مِنْ عَلَامَاتِ الذُّكْرَانِ ځکه دا شيان د نارينه وو [سړيو] له نښو څخه دي وَلَوْ ظَهَرَ لَهُ ثَدْيٌ كَثَدْيِ الْمَرْأَةِ او که د ښځو د تيو په څېر هغه لره تي ښکاره سي أَوْ نَزَلَ لَهُ لَبَنٌ فِي ثَدْيِهِ يا د هغه په تيو کي شيدې راسي أَوْ حَاضَ يا هغه ته حيض راسي أَوْ حَبِلَ يا هغه حمل والا سي أَوْ أَمْكَنَ الْوُصُولُ إِلَيْهِ مِنَ الْفَرْجِ يا د فرج د لاري هغه ته رسېدل ممکن وي فَهُوَ امْرَأَةٌ نو هغه ښځه ده لِأَنَّ هٰذِهِ مِنْ عَلَامَاتِ النِّسَاءِ ځکه چي دا د ښځو له نښو څخه دي وَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ إِحْدَى هٰذِهِ الْعَلَامَاتِ او که له دغه نښو څخه يوه نښه ښکاره نه سي فَهُوَ خُنْثَى مُشْكِلٌ نو هغه خنثیٰ مشکل دی وَكَذَا إِذَا تَعَارَضَتْ هٰذِهِ الْمَعَالِمُ او همدارنګه کله چي دغه علامې [نښې] سره متعارضه سي.

**اللغات**: ﴿احتلم﴾ د افتعال د باب ماضي ده: احتلام کېدل (شيطان خطا ايستل). په خوب کي مني وتل. بلوغ (بالغ کېدل. چي د هغه نښه په خوب کي مني وتل دي). ﴿ثدی﴾ تي (تيان). سينه. ﴿ذُکْران﴾ جمع د ذَکَر ده چي د هغه يوه معنیٰ ده: نارينه (نر). ﴿حاض﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ښځي ته حيض راتلل. حَايضه کېدل. ﴿حَبِل﴾ د سمع د باب ماضي ده: حامله کېدل (بلاربېدل). ﴿معالم﴾ جمع د مَعْلَمٌ ده: علامت. نښه (نښاني).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي مخکيني ټوله تفصيل هغه وخت دی کله چي خنثیٰ کوچنی او نابالغ وي. خو کله چي هغه بالغ سي. نو بيا به د بلوغ نښنو (علاماتو) ته کتل کيږي او د هغه نښنو مطابق به پر هغه فيصله کول کيږي. نو که تر بلوغ وروسته د هغه ږيره راسي. يا هغه د ښځي پر وطي کولو قادر سي. يا د خلکو په څېر هغه ته احتلام راسي. يا د هغه تيان (سينه) د خلکو د تيو په څېر برابره پاته وي او راپورته نه سي. ځرنګه چي دا ټوله د خلکو نښني او علامات دي. نو ځکه داسي خنثیٰ به سړی (نارينه) شمېرل کيږي.

او که تر بلوغ وروسته په هغه کي يو ښځينه نښه (علامت) ښکاره سي. مثلاً د هغه تيان د ښځو د تيو په څېر راپورته سي. يا يې په تيو کي شيدې پيدا سي. يا هغه ته حيض را شروع سي. يا حمل پکښي پيدا سي. يا د هغه په فرج کي وطي کول ممکن وي (يا په بله وينا دا چي د فرج د لاري د هغه رحم ته ذکَر رسېدلای سي). نو داسي خنثیٰ به ښځه شمېرل کيږي؛ ځکه دا ټوله د ښځو نښني دي.

وإن لم يظهر الخ: او که په خنثیٰ کي تر بلوغ وروسته نه د خلکو له علاماتو څخه يو علامت ښکاره سي او نه د ښځو له علاماتو څخه يو علامت پکښي ښکاره سي. يا متعارض علامات (يعني يو د ښځي او بل د سړي علامت) پکښي ښکاره سي، مثلاً د ښځي په څېر د هغه تيان (سينه) راپورته سي او ږيره يې هم راسي يا داسي نور. نو داسي خنثیٰ ته بالاتفاق خنثیٰ مشکل ويل کيږي، او د هغه په هکله به د مذکر يا مؤنث کېدلو هيڅ حتمي او قطعي فيصله نه کول کيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# فَصْلٌ فِيْ أَحْكَامِهٖ

(دا) فصل د "خُنثیٰ مشکل" د احکامو په بیان کي دی

## د خنثیٰ مشکل د احکامو په هکله اصل (قاعده)

قَالَ رَحِمَهُ : اَلْأَصْلُ فِي الْخُنْثَى الْمُشْكِلِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چې په خنثیٰ مشکل کي اصل دا دی أَنْ يُؤْخَذَ فِيْهِ بِالْأَحْوَطِ وَالْأَوْثَقِ فِيْ أُمُوْرِ الدِّيْنِ چي په هغه کي د دین د اُمورو په باره کي په زیات احتیاط والا او په زیات محکم باندي عمل وکړی سي وَأَنْ لَا يَحْكُمَ بِثُبُوْتِ حُكْمٍ وَقَعَ الشَّكُّ فِيْ ثُبُوْتِهِ او چي د داسي حکم د ثابتېدلو فیصله نه وکړی سي چې د هغه په ثبوت کي شک واقع وي.

**اللغات**: ﴿أحوط﴾ خلاف قیاس د افتعال له باب څخه اسم تفضیل دی او شاذ دی: زیات احتیاط والا (بعضو اختلاف پکښي کړی دی). ﴿أوثق﴾ د کَرُم له بابه اسمِ تفضیل دی: زیات محکم (زیات مضبوط او قوي). او که د ضرب له بابه سي، نو معنیٰ یې ده: زیات باوري او زیات معتبر.

**تشریح**: فرمایي چي د خُنثیٰ مشکل په هکله په دیني اُمورو کي به په زیات احتیاط والا او په زیات محکم صورت عمل کول کیږي، خو کوم حکم چي داسي وي چې د هغه په ثبوت کي شک وي، د هغه د ثبوت حکم او فیصله به نه کول کیږي.

## د جماعت په لمانځه کي د خنثیٰ مشکل د دربدلو ځای

قَالَ: وَإِذَا وَقَفَ خَلْفَ الْإِمَامِ فرمایي: او کله چي خنثیٰ [نربنځی] د امام شاته ولاړ وي قَامَ بَيْنَ صَفِّ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ نو هغه دي د خلکو او ښځو د صف تر مینځ ودریږي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ اِمْرَأَةٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به ښځه وي فَلَا يَتَخَلَّلُ الرِّجَالَ نو د خلکو [سړیو] په مینځ کي دي نه راځي كَيْ لَا يُفْسِدَ صَلَاتَهُمْ د دې لپاره چي د هغوی لمونځ فاسد نه سي وَلَا النِّسَاءَ او نه دي د ښځو په مینځ کي راځي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به سړی وي فَيَفْسُدُ صَلَاتُهُ

نو د هغه خپل لمونځ به فاسد سي فَإِنْ قَامَ فِيْ صَفِّ النِّسَاءِ بیا که هغه د ښځو په صف کي ودریږي فَأَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُعِيْدَ صَلَاتَهُ نو زیاته غوره زما په نبز دا ده چي هغه خپل لمونځ را وګرځوي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به سړی وي وَإِنْ قَامَ فِيْ صَفِّ الرِّجَالِ او که هغه د خلکو په صف کي ودریږي فَصَلَاتُهُ تَامَّةٌ نو د هغه لمونځ پوره دی وَيُعِيْدُ الَّذِيْ عَنْ يَمِيْنِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ وَالَّذِيْ خَلْفَهُ بِحِذَائِهِ صَلَاتَهُمْ احْتِيَاطًا او هغه کسان دي احتیاطاً خپل لمونځ راوګرځوي کوم چي د ده راسته او چپه طرف ته دي او کوم چي د ده شاته د ده په برابری کي دي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به ښځه وي.

**اللغات:** ﴿لا یتخلل﴾ د تفعّل له بابه د نفي صیغه ده: مخل کېدل، خلل انداز کېدل، په مېنځ کي واقع کېدل. ﴿حذاء﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مقابل کېدل، بحذائه: په مقابل کي، په برابری کي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله خنثیٰ په جماعت سره لمونځ کوي، نو هغه ته پکار دي چي د خلکو د صف او د ښځو د صف په مېنځ کي ودریږي او خودي د خلکو یا ښځو په صف کي دي نه دریږي؛ ځکه په خنثیٰ کي د ښځي او سړي (نارینه) دواړو احتمال سته. که هغه واقعتاً ښځه وي، نو د خلکو په صف کي د دریدلو په وجه د هغه خلکو لمونځ فاسدیږي کوم چي د ده راسته او چپه طرف ته دي او کوم چي برابر د ده شا ته دي (که چیري امام دده د امامت نیت هم کړی وي). او که هغه واقعتاً سړی (نارینه) وي، نو د ښځو په صف کي د دریدلو په وجه د هغه خپل لمونځ فاسدیږي، لهذا زیات احتیاط په همدې کي دی چي هغه د خلکو او ښځو د صف تر مېنځ ودریږي.

**فإن قام الخ:** فرمایي چي که خنثیٰ مشکل د ښځو په صف کي ودریږي، نو ښه کار دا دی چي دئ خپل لمونځ راوګرځوي؛ ځکه کېدلای سي چي دئ سړی وي نو لمونځ به یې فاسد سوی دی، لهذا په دې صورت کي احتیاطاً خپل لمونځ راګرځول پکار دي. او که دئ د خلکو په صف کي ودریږي. نو د ده لمونځ خو پوره سو، لېکن هغه خلک دي احتیاطاً او استحباباً خپل لمونځ راوګرځوي کوم چي د ده راسته او چپه طرف ته یا د ده بالمقابل شاته ولاړ دي؛ ځکه کېدلای سي چي دئ ښځه وي نو د هغو لمونځ به فاسد سوی وي (او دا راګرځول مستحب دي لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه. كما في المبسوط: والمراد بالإعادة الإعادة على طريق الاستحباب، لما بيّنا أن محاذاة المرأة الرجل في حقهم موهوم، ومبنى العبادة على الاحتياط، فيستحب لهم أن يعيدوا صلاتهم لهذا).

## د نا بالغ خنثیٰ لپاره په پرده کي لمونځ کول پکار دي او د هغه د ناستي طریقه

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمايي] وَأَحَبُّ إِلَيْنَا أَنْ يُصَلِّيَ بِقِنَاعٍ او زياته غوره [زياته خوښه] زموږ په نېز دا ده چي خنثیٰ په نقاب کي لمونځ وکړي لِأَنَّهُ يُحْتَمَلُ أَنَّهُ امْرَأَةٌ ځکه دا احتمال سته چي هغه به ښځه وي وَيَجْلِسَ فِيْ صَلَاتِهِ جُلُوسَ الْمَرْأَةِ [همدارنګه زياته غوره دا ده] چي هغه په خپل لمانځه کي د ښځو د ناستي په څېر کښېني لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ رَجُلًا ځکه که هغه سړی وي فَقَدْ تَرَكَ سُنَّةً نو هغه [صرف] يو سنت پرېښوی وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْجُمْلَةِ او دا [پرېښودل د سنت] په يو درجه کي جائز دي وَإِنْ كَانَ امْرَأَةً خو که هغه ښځه وي [او بغير له نقاب څخه لمونځ وکړي يا د خلکو د ناستي په څېر کښېني] فَقَدْ ارْتَكَبَ مَكْرُوهًا نو هغه يو مکروه [مکروه تحريمي] کار وکړی لِأَنَّ السِّتْرَ عَلَى النِّسَاءِ وَاجِبٌ مَا أَمْكَنَ ځکه چي پر ښځو حتی الامکان پرده کول واجب دي وَإِنْ صَلَّى بِغَيْرِ قِنَاعٍ او که هغه له نقاب څخه بغير لمونځ وکړي أَمَرْتُهُ أَنْ يُعِيدَ نو زه هغه ته حکم کوم [په دې سره] چي لمونځ راوګرځوي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به ښځه وي وَهُوَ عَلَى الْاِسْتِحْبَابِ او دا [د راګرځولو حکم] د استحباب په توګه دی وَإِنْ لَمْ يُعِدْ [لهذا] که هغه لمونځ نه راوګرځوي أَجْزَأَهُ نو لمونځ يې ور لره کفايت کوي.

**اللغات:** ﴿قِنَاع﴾ په عربي ژبه کي نقاب (Mask) ته وايي (يعني د ښځو د مخ پټولو پرده). بورقه (برقع). صاحب د معجم لغة الفقهاء يې داسي تعريف کړی دی: مَا يُسْتَرُ بِهِ الْوَجْه ‹معجم لغة الفقهاء: ص: ۳۷۰›. او صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: مَا تُغَطِّي بِهِ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا...وَمَا يُسْتَرُ بِهِ الْوَجْه. نو په دې اعتبار له دې څخه مراد "پوړني" دی. ﴿سَتْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پرده کول، پرده ساتل (پرده پوشي). ﴿أجزأه﴾ د افعال د باب ماضي ده: کافي کېدل، کفايت کول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي که خنثیٰ بالغ سوی نه وي بلکي مراهق وي، نو هغه ته پکار دي چي د نورو ښځو په څېر په پټ مخ سره په نقاب او بورقه کي لمونځ کوي (او که بالغ سوی وي، نو داسي کول واجب دي)، همدارنګه که خنثیٰ بالغ سوی نه وي، نو هغه ته پکار دي چي په لمانځه کي د ښځي په څېر ناسته کوي او د سړي (نارينه) له ناستي څخه پرهېز وکړي؛ ځکه په هغه کي د ښځي

والي احتمال سته چي هغه به ښځه وي. نو ځکه هغه ته پکار دي چي د ښځو په څېر لمونځ کوي. ځکه که چیري هغه سړی ثابت سي. نو د ښځینه ناستي په وجه به هغه صرف د سنت ناستي پرېښوونکی وي، لېکن که هغه د خلکو په څېر لمونځ کوي او وروسته ښځه ثابته سي. نو هغه به د مکروه تحریمي مرتکب وي. ځکه چي ښځو ته حتی الامکان پرده کول ضروري او لازم دي. او د سنت پرېښوول د مکروه تحریمي له ارتکاب څخه سپک او آسانه دي. لهذا د فقهي قاعدې "يُختارُ أهْوَنُ الشَّرَّيْن" پر بناء هغه ته به د سنت پرېښوولو اختیار ورکول کیږي او د مکروه تحریمي له ارتکاب څخه به منع کول کیږي.

وإن صلى إلخ: فرمایي چي که هغه له نقاب او بورقې څخه بغیر لمونځ کوي. نو استحباباً هغه ته به د لمونځ راګرځولو حکم کیږي: ځکه چي د هغه د ښځي والي احتمال هم سته چي کېدلای سي هغه به ښځه وي. لهذا هغه ته په نقاب او پرده کي لمونځ کول پکار دي یا بیا د لمونځ راګرځول پکار او مستحب دي، او کله چي دا د راګرځولو حکم د استحباب په توګه دی. لهذا که هغه له نقاب او پردې څخه بغیر لمونځ وکړي او بیا لمونځ نه راوګرځوي، نو هم څه حرج نسته او د هغه اداء کړی سوی لمونځ جائز او کافي دی.

## د خنثیٰ مشکل د سنتولو طریقه

وَتَبْتَاعُ لَهُ أَمَةٌ تَخْتِنُهُ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ او د هغه لپاره دي یوه مینځه رانیول سي چي هغه سنت کړي که چیري د هغه لپاره مال وي لِأَنَّهُ يُبَاحُ لِمَمْلُوكَتِهِ النَّظَرُ إِلَيْهِ رَجُلًا كَانَ أَوْ امْرَأَةً ځکه د هغه د مملوکه مینځي لپاره د هغه وطرف ته کتل روا دي برابره ده هغه سړی وي او که ښځه وي وَيُكْرَهُ أَنْ يَخْتِنَهُ رَجُلٌ او مکروه دي دا چي یو سړی هغه سنت کړي لِأَنَّهُ عَسَاهُ أُنْثَى ځکه کېدلای سي چي هغه ښځه وي أَوْ تَخْتِنَهُ امْرَأَةٌ [او مکروه دي دا چي] یا ښځه هغه سنت کړي لِأَنَّهُ لَعَلَّهُ رَجُلٌ ځکه کېدلای سي چي هغه سړی وي فَكَانَ الِاحْتِيَاطُ فِيمَا قُلْنَا نو احتیاط په هاغه کي دی کوم چي موږ وویل وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ او که د هغه لپاره مال نه وي ابْتَاعَ لَهُ الْإِمَامُ أَمَةً مِنْ بَيْتِ الْمَالِ نو د هغه لپاره دي امام له بیتُ المال څخه یوه مینځه رانیسي لِأَنَّهُ أُعِدَّ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِينَ ځکه چي بیتُ المال د مسلمانانو د ضروریاتو لپاره تیار کړی سوی دی فَإِذَا خَتَنَتْهُ بیا کله چي مینځه هغه سنت کړي بَاعَهَا

وَرَدَّ ثَمَنَهَا فِي بَيْتِ الْمَالِ نو امام دې هغه خرڅه کړي او د هغې ثمن دې بيتُ المال ته واپس کړي لِوُقُوْعِ الْاِسْتِغْنَاءِ عَنْهَا ځکه چې له هغې څخه استغنا واقع سوه [يعني تر سنتولو وروسته هغې ته ضرورت پاتې نه سو].

**اللغات**: ﴿تبتاع﴾ د افتعال له باب څخه واحد مؤنث غائب مضارع مجهوله ده: رانيول. ﴿تختنه﴾ د ضرب له باب څخه واحد مؤنث غائب مضارع معلومه ده: سنتول (سنت كول). د نارينه په سنتولو کې د هغه د ذکر پوست پرېکول کېږي کوم چې پر حشفه وي. او د ښځې په سنتولو کې د هغې د فرج هغه بعضي را پورته پوستکی پرېکول کېږي کوم چې د پاسه وي. الختان في حق الرجل: قطع جلدة القلفة. وفي حق المرأة: قطع بعض جلدة عالية مشرفة على الفرج (معجم لغة الفقهاء). ﴿نوائب﴾ جمع د نَائِبَةٌ ده: دردونکې پېښه او حادثه، بلا، لوی مشکل کوم چې انسان په مبتلا سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که "خنثیٰ مشکل" تر اوسه سنت کړی سوی نه وي برابره ده هغه بالغ وي او که نه وي، نو د سنتولو لپاره دې د هغه په خپل مال سره يوه مينځه رانيول سي او مينځه به هغه سنت کړي. او له هغې څخه بغير بل څوک هغه نه سي سنتولای؛ ځکه دا مکروه ده؛ ځکه چې په هغه کې د سړي او ښځې دواړو احتمال سته چې کېدلای سي دا خنثیٰ به ښځه وي يا به سړی وي. او په دواړو صورتونو کې د هغه د سنتولو معامله مشکله ده يعني نه ښځه سړی سنتولای سي او نه سړی ښځه سنتولای سي؛ ځکه چې په دې کې د بل شرمګاه ته کتل لازميږي کوم چې صحيح نه دي. لهٰذا غوره همدا ده چې د هغه د سنتولو لپاره يوه مينځه رانيول سي او مينځه دا کار تر سره کړي؛ ځکه مينځه چې کله د هغه په ملکيت کې داخله سي. نو بيا د هغې لپاره سنتول او شرمګاه ته کتل جائز دي.

وإن لم يكن له مال إلخ: فرمايي چې که د دې خنثیٰ سره مال نه وي. نو امامُ المسلمين دې له بيتُ المال څخه د هغه د سنتولو لپاره يوه مينځه رانيسي؛ ځکه بيتُ المال د همدې مسلمانانو د اړتياوو او ضرورياتو لپاره جوړول کېږي او په هغه کې د مسلمانانو مالونه جمع کول کېږي. بيا کله چې مينځه هغه سنت کړي او ضرورت پوره سي. نو امام ته پکار دي چې هغه مينځه خرڅه کړي او د هغې ثمن بيرته په بيتُ المال کې جمع کړي چې د مسلمانانو په يو بل کار کې صرف کړی سي.

## د خنثیٰ مشکل لپاره د سینګار کولو، وربښم اغوستلو او د داسي نورو شیانو حکم او تفصیل

وَيُكْرَهُ لَهُ فِي حَيَاتِهِ لُبْسُ الْحُلِيِّ وَالْحَرِيْرِ او مکروه دي د خنثیٰ [نربنځي] لپاره په خپل ژوند کي زیورات او وربښمي جامې اغوستل وَأَنْ يَتَكَشَّفَ قُدَّامَ الرِّجَالِ أَوْ قُدَّامَ النِّسَاءِ او [مکروه دي د هغه لپاره] دا چي د خلکو یا ښځو مخ ته ځان لڅ کړي وَأَنْ يَخْلُوَ بِهِ غَيْرُ مَحْرَمٍ مِنْ رَجُلٍ أَوْ امْرَأَةٍ او دا چي د هغه سره نا محرمه سړی یا ښځه خلوت وکړي وَأَنْ يُسَافِرَ مِنْ غَيْرِ مَحْرَمٍ مِنَ الرِّجَالِ یا هغه د نا محرمو خلکو سره سفر وکړي تَوَقِّيًا عَنْ احْتِمَالِ الْمُحَرَّمِ د حرام کار له احتمال څخه د بچ کېدلو لپاره وَإِنْ أَحْرَمَ وَقَدْ رَاهَقَ او که خنثیٰ احرام وتړي حال دا چي هغه مراهق وي قَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: لَا عِلْمَ لِيْ فِيْ لِبَاسِهِ نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ما ته د هغه د جامې په باره کي علم [خبر] نشته لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ ذَكَرًا ځکه که چیري هغه نارینه وي يُكْرَهُ لَهُ لُبْسُ الْمَخِيْطِ نو د هغه لپاره ګنډل سوې جامې اغوستل مکروه دي وَإِنْ كَانَ أُنْثَى او که هغه ښځینه وي يُكْرَهُ لَهُ تَرْكُهُ نو د هغه لپاره ګنډل سوې جامه پرېښوول مکروه دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: يَلْبَسُ لِبَاسَ الْمَرْأَةِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه به د ښځي جامه اغوندي لِأَنَّ تَرْكَ لُبْسِ الْمَخِيْطِ وَهِيَ امْرَأَةٌ أَفْحَشُ مِنْ لُبْسِهِ وَهُوَ رَجُلٌ ځکه [په احرام کي] د ګنډل سوي جامې پرېښوول په داسي حال کي چي هغه ښځه وي زیات بد دي د هغه د ګنډل سوي جامې له اغوستلو څخه په داسي حال کي چي هغه سړی وي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او پر هغه هیڅ شی نشته لِأَنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ ځکه چي هغه بالغ سوی نه دی [مراهق دی].

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، فما يذهب من نهج صاحب الهداية في بيان التعليلات هي ترجيح قول محمد رَحِمَهُ الله على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، حيث أخره في بيان التعليل. والثاني أن قوله أقرب إلى الصواب، إذ هو أستر في حق النساء، لأن مبنى حالهن على الستر والخفاء. [القول الراجح ج:۲، ص: ۳۸۹]

**اللغات**: ﴿حُلِيّ﴾ جمع د حَلْيٌ ده: زېورات، د ښکلا او سينګار شيان او قيمتي غميان او داسي نور چي په هغوی سره ښکلا ترلاسه کول کيږي. همدا د حِلْيَةٌ معنیٰ ده چي د هغه جمع حِلًى او حُلًى ده. ﴿قُدّام﴾ ضرف مکان دی په معنیٰ سره د أمَامَ: يعني مخ ته. په مخ کي. ﴿تَوَقِّيًا﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل، ځان ساتل. پرهېز (پرېز) کول. ﴿راهق﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: بلوغ ته نژدې کېدل.

زېور، پسول (غاړګی او داسي نور د ښکلا شيان کوم چي يې ښځه استعمالوي). جمع: حُلِيّ او حِلِيّ.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د خُنثیٰ مشکل لپاره دا مکروه دي چي زيوارت (ګا [illegible]) او ورېښمي جامي واغوندي، يا د خلګو او ښځو مخ ته ځان لڅ کړي، يا د نا محرمه سړي [illegible] محرمه ښځي سره خلوت وکړي، يا د نا محرمو خلګو سره سفر وکړي، دا ټوله د هغه [illegible] دي چي له دې څخه به په ټينګه ځان ساتي، د دې لپاره چي له حرام کار څخه بچ سي (صاحب [illegible] رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مکروه "مکروه تحريمي" دی. په همدې وجه يې د "توقيًاعن المحرّم" [illegible]).

وإن أحرم إلخ: د دې حاصل دا دی چي که خُنثیٰ مشکل د حج يا عمرې لپاره ا[illegible] [illegible]ل وغواړي او هغه تر اوسه بالغ سوی نه وي بلکي مراهق وي، نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي ما ته د هغه د لباس په باره کي علم او خبر نسته چي هغه به په احرام کي څنګه جامه اغوندي؛ ځکه که هغه مُذکر وي، نو د احرام په حالت کي د هغه لپاره ګنډل سوې جامه اغوستل مکروه دي (ځکه چي د سړي لپاره نا ګنډل سوې جامه [احرام] دی). او که هغه مؤنث وي، نو د هغه لپاره ګنډل سوې جامه نه اغوستل مکروه دي (ځکه چي د ښځي لپاره ګنډل سوې جامه ده). او کله چي د هغه جنس معلوم نه دی، نو د هغه د احرام د جامې په باره کي به څنګه فيصله وسي؟.

د دې په خلاف امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي خنثیٰ مشکل به د احرام په حالت کي د ښځي جامه اغوندي؛ ځکه په دې صورت کي که هغه سړی (نارينه) ثابت سي، نو بيا هم د ډېر بد کار مرتکب به نه وي؛ ځکه د احرام په حالت کي د سړي لپاره ګنډل سوې جامه اغوستل دومره زيات بد نه دي. لکه څرنګه چي د ښځي لپاره د سړي احرام او نا ګنډل سوې جامه اغوستل زيات بد او خطرناک او د ستر خلاف دي. او که خنثیٰ مشکل د ښځي جامه واغوندي او بيا هغه سړی ثابت سي، نو د ښځي د جامې اغوستلو په وجه پر هغه هيڅ ضمان (تاوان) نه واجبيږي؛ ځکه چي هغه نا بالغ دی او پر نا بالغ ضمان نه لازميږي.

## که طلاق یا عتاق پر مذکر بچي مُعلق کړي او بچی خُنثیٰ مشکل پیدا سي (حکم او تفصیل)

وَمَنْ حَلَفَ بِطَلَاقٍ أَوْعَتَاقٍ إِنْ كَانَ أَوَّلُ وَلَدٍ تَلِدِينَهُ غُلَامًا او څوک چي د طلاق یا آزادی قسم واخلي [چي ته پر ما طلاقه یا ته آزاده يې!] که چیري اول هغه بچی چي ته يې وزېږوي هلک وي ایعني که ته اول بچی هلک وزېږوې نو پر ما طلاقه یا آزاده يې!] فَوَلَدَتْ خُنْثَى بیا هغه خنثیٰ [نربنځی] وزېږوي لَمْ يَقَعْ نو هغه [طلاق یا عتاق] نه واقع کیږي حَتَّى يَسْتَبِينَ أَمْرُ الْخُنْثَى تر دې چي د خنثیٰ حالت څرګند سي [چي هغه واقعي نر دی او که ښځه] لِأَنَّ الْحِنْثَ لَا يَثْبُتُ بِالشَّكِّ ځکه چي حانثوالی د شک په وجه نه ثابتیږي.

**اللغات**: ﴿عَتَاق﴾ د ضرب له بابه اسم مصدر دی: آزادي. آزادوالی (دالفظ دلغاتو په کتابو کي دعین په فتحه سره منقول دی). ﴿تلدین﴾ پر وزن د تَفْعِلِيْن په اصل کي تَوْلِدِيْنَ وه. د ضرب له بابه د واحد مؤنث مخاطب صیغه ده: بچی زېږول. ﴿أَمْر﴾ د دې لفظ له معناو څخه ځیني دا دي: حال (حالت او کیفیت). شان. ﴿حِنْث﴾ د سمع د باب مصدر دی: حانث کېدل. قسم ماتېدل. قسم نه پوره کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: که یو سړی خپلي ښځي ته داسي قسم واخلي چي که ستا اول بچی هلک پیدا سو، نو ته پر ما طلاقه يې!، یا که ستا اول بچی هلک پیدا سو، نو ته آزاده يې!. لېکن هغه ښځي یا مینځي خُنثیٰ مشکل وزېږوی، نو تر څو چي د هغه خنثيٰ مذکر یا مؤنث کېدل څرګند نه سي او په یقیني توګه معلوم نه سي. تر هغه وخته پوري طلاق یا عتاق نه واقع کیږي: ځکه چي د دې خنثیٰ په مذکر کېدلو کي شک دی. او د شک په وجه انسان نه حانث کیږي.

## که څوک ووايي چي زما هره مینځه یا غلام آزاد دی او په ملکیت کي يې یو خنثیٰ وي (حکم)

وَلَوْقَالَ: كُلُّ عَبْدٍ لِيْ حُرٌّ او که څوک ووايي: چي زما هر غلام آزاد دی أَوْ قَالَ: كُلُّ أَمَةٍ لِيْ حُرَّةٌ یا ووايي: چي زما هره مینځه آزاده ده وَلَهُ مَمْلُوكٌ خُنْثَى او د هغه یو خنثیٰ مملوک وي ایعني د هغه په ملکیت کي یو خنثیٰ وي] لَمْ يُعْتَقْ نو هغه نه آزادیږي حَتَّى يَسْتَبِينَ أَمْرُهُ تر دې چي د هغه حالت څرګند سي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَإِنْ قَالَ الْقَوْلَيْنِ جَمِيعًا او که دواړي خبري یو ځای وکړي عَتَقَ نو هغه خنثیٰ آزادیږي لِلتَّيَقُّنِ بِأَحَدِ الْوَصْفَيْنِ له دواړو

وصفونو څخه د یوه د یقیني والي په وجه لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُهْمَلٍ ځکه چي خنثیٰ مهمل نه دی [یعني خالي نه دی عن احد هذین الأمرین].

**اللغات**: ﴿مملوك﴾ د ضرب له بابه مفعول دی: کوم څوک چي د بل چا په ملکیت کي وي (د بل چا تر واک او ملکیت لاندي وي) یعني غلام یا مینځه. پر دواړو د هغه اطلاق کیږي. لکه څرنګه چي صاحب د معجم ویلي دي: المملوك: الرقيق من ذكرٍ أو أُنثى (معجم لغة الفقهاء). ﴿مُهْمَل﴾ د افعال د باب مفعول دی. د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چي ځیني یې دا دي: پرېښوول سوی، بېکاره، خالي کړی سوی. ﴿أمْر﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي یې وضاحت وسو.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که یو سړی داسي وویل چي زما هر غلام آزاد دی، یا زما هره مینځه آزاده ده. حال دا چي د هغه یو مملوک دی او هغه هم خنثیٰ مشکل دی. نو هغه نه آزادیږي: ځکه کله چي هغه خنثیٰ مشکل دی او د هغه نارینه والی او ښځینه والی تر اوسه واضح او څرګند سوی نه دی. نو هغه خو نه عبد (غلام) دی او نه أمة (مینځه) ده. نو ځکه نه آزادیږي.

ها! که چیري هغه سړي دواړي خبري یو ځای وکړې او داسي یې وویل چي زما هره مینځه او غلام آزاد دي، نو په دې صورت کي هغه خنثیٰ مملوک آزادیږي: ځکه چي خنثیٰ په هر صورت کي له دې دوو وصفونو څخه نه خالي کیږي ځکه هغه به سړی وي یا به ښځه وي که څه هم تر اوسه د هغه یو وصف نه دی څرګند سوی، خو هغه له دې دواړو څخه یو خامخا دی. او څرنګه چي مالک غلام او مینځه دواړه آزاد کړي دي. نو ځکه په دې صورت کي هغه آزادیږي.

## د جنس په تعیین کي دخنثیٰ خپل قول معتبر نه دی

وَإِنْ قَالَ الْخُنْثَى: أَنَا رَجُلٌ او که چیري نرښځی ووایي: چي زه سړی [نارینه] یم أَوْ أَنَا امْرَأَةٌ یا زه ښځه یم لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ إِذَا كَانَ مُشْكِلًا نو د هغه خبره به نه منل کیږي کله چي هغه خنثیٰ مشکل وي [یعني د هغه د نر او ښځي درک نه معلومیږي او دا معلومول مشکل او ستونزمن وي] لِأَنَّهُ دَعْوَى يُخَالِفُ قَضِيَّةَ الدَّلِيلِ ځکه چي دا داسي دعویٰ ده کوم چي د دلیل د تقاضا خلاف ده وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُشْكِلًا او که هغه خنثیٰ مشکل نه وي يَنْبَغِي أَنْ يُقْبَلَ قَوْلُهُ نو پکار دا ده چي د هغه خبره ومنل سي لِأَنَّهُ أَعْلَمُ بِحَالِهِ مِنْ غَيْرِهِ ځکه چي هغه په خپل حال تر بل چا زیات خبر دی.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی چې کله ذ دې معلومات کول مشکل وي چې دا خنثی مذکر دی او که ښځه؟ یعني کله چې هغه خنثیٰ مشکل وي او هغه ووایي چې زه سړی (نارینه) یم. یا زه ښځه یم. نو د هغه خبره به نه منل کیږي؛ ځکه چې دا یو داسي دعویٰ ده کوم چې د دلیل خلاف ده او دلیل د هغه د خلاف تقاضا کوي؛ ځکه کله چې هغه په یقیني توګه خنثیٰ مشکل دی چې د هغه د نر او ښځي هیڅ درک نه معلومیږي، نو خپل ځان ته نر یا ښځه ویل د هغه د خنثیٰ مشکل کېدلو د دلیل او ثبوت خلاف دي، نو ځکه د هغه خبره به نه منل کیږي.

وإن لم يكن الخ: فرمايي که چیري هغه خنثیٰ مشکل نه وي او د هغه پر مشکل کېدلو هیڅ قرینه موجوده نه وي، نو د هغه دا خبره او دعویٰ به منل کیږي؛ ځکه په دې صورت کي د هغه دعویٰ د دلیل او ثبوت خلاف نه ده او هغه د نورو په نسبت په خپل حال زیات واقف او خبر دی، نو ځکه په دې صورت کي به د هغه تصدیق کیږي.

**د خنثیٰ د غسل او ښخولو احکام**

وَإِنْ مَاتَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَبِيْنَ أَمْرُهُ او که خنثیٰ مړ سي مخکي تر دې چې د هغه حالت څرګند سي لَمْ يُغَسِّلْهُ رَجُلٌ وَلَا امْرَأَةٌ نو هغه ته به نه سړی غسل ورکوي او نه ښځه لِأَنَّ حِلَّ الْغُسْلِ غَيْرُ ثَابِتٍ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ ځکه چې د سړيو او ښځو تر مینځ د غسل حلال کېدل [روا کېدل] ثابت نه دي فَيُتَوَقَّى لِاحْتِمَالِ الْحُرْمَةِ نو د حرمت د احتمال په وجه به له هغه څخه پرهېز کیږي وَيُتَيَمَّمُ بِالصَّعِيْدِ او هغه [خنثیٰ] ته به تیمم ورکول کیږي په خاوره سره [تیمم به ور وهل کیږي] لِتَعَذُّرِ الْغُسْلِ ځکه چې غسل متعذر دی وَلَا يَحْضُرُ إِنْ كَانَ مُرَاهِقًا غُسْلَ رَجُلٍ وَلَا امْرَأَةٍ او که خنثیٰ مراهق وي نو د سړي یا ښځي غسل ته به نه حاضریږي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ ذَكَرٌ أَوْ أُنْثٰى د دې احتمال په وجه چې هغه به نر وي یا به ښځه وي وَإِنْ سُجِّيَ قَبْرُهُ او که د خنثیٰ [د ښخولو پر مهال د هغه] پر قبر پرده وکړی سي فَهُوَ أَحَبُّ نو دا زیاته غوره ده لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ أُنْثٰى ځکه که هغه ښځه وي نُقِيْمُ وَاجِبًا نو موږ به یو واجب اداء کړو وَإِنْ كَانَ ذَكَرًا او که هغه نر وي فَالتَّسْجِيَةُ لَا تَضُرُّهُ نو پرده کول خو هغه ته ضرر نه کوي.

**اللغات**: ﴿یستبین﴾ د استفعال د باب مضارع ده: واضح کېدل، څرګندېدل. ﴿یُتوقّٰی﴾ د تفعل له باب څخه مضارع مجهوله ده: ځان ساتل، پرهېز (پرېز) کول. ﴿صعید﴾ د ځمکي مخ، خاوره. ﴿سَجّٰی﴾ یُسَجّیٰ تَسْجِیَةً: پر مړي پرده ساتل، د ښخولو پر مهال د ښځي پر قبر پرده کول. تسجیة قبر المرأة: تغطیة القبر أثناء دفنها. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: په دې عبارت کي درې مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي که چیري خُنثیٰ مشکل مړ سي په داسي حال کي چي تر اوسه د هغه د نر او ښځي هیڅ حالت او درک نه وي معلوم سوی (یا په بله وینا دا چي تر اوسه د هغه یو طرف ته ترجیح نه وي ورکول سوې چي هغه نر دی یا ښځه ده)، نو هغه ته به نه سړی غسل ورکوي او نه به ښځه غسل ورکوي؛ ځکه دا حرام او ناروا دي چي سړی ښځي ته یا ښځه سړي ته غسل ورکړي، او خُنثیٰ مشکل نر او ښځه دواړه کېدلای سي، نو ښکاره ده چي هغه ته خو نه سړی غسل ورکولای سي او نه ښځه، د دې لپاره چي د حرام کار له ارتکاب څخه ساتنه وسي، خو هغه ته به په پاکه خاوره سره تیمّم ورکول کیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده چي که خنثیٰ مشکل مراهق وي (تر اوسه بالغ سوی نه وي)، نو هم به د یو چا په غسل کي نه حاضرېږي یعني چي کله یو چا (نر یا ښځي) ته غسل ورکول کیږي، نو هلته به نه حاضرېږي؛ ځکه چي خنثیٰ مشکل نر هم کېدلای سي او ښځه هم، او څرنګه چي تر اوسه د هغه یو جهت څرګند سوی نه دی، نو ځکه هغه ته د یو چا په غسل کي د حاضرېدلو اجازه نسته.

(۳)... درېیمه مسئله دا ده چي د خنثیٰ مشکل د ښخولو په وخت کي پرده کول او هغه په پرده سره ښخول ډېر غوره دي لکه څرنګه چي د ښځو د ښخولو په وخت کي همداسي کیږي؛ ځکه که هغه ښځه وي، نو موږ به د یو واجب کار اداء کونکي سو، او که هغه سړی وي، نو هم پرده کول د هغه لپاره څه نقصان مند نه دي؛ ځکه کله چي یو عذر وي مثلاً باران وي یا سخته ګرمي وي یا سخت یخ وي، نو په پرده کولو هیڅ حرج نسته چي د سړي د قبر لپاره د پردې انتظام وکړی سي، او خنثیٰ مشکل کېدل خو له باران وغیره څخه زیات عذر دی، نو ځکه پرده کول به نفع مند وي.

## د سړي او ښځي د جنازې سره که د خنثیٰ مشکل جنازه هم حاضره سي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا مَاتَ او کله چي خنثیٰ مشکل مړ سي فَصُلِّيَ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ رَجُلٍ وَامْرَأَةٍ او پر هغه او پر یو سړي او یوې ښځي [یو ځای] د جنازې لمونځ وکړی سي وُضِعَ الرَّجُلُ مِمَّا يَلِي الْإِمَامَ نو سړی به د امام سره متصل ایښودل کیږي وَالْخُنْثَىٰ خَلْفَهُ او خنثیٰ د سړي شا ته وَالْمَرْأَةُ خَلْفَ الْخُنْثَىٰ او ښځه د خنثیٰ شا ته فَيُؤَخَّرُ عَنِ الرَّجُلِ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ نو خنثیٰ به د دې احتمال په وجه له سړي څخه وروسته [شا ته] کول کیږي چي [کېدای سي] هغه به ښځه وي وَيُقَدَّمُ عَلَى الْمَرْأَةِ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ او هغه به د دې احتمال په وجه پر ښځي مخکي کول کیږي چي [کېدای سي] هغه به سړی وي.

**اللغات**: ﴿يلي﴾ د حَسِب د باب مضارع ده: متصل کېدل. څرمه کېدل. او د ضرب له باب څخه یې معنیٰ ده: ولایت لرل. ولي کېدل. ﴿يؤخر﴾ د تفعیل له باب څخه مضارع مجهوله ده: مؤخر کول. وروسته کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که یو وخت دفعتاً درې جنازې حاضري سي چي له هغوی څخه یو سړی وي او بل خنثیٰ مشکل وي او بله ښځه وي او پر دوی ټولو یو ځای د لمونځ کولو نوبت راسي. په داسي صورت کي به د جنازې په ایښوولو کي کوم ترتیب اختیارول کیږي؟، نو فرمایي چي څرنګه د ژوند په حالت کي د دوی تر مینځ ترتیب وو، همداسي به اوس هم هغه ترتیب اختیارول کیږي، یعني څرنګه چي د ژوند په حالت کي د خنثیٰ مقام د سړیو او ښځو د صفونو تر مینځ وو، هغسي به دلته هم کیږي چي د امام سره متصل به اول د سړي جنازه ایښوول کیږي او بیا د خنثیٰ او بیا د ښځي چي د ښځي جنازه به تر ټولو شا ته ایښوول کیږي. نور عبارت واضح دی.

## په اجتماعي ښخولو کي د خنثیٰ د ښخولو ترتیب

وَلَوْ دُفِنَ مَعَ رَجُلٍ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ مِنْ عُذْرٍ او که د یو عذر په وجه خنثیٰ د یو سړي سره په قبر کي ښخ کړی سي جُعِلَ الْخُنْثَىٰ خَلْفَ الرَّجُلِ نو خنثی به د سړي شا ته کړی سي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به ښځه وي وَيُجْعَلُ بَيْنَهُمَا حَاجِزٌ مِنْ صَعِيدٍ او د دوی دواړو تر مینځ به د خاورې یو حائل وګرځول سي [یا په بله وینا دا چي د دوی تر مینځ به په خاوره سره فاصله راوستل سي. چي د

خاوري يوه پوله او بندکی به يې تر مينځ جوړ کړی سي | وَإِنْ كَانَ مَعَ امْرَأَةٍ او که خنثى د ښځي سره وي ايعني د ښځي سره ښخ کړی سي | قُدِّمَ الْخُنْثٰى نو خنثىٰ به مخکي کړی سي لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ د دې احتمال په وجه چي هغه به سړی وي وَإِنْ كَانَ يُجْعَلَ عَلَى السَّرِيْرِ نَعْشُ الْمَرْأَةِ او که د خنثىٰ پر کټ [چارپايي] د ښځي پرده [يا د ښځي شال] واچول سي فَهُوَ أَحَبُّ إِلَيَّ نو دا زما په نېز زياته غوره ده لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ عَوْرَةٌ د دې احتمال په وجه چي خنثىٰ به عورت [ښځه] وي وَيُكَفَّنُ كَمَا تُكَفَّنُ الْجَارِيَةُ او خنثىٰ ته دي د انجلۍ د کفن په شېر کفن ورکول سي وَهُوَ أَحَبُّ إِلَيَّ او دا زما په نېز زياته غوره ده يَعْنِيْ يُكَفَّنُ فِيْ خَمْسِ أَثْوَابٍ يعني په پنځو جامو کي دي کفن ورکول سي لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ أُنْثٰى ځکه که هغه ښځه وي فَقَدْ أُقِيْمَتْ سُنَّةٌ نو يو سنت اداء کړی سو وَإِنْ كَانَ ذَكَرًا او که هغه نر وي فَقَدْ زَادُوْا عَلَى الثَّلَاثِ نو پر درېو کپړو يې اضافه وکړه وَلَا بَأْسَ بِذٰلِكَ او په دې اضافه کي څه حرج نسته.

**اللغات:** ﴿حاجز﴾ د نصر او ضرب له باب څخه د فاعل صيغه ده: د دوو شيانو تر مينځ فاصل. حائل (حايل). مانع (معجم) ﴿سرير﴾ چارپايي. کټ (چپر کټ). ﴿نعش المرأة﴾ نعش خو هغه کټ ته وايي چي پر هغه مړی اېښودل سوی وي يا په بله وينا جنازه، خو کله چي د دې سره د "مرأة" (ښځي) لفظ اضافه سي نو معنىٰ يې ده: هغه پرده کوم چي د ښځي پر کټ (جنازه) دروال کيږي کله چي هغه پر کټ کښېښودله سي. يا هغه څه چي د ښځي جنازه پرې پټول کيږي کله چي هغه پر جنازه کښېښودله سي. د تابوت په شېر. مشبك يطبق على المرأة إذا وضعت على على سرير الموتىٰ.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو عذر په وجه په قبر کي د څو مړو ښځولو ته ضرورت پېښ سي، نو په داسي صورت کي به له دوی څخه اول هغه يو د قبلې په طرف کي مخکي اېښوول کيږي کوم چي د شرافت او تکريم زيات لائق وي. لهذا که په قبر کي د يوه سړي او يوه خنثىٰ مشکل و ښخولو ته ضرورت پرېوځي. نو د قبلې په طرف کي به اول سړی اېښوول کيږي او خنثىٰ به وروسته د هغه شا ته اېښوول کيږي: ځکه چي په خنثىٰ کي د ښځي والي احتمال سته چي هغه به ښځه وي.

او که په قبر کي د يوه خنثىٰ او يوې ښځي و ښخولو ته ضرورت وي. نو د قبلې په طرف کي به اول خنثىٰ اېښوول کيږي او ښځه به د هغه شا ته اېښوول کيږي: ځکه چي په خنثى کي د سړي والي (نر والي) احتمال هم سته او سړی تر ښځي مخکي دی.

او په داسي صورتونو کي به د دواړو تر مینځ خاوره هم اچول کیږي چي دواړه سره متصل نه سي او د یوه بدن دبل د بدن سره ونه لګیږي.

وإن كان... نعش المرأة إلخ: یعني د ښځي دا ښولو په وخت کي چي پر جنازه د هغې د پاسه کومه پرده درول کیږي او هغه پرې پټول کیږي (یالکه څرنګه چي زموږ په علاقو کي د ښځي پر جنازه شال اچول کیږي) که هغه پر خنثیٰ (نرښځي) هم وسي، نو دا ډېر غوره او بهترین کار دی: ځکه چي په خنثیٰ کي د ښځي والي احتمال سته چي هغه به ښځه وي.

ويكفن إلخ: فرمايي چي خنثیٰ (نرښځی) ته د ښځو په څېر په پنځو کپړو کي کفن ورکول ډېر ښه دي: ځکه که هغه واقعتاً ښځه وي، نو د پنځو کپړو په کفن ورکولو سره به سنت اداء سي. او که هغه واقعتاً سړی وي. نو د هغه په کفن کي به صرف څه اضافه راسي (چي دوې کپړې به پکښي اضافه سي) او په اضافه کي څه حرج نسته. نو ځکه احتیاط همدا دی چي خنثیٰ مشکل ته په پنځو کپړو کي کفن ورکول سي. خو که هغه ته په دریو کپړو کي کفن ورکول سي او هغه ښځه وي، نو سنت کفن به پرېښوول سي او د ترک سنت خرابي به پېښه سي.

## په میراث کي به خنثیٰ مشکل ته خومره حصه ورکول کیږي (د امامانو اختلاف او تفصیل)

وَلَوْ مَاتَ أَبُوهُ او که چیري د خنثیٰ مشکل پلار مړ سي وَخَلَّفَ ابْنًا او هغه خپل تر شا یو ځوی پرېږدي [او یو دا خنثیٰ مشکل وي] فَالْمَالُ بَيْنَهُمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ أَثْلَاثًا نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مال [میراث] د دوی دواړو تر مینځ په دریو حصو سره دی لِلِابْنِ سَهْمَانِ د ځوی لپاره دوې حصې وَلِلْخُنْثَى سَهْمٌ او د خنثیٰ لپاره یوه حصه وَهُوَ أُنْثَى عِنْدَهُ فِي الْمِيرَاثِ او خنثیٰ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په میراث کي ښځینه ده إِلَّا أَنْ يَتَبَيَّنَ غَيْرُ ذَلِكَ مګر دا چي له هغه [ښځي والي] څخه بغير [نارینه والی] څرګند سي [یعني دا خبره څرګنده او ثابته سي چي دا خنثیٰ نارینه دی] وَقَالَا[ق] او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي لِلْخُنْثَى نِصْفُ مِيرَاثِ ذَكَرٍ وَنِصْفُ مِيرَاثِ أُنْثَى چي د خنثی لپاره د نر د

---

[ق] القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وله (أي للخنثى المشكل) في الميراث أقل النصيبين (أحسن النصيبين). وبه يفتى. وقالا: نصف النصيبين (أي نصف مجموع حظ الذكر والأنثى) (رد المحتار ج:٥، ص:٥١٥). وكذا قال العلامة سراج الدين السجاوندي الحنفي رَحِمَهُ الله: للخنثى المشكل أقل النصيبين اعني اسوء الحالين عند أبي حنيفة وأصحابه، وهو قول عامة الصحابة رضي الله عنهم وعليه الفتوى (السراجية ص:٤٩). [القول الراجح ج:٢، ص:٣٩٠]

میراث نیمه حصه او د ښځي د میراث نیمه حصه ده وَهُوَ قَوْلُ الشَّعْبِيِّ او همدا د شعبي رَحِمَهُ الله قول دی وَاخْتَلَفُوْا فِيْ قِيَاسِ قَوْلِهِ او امامانو د شعبي رَحِمَهُ الله د قول د قیاس مطابق [په تخریج] کي اختلاف کړی دی قَالَ مُحَمَّدٌ: اَلْمَالُ بَيْنَهُمَا عَلَى اِثْنَيْ عَشَرَ سَهْمًا امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مال [میراث] د دوی دواړو تر مینځ پر دوولسو حصو دی [یعني پر ۱۲ حصو به تقسیمیږي] لِلْاِبْنِ سَبْعَةٌ د ځوی لپاره اُووه حصې وَلِلْخُنْثٰى خَمْسَةٌ او د خنثیٰ لپاره پنځه حصې وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: اَلْمَالُ بَيْنَهُمَا عَلٰى سَبْعَةٍ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مال د دوی دواړو تر مینځ پر اُووو حصو دی لِلْاِبْنِ أَرْبَعَةٌ وَلِلْخُنْثٰى ثَلَاثَةٌ د ځوی لپاره څلور حصې او د خنثیٰ لپاره درې حصې لِأَنَّ الْاِبْنَ يَسْتَحِقُّ كُلَّ الْمِيْرَاثِ عِنْدَ الْاِنْفِرَادِ ځکه چي ځوی د تنها والي په وخت کي [یعني چي یوازي وي] د ټوله میراث مستحق کیږي وَالْخُنْثٰى ثَلَاثَةَ الْأَرْبَاعِ او خنثیٰ د دریو ربعو [یعني چي خنثیٰ یوازي وي نو هغه د دریو څلورمو حصو مستحق کیږي] فَعِنْدَ الْاِجْتِمَاعِ يُقْسَمُ بَيْنَهُمَا عَلٰى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا نو [د ځوی او خنثیٰ] د جمع کېدلو په وخت کي به مال د دوی دواړو تر مینځ د دوی د حقونو په اندازه تقسیمول کیږي هٰذَا يَضْرِبُ بِثَلَاثَةٍ وَذٰلِكَ يَضْرِبُ بِأَرْبَعَةٍ [یعني] دا [خنثیٰ] به د دریو په حساب سره اخیستل کوي او هغه [ځوی] به د څلورو په حساب سره اخیستل کوي [یا په بله وینا دا چي خنثیٰ ته به د دریو په حساب سره ورکول کیږي او ځوی ته د څلورو په حساب سره] فَيَكُوْنُ سَبْعَةً نو ټوله به اُووه حصې وي.

**اللغات**: ﴿أثلاثًا﴾ په دریو حصو سره (چي شی درې حصې کړل سي). ﴿أرباعًا﴾ په څلورو حصو سره (چي څلور حصې کړل سي). ﴿انفراد﴾ د انفعال د باب مصدر دی: یوازي والی (یوازي کېدل). تنها کېدل. ﴿يضرب﴾ د ضرب د باب مضارع ده: په عربي ژبه کي ځیني الفاظ او بابونه لسګونه معناوي لري لکه لفظ د "عَيْن" چي په سلهاوو معناوو سره مستعمل دی. نو د ضرب د باب هم ډېري معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه یې ځیني دا دي: اخیستل. یو څوک په یو شه کي شریکول (شریک کرخول)، تاکل او مقررول (مغرب. معجم الوسیط). يقال ضرب له في ماله سهمًا أي جعل له وأعطاه. وقال الفقهاء: فلان يضرب فيه بالثلث: أي يأخذ منه شيئًا بحكم ماله من الثلث

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی چې که یو سړی مړ سي او هغه خپل تر شا دوه بچیان پرېږدي یو ځوی او بل خنثیٰ مشکل (یعني داسي خنثیٰ چي تر اوسه د هغه د نر او ښځي هیڅ جهت نه وي واضح کړی سوی). نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه سړي میراث به درې حصې کول کیږي چي له هغه څخه به دوې حصې د خُنثیٰ ورور ته او یوه حصه خنثیٰ ته ورکول کیږي: ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خنثیٰ د میراث په باب کي ښځه ده. لهذا د دوی د پلار میراث به د "للذکر مثل حظ الأُنثیین" مطابق د دوی تر مینځ تقسیمول کیږي.

وقالا للخُنثی إلخ: صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په مذکوره صورت کي به خنثیٰ ته د نارینه او ښځي (هر یوه) نیمه. نیمه حصه ورکول کیږي (چي د هغه مجموعه درې رُبعې [درې څلورمي حصې] کیږي. تفصیل به یې د تشریح په آخر کي ذکر سي) امام شعبي رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی. دا په حقیقت کې د عامر بن شرحبیل رَحِمَهُ الله قول دی او صاحبینو د هغه د قول اتباع کړې ده. خو د حصو د تخریج په طریقه کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی: د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي په مذکوره صورت کي به د مړي میراث پر دوولسو (۱۲) حصو تقسیمول کیږي چي له هغوی څخه به اُووه حصې ځوی (د خنثی ورور) ته ورکول کیږي او پنځه حصې به خنثیٰ ته ورکول کیږي. لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز میراث به پر اُوو حصو تقسیمول کیږي چي له هغه څخه به څلور حصې ځوی ته او درې حصې خنثیٰ ته ورکول کیږي. (د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول د خنثیٰ لپاره نفع ښند دی: ځکه د اُوو درې حصې د دوولسو له پنځو حصو څخه څه زیاتي دي یا په بل شکل دا چي $\frac{3}{7}$ له $\frac{5}{12}$ څخه زیات دي. تاسي خپله هم حساب وزن ته وکړئ! مثلاً لک روپۍ یو وار پر ۱۲ حصو تقسیم کړئ! او له هغه څخه خنثیٰ ته پنځه حصې ورکړئ!. او بیا لک روپۍ پر ۷ حصو تقسیم کړئ! او له هغه څخه خنثیٰ ته درې حصې ورکړئ! نو تاسي به معلومه سي چي په کوم یوه کي یې نفع څه زیاته ده).

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي ځوی کله یوازي وي (یعني له ځوی څخه بغیر د پلار بل هیڅ وارث نه وي) نو هغه د ټوله میراث مستحق کیږي. او که خنثیٰ یوازي وي نو هغه د میراث د درېو حصو مستحق کیږي. لکه څرنګه چي څه مخکي د صاحبینو دا اُصول تېر سو چي "للخنثی نصف میراث ذکرٍ ونصف میراث أنثی" چي د هغه مجموعه درې حصې (درې رُبعې) کیږي. لنډه دا چي د

يوازي والي په صورت كي چي ځوی او خنثیٰ ته څومره حصه رسيږي. نو د ځوی او خنثیٰ د اجتماع په صورت کي به هم په هغه حساب سره حصه ورکول کيږي (يعني د اجتماع صورت به د انفراد په صورت قياسول کيږي).

لهذا كله چي د يوازي والي (انفراد) په صورت كي خنثیٰ د دريو حصو او ځوی د ټولو ميراث مستحق كيږي. نو كه ميراث څلور حصې يا په بله وينا څلور رُبعي سي او ځوی (نارينه) يوازي وي نو ټوله ميراث (څلور سره رُبعي) د ځوی کيږي چي د هغه نصف دوې رُبعي $\frac{2}{4}$ كيږي. او د ښځې ميراث د نارينه د ميراث نصف دی نو په څلورو رُبعو کي د هغې حصه دوې رُبعي $\frac{2}{4}$ كيږي چي د هغه نصف يوه رُبع $\frac{1}{4}$ ده. او كله چي دوې رُبعي او يوه رُبع سره جمع كړل سي (کوم چي د سړي د ښځې د ميراث نصف دی ځکه د سړي (ځوي) د ميراث نصف دوې ربعي دي او د ښځې د ميراث نصف يوه ربع ده. کما ذکرنا. لهذا دا چي سره جمع كړل سي) نو د هغه مجموعه درې رُبعي $\frac{3}{4}$ كيږي. لهذا د خنثیٰ ټوله ميراث درې رُبعي $\frac{3}{4}$ دي. او د ځوی ټوله ميراث څلور سره رُبعي دي. نو كله چي ځوی او خنثیٰ دواړه په ميراث كي سره جمع سي. نو موږ په همدې حساب سره (يعني د څلورو او دريو په حساب سره) ميراث تقسيم كوو چي د هغه مجموعه اُووه حصې كيږي. نو ځکه موږ وويل چي ځوی ته به له اُوو څخه څلور حصې $\frac{4}{7}$ او خنثیٰ ته به له اُوو څخه درې حصې $\frac{3}{7}$ وركول كيږي. دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول تخريج او تفصيل دی.

## په پورتنی مسئله كي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل

| |
|---|
| وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْخُنْثٰى لَوْكَانَ ذَكَرًا او د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي كه خنثیٰ نارينه [سړی] وي يَكُوْنُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو مال [ميراث] به د دوی دواړو [ځوی او خنثیٰ] تر مينځ نيم په نيمه وي وَإِنْ كَانَ أُنْثٰى او كه هغه ښځه وي يَكُوْنُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا نو مال [ميراث] به د دوی دواړو تر مينځ په دريو حصو سره وي اِحْتَجْنَا إِلٰى حِسَابٍ لَهُ نِصْفٌ وَثُلُثٌ نو موږ داسي حساب [يعني داسي عدد] ته محتاج سو چي هغه لره نصف [هم] وي او ثلث [هم] وي وَأَقَلُّ ذٰلِكَ سِتَّةٌ او په هغه کي تر ټولو |

کم عدد شپږ ۶ دی [نو مال [میراث] به شپږ ۶ حصې کړل سي] فَفِيْ حَالٍ يَكُوْنُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ ثَلَاثَةٌ نو په هغه حالت کي چي مال [میراث] د دوی دواړو تر مینځ نیم په نیمه وي [نو] د هر یوه لپاره به [له شپږو ۶ څخه] درې ۳ حصې وي وَفِيْ حَالٍ يَكُوْنُ أَثْلَاثًا لِلْخُنْثٰى سَهْمَانِ وَلِلِابْنِ أَرْبَعَةٌ او په هغه حالت کي چي مال [د دوی ترمینځ] په دریو حصو سره وي [نو] د خنثیٰ لپاره به دوې ۲ حصې وي او د ځوی لپاره به څلور ۴ حصې فَسَهْمَانِ لِلْخُنْثٰى ثَابِتَانِ بِيَقِيْنٍ لهذا د خنثیٰ لپاره دوې حصې په یقین سره ثابته دي وَوَقَعَ الشَّكُّ فِي السَّهْمِ الزَّائِدِ او شک په زائده حصه کي واقع سِوی دی فَيَتَنَصَّفُ نو هغه به نیمایي [نصف. نصف] کیږي فَيَكُوْنُ لَهُ سَهْمَانِ وَنِصْفٌ نو د خنثیٰ لپاره به دوې نیمي حصې سي فَانْكَسَرَ نو کسر پکښې راغلی فَأَضْعَفَ لِيَزُوْلَ الْكَسْرُ لهذا مخرج [۶] به دوچنده کول کیږي، د دې لپاره چي کسر ختم سي فَصَارَ الْحِسَابُ مِنْ اِثْنَيْ عَشَرَ نو حساب به له دوولسو څخه وګرځي لِلْخُنْثٰى خَمْسَةٌ وَلِلِابْنِ سَبْعَةٌ د خنثیٰ لپاره پنځه ۵ حصې او د ځوی لپاره اُوو ۷ حصې.

**تشريح**: په دې عبارت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل بیان سوی دی. چي د هغه حاصل دا دی چي که چیري خنثیٰ سړی (مذکر) وي نو د هغه او ځوی تر مینځ به میراث نصف. نصف (نیم په نیمه) تقسیمیږي او که هغه ښځه وي نو د میراث له دریو حصو څخه به هغه ته یوه حصه (یو ثلث) رسیږي. او زموږ د اُصول مطابق خنثیٰ ته د سړي د میراث نصف حاصلیږي او د ښځي د میراث هم نصف ورته حاصلیږي. لهذا د هغه د حساب صحیح کولو او له کسر څخه د خالي کولو لپاره موږ د شپږو ۶ عدد منتخب کړی؛ ځکه چي د ۶ عدد لره نصف هم سته او ثلث یې هم سته. اوس که خنثیٰ سړی وي. نو د هغه او د ځوی دواړو لپاره به د شپږو ۶ نصف یعني درې ۳ وي چي د هغه نصف یو نیم کیږي یعني $1\frac{1}{2}$. او که هغه ښځه وي. نو د هغه لپاره به د شپږو یو ثلث یعني دوه ۲ وي چي د هغه نصف یو ۱ کیږي او پاته څلور حصې به د ځوی لپاره وي. او دغه یو نیم او یو چي سره جمع کړ ک سي کوم چي د خنثیٰ حصه ده نو مجموعه دوه نیم $2\frac{1}{2}$ کیږي (ځکه د خنثیٰ لپاره د سړي د میراث نصف او د ښځي د میراث نصف دی چي دلته د سړي د میراث نصف یو نیم او د ښځي د میراث نصف یو کیږي چي د هغه

مجموعه دوه نیم کیږي). او له شپږو ۶ څخه چې دوه نیم د خنثیٰ سي نو بل طرف ته دريږ نیم ۳ ۱/۲ پاته سوه. نو د خنثیٰ لپاره خو دوې حصې په یقیني توګه ثابته سوې او له دوو څخه په زائد حصه (دریمه حصه) کي شک دی چي هغه خنثیٰ ته ورکول سي او که نه ورکول سي. ځکه که هغه ښځه وي نو د میراث تقاضا دا ده چي دا زائده حصه (دریمه حصه) هغه ته نه ورکول سي کنې د دواړو مساوات به لازم سي. او که هغه سړی (نارينه) وي نو هغه ته دا دوې حصې نه بلکي تر هغه زیات ورکول پکار دي يعني دريږ حصې کوم چي د ۶ نصف کيږي (يعني که سړی وي نو د ميراث [۶] نصف ورکول پکار دي). نو ځکه موږ دا زائده يعني دریمه حصه نیمايي کړله او د هغه یو نصف (نیمه حصه) موږ خنثیٰ ته ورکړه او بل نصف مو د هغه ورور ته ورکړی. نو د خنثیٰ حصه دوه نیم ۲ ۱/۲ سوه. او د ورور حصه يې دريږ نیم ۳ ۱/۲ سوه. لیکن اوس دلته په دواړو حصو کي کسر واقع کيږي. نو کسر (نیم) به پوره ته کړی سي او د خنثیٰ اصل حصې (۲) يعني دوه ته به په مخرج يعني په ۶ کي ضرب ورکول سي چي حاصلِ ضرب به ۱۲ سي او د هر وارث حصې به دوچنده سي. نو له هغه ۱۲ حصو څخه به پنځه حصې (۵/۱۲) د خنثیٰ سي او اُووه حصې (۷/۱۲) به د هغه د ورور سي. نو په دې توګه به هر فریق ته بغیر له کسر څخه د هغه حصه ورسیږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول توجیه او دلیل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْحَاجَةَ هٰهُنَا إِلَى إِثْبَاتِ الْمَالِ ابْتِدَاءً او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي دلته ابتداءً د مال ثابتولو لره ضرورت دی وَالْأَقَلُّ وَهُوَ مِيرَاثُ الْأُنْثٰى مُتَيَقَّنٌ بِهِ او اقلّ [کم] مقدار کوم چي د ښځي میراث دی هغه متیقّن دی [يعني اقلّ مقدار متیقن دی. کوم چي دلته د ښځي میراث دی] وَفِيمَا زَادَ عَلَيْهِ شَكٌّ او له هغه [اقلّ] څخه په زائد مقدار کي شک دی فَأَثْبَتْنَا الْمُتَيَقَّنَ بِهِ قَصْرًا عَلَيْهِ نو ځکه موږ [دلته] پر اقلّ په منحصر کولو سره [په اقلّ بلدي په عمل کولو سره] متیقّن ثابت کړی [کوم چي د ښځي میراث دی] لِأَنَّ الْمَالَ لَا يَجِبُ بِالشَّكِّ ځکه چي مال د شک په وجه نه واجبیږي وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ الشَّكُّ فِي وُجُوبِ الْمَالِ بِسَبَبٍ آخَرَ او دا داسي سوه لکه په یو بل سبب سره چي د مال

په واجبېدلو کې شک راسي فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ فِيهِ بِالْمُتَيَقَّنِ بِهِ نو په هغه صورت کې پر متيقن (اقل مقدار) عمل کول کیږي كَذَا هُنَا نو همداسي به دا وي.

**اللغات**: ﴿متيقن﴾ د تفعل د باب مفعول دی: يقيني کړی سوی (يقيني)، په يقيني توګه ثابت.

﴿قصرًا﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب په صله کې چي عَلىٰ راسي لکه دلته، نو معنیٰ يې ده: واپس کول، منحصر کول، محدود کول. (مصباح اللغات)

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي په مذكوره صورت کي (يعني کله چي مړی خپل تر شا يو ځوی او يو خنثیٰ مشکل پرېږدي نو) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مړي ميراث به درې حصې کول کیږي چي له هغه شخصه به يوه حصه خنثیٰ ته او دوې حصې ځوی (د خنثیٰ ورور) ته ورکول کیږي؛ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خنثیٰ مشکل د میراث په باب کي د ښځي په حکم سره دی (يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله اصول دا دی چي خنثیٰ مشکل به د میراث په هکله ښځه فرضول کیږي). نو ځکه د هغه په نېز خنثیٰ ته د پلار له میراث شخه د يوې حصې او د هغه ورور ته د دوو حصو د ورکولو فيصله سوې ده.

د دغه فيصلې په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دلته له میراث شخه د خنثیٰ لپاره ابتداءً د مال ثابتولو ته ضرورت دی، او ابتداءً د مال ثابتولو په وخت کي پر متيقن (يقيني) امر عمل کول کیږي او متيقن اقل مقدار وي (يا په بله وينا دا چي ابتداءً د مال ثابتولو په وخت کي پر اقل عمل کول کیږي؛ ځکه چي اقل متيقن وي)، او په مذكوره مسئله کي اقل د ښځي میراث دی (کوم چي يوه حصه [ثلث] دی) نو همدا د ښځي میراث متيقن دی او تر هغه په زائد مقدار کي شک دی او د شک په وجه مال نه واجبیږي. نو ځکه موږ د خنثیٰ لپاره اقل او متيقن (يعني يوه حصه [ثلث]) متعين کړی دی. د دې مثال داسي دی لکه په يو بل سبب سره چي د مال په وجوب کي شک راسي، مثلاً يو سړی د زيد لپاره اقرار وکړي او ووايي چي لزيد عَلَيَّ دراهم (پر ما د زيد دراهم باندي دي) او د دراهمو تعيين نه وکړي چي څو دراهم دي، نو په دې صورت کي د دراهمو اقل مقدار يعني درې درهمه متعين کیږي او همدا به مقرلهٗ (زيد) ته ورکول کیږي، نو همدغسي په مذكوره مسئله کي به هم د میراث اقل مقدار (د ښځي میراث) کوم چي يوه حصه ده خنثیٰ مشکل ته ورکول کیږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول نور وضاحت او تفصيل

إلا أن يَكُونَ نَصِيبُهُ الأَقَلَّ لَوْ قَدَّرْنَاهُ ذَكَرًا مگر دا چې د خنثیٰ حصه کمه وي [کميږي] که چيرې مونږ هغه نر [نارينه] فرض کړو فَحِينَئِذٍ يُعْطَى نَصِيبَ الابْنِ فِي تِلْكَ الصُّورَةِ نو په دې صورت کې به خنثیٰ ته د ځوي [نارينه] حصه ورکول کيږي لِكَوْنِهِ مُتَيَقَّنًا بِهِ د هغه د يقيني کېدلو په وجه [ځکه چې په دې صورت کې هغه (يعني د نارينه حصه) اقل مقدار دی او اقل متيقن وي] وَهُوَ أَنْ تَكُونَ الْوَرَثَةُ زَوْجًا وَأُمًّا وَأُخْتًا لِأَبٍ وَأُمٍّ هِيَ خُنْثَى او هغه صورت دا دی چې وارثان [ميراث خوره] يو خاوند وي او يوه مور وي او يوه په پلار او مور شريکه [يعني حقيقي] خور وي چې هغه خنثیٰ وي أَوِ امْرَأَةً وَأَخَوَيْنِ لِأُمٍّ وَأُخْتًا لِأَبٍ وَأُمٍّ هِيَ خُنْثَى يا وارثان يوه ښځه وي او دوه په مور شريک [اخيافي] ورونه وي او يوه حقيقي خور وي چې هغه خنثیٰ وي فَعِنْدَنَا فِي الأُولَى لِلزَّوْجِ النِّصْفُ وَلِلأُمِّ الثُّلُثُ وَالْبَاقِي لِلْخُنْثَى نو زمونږ په نيز په اول صورت کې د خاوند لپاره نصف د او د مور لپاره ثلث [دريمه حصه] ده او پاته حصه د خنثیٰ لپاره ده وَفِي الثَّانِيَةِ لِلْمَرْأَةِ الرُّبُعُ وَلِلأَخَوَيْنِ لِأُمٍّ الثُّلُثُ وَالْبَاقِي لِلْخُنْثَى او په دويم صورت کې د ښځې لپاره رُبع [څلورمه حصه] ده او د دوو اخيافي ورونو لپاره ثلث دی او پاته حصه د خنثیٰ لپاره ده لِأَنَّهُ أَقَلُّ النَّصِيبَيْنِ فِيهِمَا ځکه چې په دواړو صورتونو کې همدا [باقي (پاته حصه)] له دواړو حصو څخه کمه ده [لهذا په اقل عمل وسو].

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه برخه. ﴿أقل﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: تر ټولو کم. کمتر. ﴿قدّرنا﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: اندازه کول. فرض کول (فرضول). ﴿رُبع﴾ څلورمه حصه.

**تشريح**: مخکي ضمناً ذکر سوه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز (د خنثیٰ په ميراث کې) پر اقل کېدلو بنياد ايښودل سوی دی چې خنثیٰ ته به په ميراث کې اقل حصه ورکول کيږي چې هغه د ښځې حصه ده (ځکه چې اقل متيقن وي) په همدې وجه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خنثیٰ د ميراث

په باب کې ښځه فرض کړل سوې ده او د ښځې حصه ورکول سوې ده. لېکن که چیرې یو صورت داسې وي چې که په هغه کې خنثیٰ ښځه فرض کړل سي نو هغه ته زیاته حصه رسیږي او که نارینه (سړی) فرض کړل سي نو هغه ته اقلّ (کمه) حصه رسیږي. نو په داسې صورت کې به هغه نارینه فرض کول کیږي چې په اَقلّ عمل وسي او هغه ته اقلّ حصه ورکول سي. چې دلته مصنف رَحِمَهُ الله د هغه دوه مثالونه بیان کړي دي:

① ... یو مثال دا دی چې مثلاً زینب مړه سوه او د هغې په وارثانو کې یو خاوند (زوج) دی او یوه مور (اُمّ) او یوه حقیقي خور ده کوم چې خنثیٰ ده (یعني زینب خپل تر شا دغه درې وارثان پرېښوول). نو په داسې صورت کې به خنثیٰ (حقیقي خور) مذکر یعني ورور فرضول کیږي او میراث به ټوله شپږ حصې کول کیږي چې د هغه نصف یعني درې حصې به خاوند ته ورکول کیږي او د هغه ثلث یعني دوې حصې به مور ته ورکول کیږي. او پاته یوه حصه به خنثیٰ خور ته (کوم چې مذکر فرض کړل سوې ده) ورکول کیږي، چې د مسئلې تخریج به داسې وي:

| | | |
|---|---|---|
| | | ۶ میت |
| زوج | اُم | حقیقي خور خنثیٰ کوم چې مذکر فرض سوې ده |
| ۳ | ۲ | ۱ |

ځکه که دلته خنثیٰ مؤنث یعني خور فرض کړل سي. نو خنثیٰ به په اصحابُ الفروضو کې داخل سي او حصه به یې زیاته سي او ۶ به په ۸ سره عول سي (یا په بله وینا دا چې د ۶ حصو پر ځای به ۸ حصې سي) او د مسئلې صورت به بدل سي، چې د مسئلې تخریج به داسې وي:

| | | |
|---|---|---|
| | | ۶ عول ۸ میت |
| زوج | اُم | حقیقي خور خنثیٰ |
| ۳ حصې | ۲ | ۳ |

② ... دویم مثال چې که په هغه کې خنثیٰ مؤنث فرض کړل سي نو حصه یې زیاتیږي او که مذکر فرض کړل سي نو حصه یې کمیږي. هغه دا دی چې مثلاً خالد مړ سو او د هغه په وارثانو کې یوه ښځه (زوجه) ده او دوه د مور له طرفه وروڼه (اخیافي وروڼه) دي او یوه حقیقي خور ده کوم چې خنثیٰ ده.

نو په داسې صورت کې به هم خنثیٰ خور ته د مذکر یعنې د ورور درجه ورکول کیږي او ورور به فرضول کیږي او میراث به ټوله دوولس ۱۲ حصې کول کیږي چې د هغه یوه رُبع (څلورمه) یعنې درې ۳ حصې به ښځې (زوجه) ته ورکول کیږي. او د هغه یو ثلث یعنې څلور ۴ حصې به دواړو اخیافي ورونو ته ورکول کیږي. او پاته پنځه ۵ حصې به مذکر خنثیٰ ته ورکول کیږي. چې د مسئلې تخریج به داسې وي:

۱۲
میت

| یوه حقیقي خور خنثیٰ | دوه اخیافي ورونه | زوجة |
|---|---|---|
| ۵ | ۴ | ۳ |

ځکه که دلته خنثیٰ مؤنث یعنې خور فرض کړل سي، نو خنثیٰ ته به د پنځو پر ځای شپږ حصې ورسیږي او مسئله به په ۱۳ سره عول سي. چې د مسئلې صورت به داسې وي:

۱۲ عول ۱۳
میت

| یوه حقیقي خور خنثیٰ | دوه اخیافي ورونه | زوجة |
|---|---|---|
| ۶ | ۴ | ۳ |

نو ځکه موږ په دې دواړو صورتونو کې خنثیٰ مذکر (نارینه) فرض کړی دی او هغه ته مو له مؤنث څخه کمه حصه ورکړې ده چې په اقل او متیقن عمل وسي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# مَسَائِلُ شَتّٰی

## بېلابېلې مسئلې

**تشریح**: ..امه توګه د مصنفینو عادت دا وي چې په کتاب یا باب کې چې له دوی څخه کومې داسې مسئلې پاتـه سوې وي چې هغوی بایـد ذکر کـړل سي، نو هغـه مسئلې د "مسائل شتّی" یا "مسائل متفرّقة" یا "مسائل منثوره" په نامه سره په آخر کې بیانوي، نو د همدې مطابق صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله هم په کتابُ الوصایا کې پاتـه سوي (پرېښوول سوي) قابلِ ذکر مسئلې تر دغه عنوان "مسائل شتّی" لاندې بیان کړې دي.

**شَتّٰی**: جمع د شَتِيتٌ ده چې د هغه معنیٰ ده: متفرق، یو له بل څخه جلا. بېلا بېل. لکه په قرآن کې هم دا لفظ څو ځایه ذکر سوی دی: وَقُلُوبُهُمْ شَتّٰی، مِنْ نَبَاتٍ شَتّٰی او داسې نور.

### د اصلي ګونګي او عارضي ګونګي د وصیت بیان

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمایي وَإِذَا قُرِئَ عَلَى الْأَخْرَسِ كِتَابُ وَصِيَّتِهِ او کله چې پر ګونګي کس د هغه د وصیت خط [وصیت نامه] ولوستل سوه فَقِيلَ لَهُ: أَنَشْهَدُ عَلَيْكَ بِمَا فِي هٰذَا الْكِتَابِ بیا هغه ته وویل سوه: آیا موږ پر تا د هغه څه په هکله ګواهان سو کوم چې په دغه خط کې دي فَأَوْمَأَ بِرَأْسِهِ أَيْ نَعَمْ نو ګونګي په خپل سر اشاره رکړه یعني هو! أَوْ كَتَبَ یا یې [د هوکړې] لیکنه وکړه فَإِذَا جَاءَ مِنْ ذٰلِكَ مَا يُعْرَفُ أَنَّهُ إِقْرَارٌ نو کله چې له هغه [یعني د ګونګي له اشارې او لیکنې] څخه داسې څه راڅرګند سي چې له هغه څخه دا معلومه سي چې دا اقرار دی فَهُوَ جَائِزٌ نو هغه جائز دي وَلَا يَجُوزُ ذٰلِكَ فِي الَّذِي يُعْتَقَلُ لِسَانُهُ او دا [اشاره او لیکنه...] د هغه کس په هکله جائز نه دي چې [د یو عارض په وجه] د هغه ژبه بنده سوې وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې په دواړو صورتونو کې جائز دي لِأَنَّ الْمُجَوِّزَ إِنَّمَا هُوَ الْعَجْزُ ځکه چې

جائز ګرځونکی شی عاجزي ده [یعني له نطق او وینا څخه د عاجزۍ په وجه دغه اشاره او لیکنه جائز ګرځي]

وَقَدْ شَمِلَ النَّقِيضَيْنِ او عاجزي دواړو صورتونو لره شامله ده وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْأَصْلِيِّ وَالْعَارِضِيِّ او د اصلي او عارضي عاجزۍ تر مینځ هیڅ فرق نسته كَالْوَحْشِيِّ وَالْمُتَوَحِّشِ مِنَ الْأَهْلِيِّ فِيْ حَقِّ الذَّكَاةِ لکه د ذکاة [ذبح] په حق کې وحشي [ځنګلي] ښکار او له کورني ښکار وبو څخه متوحش ښکار وی.

**اللغات**: ﴿قُرِئَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: لوستل. ویل. ﴿أُخرس﴾ ګونګی (ګونګ). د همېشه لپاره له ویلو او خبرو کولو څخه عاجز انسان. یعني چې د همېشه لپاره یې ژبه له خبرو څخه بنده وي. ﴿أومیٰ﴾ د افعال د باب ماضي ده: اشاره کول. ﴿وحشي﴾ ځنګلي. ترهېدونکی. ﴿متوحّش﴾ د تفعل د باب فاعل دی: د وحشي په څېر کېدونکی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که یو ګونګي سړي (اخرس) د یو چا لپاره وصیت وکړی او وصیت نامه یې ولیکله (خپله یا په بل چا یې ولیکله) او بیا یو څو کسانو د ده مخ ته هغه وصیت نامه ولوستله او ده ته یې وویل چې آیا موږ پر دغه وصیت نامه ګواهان سو. نو ده په خپل اشاره سره د هوکړي جواب ورکړی یعني سریې طولاً وښوروی. یا د هوکړي او اقرار په هکله یې خط ولیکی. یا د ده له طرفه داسي کار صادر سو چې له هغه څخه د ده هوکړه او اقرار معلوم سو. نو دا جائز دي او په دې سره وصیت نافذیږي. لېکن دا حکم د هغه ګونګي دی کوم چې اصلي حقیقتاً ګونګی وي. او که څوک ګونګی نه وي لېکن د یو عارض په وجه د هغه ژبه بنده سوې وي. نو داسي کس زموږ په نېز ګونګی (أخرس) نه شمېرل کیږي او د هغه اشاره د هوکړي او اقرار دلیل نه کیږي.

**وقال الشافعي إلخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې څرنګه د ګونګي په حق کي اشاره او لیکنه (کتابت) د هوکړي او اقرار دلیل دی. همداسي د هغه چا په حق کي هم اشاره او لیکنه د هوکړي او اقرار دلیل دی چې د یو عارض په وجه د هغه ژبه بنده سوې وي او پر خبرو قادر نه وي: ځکه د اصلي ګونګي په حق کي اشاره او لیکنه په دې وجه هوکړه او اقرار منل سوی دی چې اصلي ګونګی له وینا او خبرو کولو څخه عاجزه وي. نو دا عارضي ګونګی یعني معتقلُ اللسان (د چا چې ژبه بنده سوې وي) هم له وینا او خبرو کولو سره عاجزه وي. او کله چې عجز د دواړو په حق کي ثابت دی. نو ځکه د دواړو حکم به یو وي چې د هریوه اشاره او لیکنه به د هوکړي او اقرار دلیل وي.

د دې مثال دا دی لکه په وحشي ښکاروبو کي چې ذکاة اضطراري (زخمي کول) جائز دي چې د هغه وجه وحشي کېدل او ترهېدل دي (یعني په دې وجه چې دوی وحشي او ترهېدونکي ښکاریان دي چې ذکاة اختیاري یعني ذبح ته غاړه نه ږدي)، او که یو کورنی ښکاروی وحشي سي او وترهیږي. نو بیا په هغه کي

هم ذكاة اضطراري جائز دى؛ ځکه په دواړو کي د هغه د جائز کېدلو وجه له ذكاة اختياري (ذبح کولو) څخه عاجزه کېدل دي. نو همدغسي دلته هم په دواړو ګونګيانو (اصلي ګونګي او معتقلُ اللسان) کي د جواز وجه له نُطق او وينا څخه عاجزه کېدل دي.

## د احنافو رايه او دليل

وَالْفَرْقُ لِأَصْحَابِنَا او زموږ د ملګرو [احنافو] لپاره [داخرس او معتقلُ اللسان] د فرق وجه دا ده أَنَّ الْإِشَارَةَ إِنَّمَا تُعْتَبَرُ إِذَا صَارَتْ مَعْهُودَةً مَعْلُومَةً چي اشاره خو هغه وخت معتبره کيږي کله چي هغه معروفه [پېژندل سوې] او معلومه وي وَذٰلِكَ فِي الْأَخْرَسِ دُوْنَ الْمُعْتَقَلِ لِسَانُهُ او دا خبره په [اشاره د] ګونګي کي سته، نه په [اشاره د] هغه کس کي چي ژبه يې بنده سوې وي حَتّٰى لَوِ امْتَدَّ ذٰلِكَ وَصَارَتْ لَهُ إِشَارَاتٌ مَعْلُومَةٌ تر دې چي که هغه اعتقالُ اللسان [ژب بندي] اوږده سي او د معتقلُ اللسان لپاره [هم] معلومي اشارې وګرځي [يعني د هغه اشارې هم معروفه او معلومه وګرځي] قَالُوْا: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْأَخْرَسِ نو مشايخو فرمايلي دي؛ چي هغه د ګونګي په درجه کي دى وَلِأَنَّ التَّفْرِيْطَ جَاءَ مِنْ قِبَلِهِ او ځکه چي کوتاهي [او لاپروايي] د هغه له طرفه راغلې ده حَيْثُ أَخَّرَ الْوَصِيَّةَ إِلٰى هٰذَا الْوَقْتِ په دې حيثيت سره چي هغه [معتقلُ اللسان] تر دې وخته پوري وصيت وځنډوى أَمَّا الْأَخْرَسُ فَلَا تَفْرِيْطَ مِنْهُ او هر چي ګونګى دى نو د هغه له طرفه هيڅ کوتاهي نسته وَلِأَنَّ الْعَارِضَ عَلٰى شَرَفِ الزَّوَالِ دُوْنَ الْأَصْلِيِّ او ځکه چي عارضي عذر د زائلېدلو [او ختمېدلو] پر څنډه دى، نه اصلي عذر [يعني د عارضي عجز (کوم چي د يو عارض په وجه وي) د ختمېدلو اُميد سته او زايلېدلو ته نژدې دى] فَلَا يَتَقَاسَانِ نو ځکه يو به پر بل نه قياس کيږي وَفِي الْآبِدَةِ عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ او په وحشي ښکاروي کي موږ هغه په نص سره پېژندلي دي.

**اللغات:** ﴿معهودة﴾ د سمع له بابه مفعول دى: معروف يعني پېژندل سوى، معلوم، مشهوره.

﴿معتقل﴾ د افتعال د باب مفعول دى: بند سوى، معتقل اللسان: د چا چي ژبه بنده سوې وي.

﴿تفريط﴾ د تفعيل د باب مصدر دى. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يوه معنىٰ دا ده: کوتاهي کول، کمي کول. التفريط (کوتاهي او کمي). ﴿آبدة﴾ د سمع له بابه د مؤنث فاعل صيغه ده: ترهېدونکي. وحشي. ځنګلي.

**تشریح**: مخکې زموږ مسلک ذکر سو چې زموږ په نيز په اخرس او معتقلُ اللسان (اصلي ګونګي او عارضي ګونګي) کې فرق دی چې د اخرس اشاره معتبره ده او د معتقلُ اللسان اشاره معتبره نه ده. نو دلته زموږ له طرفه هغه فرقونه او د فرق وجهې بيانوي چې د دوی تر مينځ کوم فرق دی: ①... اول فرق خو يې دا دی چې اشاره د همغه کس معتبره ده چې د هغه اشارې په خلګو کې معروفه (پېژندل سوي) او معلومه وي او خلک په هغوی پوهيږي او دا ښکاره خبره ده چې اشارې صرف د اخرس (دائمي ګونګي) معروفه او معلومه وي او د معتقلُ اللسان (يعني په عارضي توګه چې د کوم چا ژبه بنده سوې وي د هغه) اشارې معروفه نه وي. نو ځکه صرف د اخرس اشاره به معتبره وي او د معتقلُ اللسان اشارو لره به اعتبار نه وي. ها! که چيري د معتقلُ اللسان د ژبې بنديدلو وخت اوږد سي چې تر ډيري زمانې پوري هغه همداسي ګونګی او ژبه يې بنده وي. نو بيا هغه د اخرس (اصلي ګونګي) په حکم سره ګرځي. (د اوږد والي او امتداد وخت د ځيني حضراتو په وينا يو کال دی. خو ځيني نورو حضراتو بيا ويلي دي چې کله اعتقال [ژب بندي] د مرګ تر وخته پوري اوږده سي. نو د داسي کس اشاره د اقرار او هوکړي دليل دی او په هغه سره دليل نيول جائز دي: ځکه اوس هغه ته داسي عجز لاحق سو چې د زوال اُميد يې نسته. نو داسي کس د اخرس په حکم سره دی (منيه الفتویٰ / اشرف الهدايه ۱).

②... دويم فرق په اخرس او معتقلُ اللسان کې دا دی چې اخرس قصور واره نه دی او معتقلُ اللسان قصور واره او لا پروايي کونکی دی، په دې توګه چې هغه د ژب بندۍ تر وخته پوري وصيت پرې ايښی وو. او اوس چې کله د هغه ژبه بنده سوه نو وصيت يې وکړی. لهذا په دې کې خو د هغه قصور او کوتاهي ده چې مخکې پر وينا او خبرو قادر وو لېکن هغه وصيت نه وکړی او د عاجزۍ تر وخته پوري يې وځنډوی. که چيري هغه له مخکې څخه وصيت کړي وای نو اوس به هيڅ ستونزه نه وای.

③... دريم فرق دا دی چې د اخرس عذر (ژب بندي) اصلي او دائمي ده، حال دا چې د معتقلُ اللسانْ ژب بندي عارضي ده چې د زايلېدلو امکان يې سته. نو په دې حواله سره هم په دواړو کې فرق دی. لهذا يو به پر بل نه قياسول کيږي او د دواړو احکام به سره جلا وي.

**ولِي الأٰبِدةِ إلخ**: او پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس، چې هغه د اخرس او متعقلُ اللسان مسئله پر وحشي او کورني متوحّش ښاروي قياس کړې وه. نو د هغه جواب دا دی چې په کورني متوحّش ښاروي کې د ذکاة اضطراري د جواز وجه وحشي کېدل او پر وحشي قياسول نه دي. بلکې په کورني متوحّش ښاروي کې په دې وجه ذکاة اضطراري جائز دی چې د هغه د جواز په هکله نصّ وارد سوی دی. او نصّ د رافع بن خديج ؓ روايت دی کوم چې په حاشيه کې مذکوره دی "أنّ بعيرًا من أهل الصدقات نَدّ (أبَدَ) فرماه رجلٌ بسهم وسمّى فقتله، فقال ﷺ ....." يعني د صدقې له اوښانو څخه يو

اوښ وترهېدی (وحشي سو). او یو سړي په بسم الله سره هغه اوښ په غشي وویشتی او قتل یې کړی. نو نبي ﷺ وفرمایل چې د وحشي حیوانانو په څېر دا اوښان هم ترهېږي او وحشي کیږي ‌ٔ‌ٔ‌‌‌ٔ‌ٔ‌ٔ‌ٔ‌ٔ‌ٔ‌‌‌فهذا كله چې هغوی داسي وکړي، نو تاسي هم هغسي ور سره وکړئ! کوم چې ناسي د دغه اوښ سره وکړه او بیا هغه وخورئ!). له دغه نص څخه دا خبره څرګنده سوه چې په کورني متوحش څاروي کې د ذكاة اضطراري جائز کېدل د نص پر بناء دي، نه د قیاس پر بناء، او قاعده دا ده چې کوم شی خلاف القیاس په نص سره ثابت وي، پر هغه بل شی قیاسول جائز نه دي. نو ځکه د ګونګي او معتقل اللسان مسئله د متوحش کورني څاروي پر مسئلې قیاسول صحیح نه دي.

## د ګونګي د طلاق، عتاق او د بیع و شراء حکم کله چې هغه لیکنه او اشاره کولای سي

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْأَخْرَسُ يَكْتُبُ كِتَابًا فرمایي: او کله چې ګونګی کس خط لیکلای سي أَوْيُومِئُ إِيمَاءً يُعْرَفُ بِهِ یا داسي اشاره کوي کوم چې پېژندل کیږي فَإِنَّهُ يَجُوزُ نِكَاحُهُ وَطَلَاقُهُ وَعَتَاقُهُ وَبَيْعُهُ وَشِرَاؤُهُ نو د هغه نکاح، د هغه طلاق، د هغه آزادول او د هغه خرڅول او رانیول [تول] جائز دي وَيُقْتَصُّ لَهُ وَمِنْهُ او د هغه لپاره به [له بل چا څخه] قصاص اخیستل کیږي او له هغه څخه به [هم] قصاص اخیستل کیږي وَلَا يُحَدُّ وَلَا يُحَدُّ لَهُ او پر هغه [ګونګي] به حد نه جاري کول کیږي او نه به د هغه لپاره [پر بل چا] حد جاري کول کیږي أَمَّا الْكِتَابَةُ فَلِأَنَّهَا مِمَّنْ نَأَى بِمَنْزِلَةِ الْخِطَابِ مِمَّنْ دَنَا کوم چې کتابت [لیکنه] ده نو ځکه چې کتابت د هغه کس له طرفه کوم چې لیري وي د هغه چا د خطاب په درجه کې دی کوم چې نژدې وي [یعني د لیري کس له طرفه کتابت او لیکنه د نژدې کس د خطاب او تکلم په درجه کې ده] أَلَا تَرَى أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَدَّى وَاجِبَ التَّبْلِيغِ مَرَّةً بِالْعِبَارَةِ وَتَارَةً بِالْكِتَابَةِ إِلَى الْغُيَّبِ آیا ته نه ګورې! چې نبي کریم ﷺ د تبلیغ [دین رسولو] فریضه کله په عبارت [الفاظو] سره اداء کړې ده او کله یې غائبینو ته د خط لیکني په ذریعه اداء کړې ده وَالْمُجَوِّزُ فِي حَقِّ الْغَائِبِ الْعَجْزُ او د غائب په حق کې [د کتابت او اشارې] جائز ګرځونکی شی عاجزي ده وَهُوَ فِي حَقِّ الْأَخْرَسِ أَظْهَرُ وَأَلْزَمُ او دا عاجزي د ګونګي په حق کې زیاته ښکاره او [د هغه سره] زیاته لازمه ده.

**اللغات:** ﴿يُقْتَصُّ﴾ د افتعال [باب] مضارع مجهوله ده: قصاص اخیستل. ﴿نأى﴾ د ماضي صیغه ده.

نَأَى نَأْيًا: لیري کېدل، ګوښه کېدل. ﴿دنا﴾ د نصر د باب ماضي ده: نژدې کېدل. ﴿تارةً﴾ کله. یو ځل. ﴿مُجوِّز﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: اجازه ورکونکی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که چیري ګونګی کس پر لیکنه قادر وي یا داسې اشارې کوي کوم چې معروفه او معلومه وي یعنې خلک په پوهیږي. نو دلیکنې او اشارې په ذریعه د هغه نکاح. طلاق. عتاق او د هغه بیع او شراء ټوله جائز کیږي او نافذیږي. همدارنګه که دا ګونګی پر خپل ځان د قصاص اقرار وکړي. نو له هغه شخصه به قصاص اخیستل کیږي. همدا ډول که هغه پر بل چا د قصاص دعویٰ وکړي (چې مثلاً فلانکي زما غاټی کنبلی دی. لهذا له هغه شخصه دي زما قصاص واخیستل سي) او په بینه سره قصاص ثابت سي. نو دده لپاره به له هغه بل چا شخصه قصاص اخیستل کیږي. ها! دحد اخیستلو او پر بل چا د حد جاري کولو لپاره د ګونګي لیکنې او اشارې لره اعتبار نسته (یعني که اخرس دلیکنې یا اشارې په ذریعه پر خپل ځان د حد اقرار وکړي یا پر بل چا د حد دعویٰ وکړي. نو هغه لره اعتبار نسته. لهذا نه به پر هغه حد جاري کول کیږي او نه به د هغه لپاره پر بل چا حد جاري کول کیږي). او له دې شخه بغیر په نورو شیانو کې به د هغه دلیکنې او اشارې اعتبار کیږي. او پاته سو د حد او قصاص تر مینځ فرق او د هغه وجه او دلیل به څه وروسته بیان کړل سي.

د اخرس (ګونګي) دلیکنې او کتابت د جائز کېدلو او معتبر کېدلو دلیل دا دی چې که یو لیري غائب کس بل چا ته لیک او خط واستوي او د هغه په ذریعه د څه شي خبر ورکړي نو دا جائز او معتبر دي ځکه دلیري غائب کس له طرفه خط او لیکنه د نژدې کس د خطاب او تکلم (خبري کولو) په درجه کې ده یعني کوم مقام او درجه چې د نژدې کس د تکلم ده. هاغه درجه دلیري کس د خط او لیکنې هم ده: د دې ښکاره دلیل دا دی چې نبي کریم ﷺ نژدې او حاضرو خلکو ته د خپل مبارک خطاب او تکلم په ذریعه د دین لارښوونه کوله او غائبینو ته یې د خط او لیکنې په ذریعه د دین لارښوونه کوله. لنډه دا چې کله د غائب خط او کتابت جائز او معتبر دی نو د اخرس (ګونګي) خط او کتابت به په درجه اولیٰ جائز او معتبر وي: ځکه کومه عاجزي چې د غائب په حق کې ثابته ده چې غائب کس و نورو غائبینو ته پر تکلم قادر نه دی. نو دغه عاجزي خو په اخرس کې له غائب شخصه هم زیاته او د هغه سره لازمه ده چې هغه په دائمي توګه له تکلم شخصه عاجزه دی. او غائب کس صرف په یو درجه کې له تکلم شخصه عاجزه دی او که هغه د غائبینو ځای ته ورسیږي نو د هغه عجز عن التکلم ختمیږي. لېکن د اخرس عجز هیڅکله هم نه ختمیږي. نو ځکه د اخرس لیکنه او د هغه اشاره به په هر حال کې معتبره وي.

## د کتابت قسمونه دده

ثُمَّ الْكِتَابَةُ عَلٰى ثَلَاثِ مَرَاتِبَ بیا کتابت [لیکنه] پر دریو درجو ده مُسْتَبِيْنٌ مَرْسُوْمٌ [۱] مستبین مرسوم کتابت وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ النُّطْقِ فِي الْغَائِبِ وَالْحَاضِرِ عَلٰى مَا قَالُوْا او هغه [مستبین مرسوم کتابت] د غائب او حاضر دواړو په حق کي د وینا کولو په درجه کي دی وَمُسْتَبِيْنٌ غَيْرُ مَرْسُوْمٍ [۲] او مستبین غیر مرسوم کتابت كَالْكِتَابَةِ عَلَى الْجِدَارِ وَأَوْرَاقِ الْأَشْجَارِ لکه پر دېوال او د درختو پر پاڼو لیکنه وَيُنْوىٰ فِيْهِ او په داسي کتابت کي به [دلیکونکي] د نیت طلب کول کیږي [یعني د هغه نیت به معلومول کیږي] لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ صَرِيْحِ الْكِنَايَةِ ځکه چي دا قسم کتابت د صریح کنایه [کنایهٔ تولیه] په درجه کي دی فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو ځکه نیت ضروري دی وَغَيْرُ مُسْتَبِيْنٍ [۳] او غیر مستبین کتابت كَالْكِتَابَةِ عَلَى الْهَوَاءِ وَالْمَاءِ لکه په هوا او اُوبو باندي لیکنه وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ كَلَامٍ غَيْرِ مَسْمُوْعٍ او دا قسم کتابت د نا اورېدل سوي کلام په درجه کي دی فَلَا يَثْبُتُ بِهِ الْحُكْمُ نو ځکه د هغه په وجه به حکم نه ثابتیږي.

**اللغات**: ﴿مستبین﴾ د استفعال د باب فاعل دی: واضح خط او لیکنه کوم چي ویل کېدلای سي. مراد ځني هغه خط دی کوم چي پر کاغذ او داسي نورو لیکل سوی وي ځکه چي هغه ویل کېدلای سي. او له غیر مستبین څخه مراد د اُوبو او هوا لیکنه ده ځکه چي هغه نه سي ویل کیدلای.

﴿مرسوم﴾ د نصر د باب مفعول دی. خپله معنیٰ یې ده: لیکل سوی. مراد ځني مُعَنْوَن دی یعني داسي خط او لیکنه چي په شروع کي یې عنوان یعني مِن فلان إلىٰ فلان لیکل سوي وي (حاشيه).

﴿نُطق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: وینا کول. خبره کول. ﴿أوراق﴾ جمع د وَرَقٌ ده: پاڼه. ورق الشجر: د درختي پاڼه. ورق الکتاب: د کتاب او لیکني پاڼه.

**تشریح**: څه مخکي چي د کتابت یادونه وسوه. په دې عبارت کي د هغه قسمونه او حکمونه بیانوي. نو فرمایي چي کتابت یعني لیکنه پر درې قسمه ده:

① ... مستبین مرسوم کتابت. د دې مطلب دا دی چي خط او لیکنه واضح (څرګنده) وي کوم چي ویل کېدلای سي او هغه ته عنوان هم وي. مثلاً داسي لیکنه سوې وي "من فلان بن فلان إلى فلان بن

فلان" زما له طرفه "فلان بن فلان" آزاد دی یا داسي نور. د مُستبین مرسوم حکم دا دی چي داسي کتابت د حاضر او غائب دواړو په حق کي د نُطق او تکلم قائم مقام دی.

(۲)... مُستبین غیر مرسوم کتابت. یعني خط او لیکنه خو واضح وي (ویل کېدلای سي). لېکن پر هغه عنوان درج نه وي یعني "من فلان بن فلان إلی فلان بن فلان" (یعني د مرسل او مُرسل اِلیه نوم او پته) بانْدي درج نه وي. مثلاً پر دېوال یا د درختو پر پاڼو یې لیکنه کړې وای. د دې حکم دا دی چي په داسي لیکنه کي به د لیکونکي نیت پوښتل کیږي او د هغه پر نیت به فیصله کول کیږي: ځکه چي دا قسم خط او لیکنه د صریح کنایه په درجه کي ده. لهذا ځرنګه چي په کنایه کي نیت معلومول کیږي. نو همداسي به په دغه لیکنه کي هم نیت معلومول کیږي او د هغه مطابق به فیصله کول کیږي. (مصنف رَحِمَهُ الله فرمایلي دي لأنه بمنزلة صریح الکنایة. یعني د لیکني دغه قسم داسي دی لکه هغه چي قولاً کنایه استعمال کړې وي. نو له صریح الکنایه څخه مراد "کنایهٔ تولیه" ده او په هغه کي نیت ته ضرورت وي. نو همداسي به دلته هم وي)

(۳)... غیر مُستبین کتابت. یعني داسي خط او لیکنه کوم چي واضح نه وي یعني نه سي ویل کېدلای. لکه په اُوبو کي لیکنه یا په هوا او فضا کي لیکنه (چي د ګوتو په اشارو سره لیکنه وکړي). د دې حکم دا دی چي دا قسم لیکنه د کلام غیر مسموع (نا اورېدل سوي خبري) په درجه کي ده. لهذا ځرنګه چي په نا اورېدل سوې خبره سره هیڅ حکم نه ثابتیږي. نو همداسي په دغه لیکنه سره به هم هیڅ حکم نه ثابتیږي.

## د ګونګي د اشارې حکم او تفصیل

وَأَمَّا الإِشَارَةُ فَجُعِلَتْ حُجَّةً فِي حَقِّ الأَخْرَسِ فِي حَقِّ هٰذِهِ الأَحْكَامِ او کوم چي اشاره ده نو هغه د ګونګي په حق کي د دغه احکامو [یعني د نکاح وغیره] په هکله [ځکه] حجت ګرځول سوې ده لِلْحَاجَةِ إِلَى ذٰلِكَ ځکه چي دې احکامو ته ضرورت دی لأَنَّهَا مِنْ حُقُوقِ الْعِبَادِ ځکه چي دا احکام [نکاح وغیره] له حقوق العباد څخه دي وَلَا تَخْتَصُّ بِلَفْظٍ دُونَ لَفْظٍ او دا احکام د یوه لفظ نه بل لفظ سره مختص نه دي [یعني د مخصوصه الفاظو سره مختص نه دي] وَقَدْ تَثْبُتُ بِدُونِ اللَّفْظِ او ځیني وخت خو د لفظ څخه بغیر [هم] دا احکام ثابتیږي وَالْقِصَاصُ حَقُّ الْعَبْدِ أَيْضًا او قصاص هم د بنده حق دی وَلَا حَاجَةَ إِلَى الْحُدُودِ او حدونو ته ضرورت نسته [یعني د نکاح وغیره په څېر حد قذف او داسي نور حدونو ته

ضرورت نسته [ لِأَنَّهَا حَقُّ اللّٰهِ تَعَالٰى ځکه چې حدونه د الله تعالى حق دي وَلِأَنَّهَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ او ځکه چې حدونه په شبهاتو سره ليرې کيږي [ساقطيږي] وَلَعَلَّهُ كَانَ مُصَدِّقًا لِلْقَاذِفِ او کېدلای سي چې هغه [ګونګي] د قاذف تصديق کونکی وي فَلَا يُحَدُّ لِلشُّبْهَةِ نو د شبهې په وجه به حد نه پرې جاري کول کيږي وَلَا يُحَدُّ أَيْضًا بِالْإِشَارَةِ فِي الْقَذْفِ او په قذف کې به [د ګونګي] د اشارې په وجه هم حد نه پرې جاري کول کيږي لِانْعِدَامِ الْقَذْفِ صَرِيْحًا د صراحتاً قذف د نشتوالي په وجه وَهُوَ الشَّرْطُ حال دا چې هغه [صراحتاً قذف] شرط دي [يعني د حد قذف لپاره صراحتاً د زنا تهمت لګول شرط دي]

**اللغات:** ﴿حجة﴾ د قضاء په محاوره کې د حجت معنى ده: دليل. ﴿تندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ليرې کېدل. دفع کېدل. (ساقطېدل). ﴿قذف﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پريو چا صراحتاً يا ضمناً د زنا تهمت لګول. پريو کس په دوه درولغه د زنا تور لګول. او قاذف له همدې باب څخه فاعل دی.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې مخکې د ګونګي (اخرس) اشاره چې د نکاح او طلاق او د بيع او شراء په احکامو کې حجت او معتبره منل سوې ده او په اشاره سره د ګونګي له طرفه دا عقود جائز او معتبر ګرځول سي دي. هغه د ضرورت او احتياج پر بناء دي: ځکه دا ټوله عقدونه د حقوق العباد سره متعلق دي او د بندګانو د ضرورت په خاطر هغوی صحيح ګرځول سخت ضروري دي. همدا وجه ده چې دغه عقود او احکام د مخصوصه الفاظو يا صرف د عربي ژبې د الفاظو سره مختص نه دي. بلکې په عامو الفاظو او د پښتو. فارسي او هري ژبې په الفاظو سره هغوی منعقد کيږي او ځيني وخت خو له الفاظو څخه بغير هم هغوی منعقد کيږي، لکه څرنګه چې بيع تعاطي ده چې هغه بغير له الفاظو منعقد کيږي. او لکه څرنګه چې د فضولي په نکاح کې پر تکلم او خبرو قدرت وي خو بيا هم هغه نکاح له تکلم څخه بغير منعقد کيږي. لهذا کله چې دغه عقدونه د قادر الکلام کس له طرفه بغير له کلام او الفاظو څخه هم منعقد کيږي. نو څوک چې ګردسره پر کلام قادر نه وي يعني کونګی (اخرس). د هغه له طرفه خو به په درجه اولى بغير له الفاظو څخه دا منعقد کيږي.

والقصاص إلخ: د دې حاصل دا د چې قصاص هم حق العبد دی. نو ځکه قصاص هم د ګونګي په اشاره سره ثابتيږي: ځکه چې د هغه اثبات ته هم ضرورت دی. خو حدود (حدونه) د ګونګي په اشاره اوليکنه سره نه ثابتيږي (لکه مخکې چې هم ذکر سوه). نو که هغه په اشاره سره پر خپل ځان د حد قذف اقرار وکړي يا پر بل کس د حد قذف دعوى وکړي. نو دې لره اعتبار نسته. لهذا نه به پر ګونګي حد جاري کول کيږي او نه به پر هغه بل کس حد جاري کول کيږي د چا په خلاف چې ګونګي دعوى

کړې ده: ځکه چي حدود خو یو حق الله دي او د هغوی اثبات لره دومره ضرورت نسته. څومره ضرورت چي د حقوق العباد اثبات لره سته. او دویم دا چي په اشاره کي څو احتمالات وي او دا ضروري نه ده چي د ګونګي اشاره دي نو خامخا پر قذف (تهمت) مبني وي. بلکي دا هم کېدلای سي چي هغه په دې اشاره سره د قاذف تصدیق کوي. لهذا د اشارې په ذریعه په قذف ثابتولو کي شک دی او د شک په وجه حدود ساقطیږي لکه څرنګه چي دا د فقهي مشهوره قاعده ده چي "اَلْحُدُوْدُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ". او دریم دا چي د قذف د ثابتولو لپاره صراحتاً (په ښکاره الفاظو سره) د قذف اقرار کول ضروري دي. حال دا چي په اشاره کي خو هیڅ صراحت هم نسته او بالکل پکښي معدوم دی. نو ځکه په دې حواله هم سره د اشارې په ذریعه قذف وغیره نه سي ثابتېدلای.

## په حد او قصاص کي فرق

| |
|---|
| ثُمَّ الْفَرْقُ بَيْنَ الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ بیا د حدونو او قصاص په مینځ کي فرق دا دی أَنَّ الْحَدَّ لَا يَثْبُتُ بِبَيَانٍ فِيْهِ شُبْهَةٌ چي حد په داسي بیان سره نه ثابتیږي چي په هغه کي شبهه وي أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُمْ لَوْ شَهِدُوْا بِالْوَطْءِ الْحَرَامِ آیا ته نه ګورې! چي ګواهان که د ناروا وطي ګواهي ورکړي أَوْ أَقَرَّ بِالْوَطْءِ الْحَرَامِ یا یو څوک [پرخپل ځان] د ناروا وطي اقرار وکړي لَا يَجِبُ الْحَدُّ نو حد نه واجبیږي وَلَوْ شَهِدُوْا بِالْقَتْلِ الْمُطْلَقِ او که ګواهان د مطلق قتل ګواهي ورکړي أَوْ أَقَرَّ بِمُطْلَقِ الْقَتْلِ یا یو څوک [پرخپل ځان] د مطلق قتل اقرار وکړي يَجِبُ الْقِصَاصُ نو قصاص واجبیږي وَإِنْ لَمْ يُوْجَدْ لَفْظُ التَّعَمُّدِ که څه هم [په دې ګواهي او اقرار کي] د تعمد [عمداً قتل کولو] لفظ موجود نه دی وَهٰذَا لِأَنَّ الْقِصَاصَ فِيْهِ مَعْنَى الْعِوَضِيَّةِ او دا ځکه چي په قصاص کي د عوض کېدلو معنیٰ سته لِأَنَّهُ شُرِعَ جَابِرًا ځکه چي قصاص [د قتل] د تلافي کونکي [جبران] په توګه مشروع سوی دی فَجَازَ أَنْ يَثْبُتَ مَعَ الشُّبْهَةِ لهذا د شبهي سره [یعني د شبهي باوجود] د هغه ثابتېدل جائز دي [چي شبهه د هغه لپاره نه مانع کیږي] كَسَائِرِ الْمُعَاوَضَاتِ الَّتِيْ هِيَ حَقُّ الْعَبْدِ لکه هغه ټوله معاوضات کوم چي د بنده حق دي [یعني لکه څرنګه چي هغوی د شبهي سره ثابتیږي. نو همداسي به قصاص هم د شبهي سره ثابتیږي] أَمَّا الْحُدُوْدُ الْخَالِصَةُ لِلّٰهِ تَعَالَىٰ فَشُرِعَتْ زَوَاجِرَ او پاته سوه حدود کوم چي خالص د الله تعالیٰ حق دي نو هغه د |

زواجرو [منع کونکو] په توګه مشروع سوي دي وَلَيْسَ فِيْهَا مَعْنَى الْعِوَضِيَّةِ او په هغوی کي د عوض کېدلو معنیٰ نسته فَلَا تَثْبُتُ مَعَ الشُّبْهَةِ نو ځکه حدود به د شبهي سره نه ثابتیږي لِعَدَمِ الْحَاجَةِ د ضرورت د نشتوالي په وجه [چي د شبهي سره ثابتېدلو ته یې ضرورت نسته].

**اللغات:** ﴿التعمّد﴾ د تفعّل د باب ده: قصداً کول (په قصده کول). ﴿جابر﴾ تلافي کونکی (هغه شی چي د نقصان او تاوان پر ځای دربږي). جبران کونکی. د نقصان پوره کونکی. ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوي نقل سوي دي: ① ټوله (تمام). ② باقي (پاته. نور). ﴿زواجر﴾ جمع د زَاجِر ده: منع کونکی. رټونکی او تنبیه ورکونکی.

**تشریح:** د ګونګي (اخرس) په مسئله کي دا سوال پیدا کېدی چي دلته په قصاص او حدودو کي ولي دومره فرق دی چي د ګونګي په لیکنه او اشاره سره قصاص خو جائز دی او نافذیږي. لېکن د هغه په لیکنه او اشاره سره حدود نه نافذیږي. حال دا چي په ښکاره د دواړو درجه یوه ده.

نو مذکوره عبارت د هغه د جواب په توګه دی چي د حدودو او قصاص تر مینځ فرق سته او هغه فرق دا دی چي په حدودو کي لږ شبهه هم نه زغمل کیږي او معمولي شبهه د هغوی د ثبوت لپاره مانع ګرځي. حال دا چي په قصاص کي لږ غوندي شبهه هم زغمل کیږي او معمولي شبهه د هغه د ثبوت لپاره مانع نه ګرځي یعني د معمولي شبهي سره هم قصاص ثابتیږي. همدا وجه ده که یو څو خلکو دا ګواهي ورکړه چي فلانکي سړي ناروا وطي کړي دي مثلاً د حیض په حالت کي یې وطي کړي دي یا هغه د مجوسیه ښځي سره وطي کړي دي. یا یو چا خپله دا اقرار وکړی چي ما ناروا وطي کړي دي. نو په دغه ګواهي یا اقرارُ سره حدّ (د زنا حد) نه واجبیږي. لېکن که ګواهانو دا ګواهي ورکړه چي دا کس فلانکي قتل کړی دی. یا یو چا دا اقرار وکړی چي دا کس ما قتل کړی دی. نو قتل ثابتیږي او پر هغه قصاص واجبیږي که څه هم ګواهانو دا صراحت نه وي کړی چي هغه قتلِ عمد کړی دی. یعني د عمد له صراحت څخه بغیر قصاص واجبول کیږي. حال دا چي په هغه کي د عدمِ عمد (یعني د قتلِ خطا وغیره) شبهه هم موجوده ده. لېکن بیا هم دا شبهه په قصاص کي زغمل سوې ده او قصاص ثابت کړی سوی؛ د دې وجه دا ده چي په قصاص کي د عوض او بدل کېدلو (عوضیت) معنیٰ سته؛ ځکه چي قصاص حقُ العبد دی او هغه له قاتل څخه د صادرېدونکي ګناه د تلافي لپاره مشروع سوی دی (یعني قصاص د دې لپاره په شریعت کي جاري کړی سوی دی چي د قاتل له طرفه کوم جرم پر مقتول بنده صادر سوی دی. په قصاص سره د هغه تلافي او جبران وسي). او حقوقُ العباد د معمولي شبهي سره هم ثابتیږي. نو ځکه قصاص به هم د معمولي شبهي سره ثابتیږي.

د دې په خلاف په حدودو کې د عوض کېدلو معنیٰ نشته. بلکې حدود خالص د الله تعالیٰ حق دي او هغوی د زواجزو په توګه مشروع سوي دي (یعني حدونه د دې لپاره مشروع سوي دي چې خلک له دې جرمونو (زنا، قذف وغیره) څخه منع سي. او د بنده د حق د تلافی لپاره نه دي مشروع سوي). لهذا د شبهې د پیدا کېدلو په وخت کې (د شبهې سره) د هغوی د ثابتېدلو څه ضرورت نشته. نو ځکه د شبهې په وجه حدود ساقطیږي (په لنډه وینا دا چې قصاص جابر [تلافي کونکی] دی او حد زاجر [منع کونکی] دی او په جابر کې د شبهې تحمل کېدلای سي. لیکن په زاجر کې د شبهې تحمل نه سي کېدلای).

## د غائب کس خط او لیکنه د قصاص لپاره حجت کېدلای سي که نه؟

وَذُكِرَ فِيْ كِتَابِ الْإِقْرَارِ أَنَّ الْكِتَابَ مِنَ الْغَائِبِ لَيْسَ بِحُجَّةٍ فِيْ قِصَاصٍ يَجِبُ عَلَيْهِ او د مبسوط [په کتاب الاقرار کې ذکر سوي دي چې د غائب خط د هغه قصاص په هکله حجت نه دی کوم چې پر ده [یعني پر غائب] واجب وي وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُوْنَ الْجَوَابُ هُنَا كَذٰلِكَ او احتمال سته چې هلته [یعني په مبسوط کې (د اخرس په هکله)] جواب همداسې وي [چې خط او کتابت د اخرس (ګونګي) په حق کې هم حجت نه دی] فَيَكُوْنُ فِيْهِمَا رِوَايَتَانِ نو په دوی دواړو [یعني په غائب او اخرس] کې به دوه روایتونه سي وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُوْنَ مُفَارِقًا لِذٰلِكَ او دا احتمال هم سته چې اخرس له غائب څخه جلا وي لِأَنَّهُ يُمْكِنُ الْوُصُوْلُ إِلٰى نُطْقِ الْغَائِبِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چې د غائب نطق [وینا] ته رسېدل فی الجمله [په یو درجه کې] ممکن دي لِقِيَامِ أَهْلِيَّةِ النُّطْقِ ځکه چې [په غائب کې] د نطق اهلیت قائم [موجود] دی وَلَا كَذٰلِكَ الْأَخْرَسُ او ګونګی داسې نه دی لِتَعَذُّرِ الْوُصُوْلِ إِلَى النُّطْقِ ځکه چې [د هغه] نطق ته رسېدل ناممکن دي لِلْآفَةِ الْمَانِعَةِ د هغه آفت په وجه کوم چې [د نطق] منع کونکی دی.

**اللغات**: ﴿مفارق﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: یو له بل څخه جلا، بېل.

**تشریح**: مخکې خو د جامع صغیر عبارت وو چې د هغه حاصل دا وو چې که ګونګی (اخرس) د لیکنې یا د اشارې په ذریعه پر خپل ځان د قصاص اقرار وکړي، نو د هغه لیکنه یا اشاره معتبره ده او په دې سره پر هغه قصاص واجبیږي چې د هغه تفصیل مخکې بیان سو.

او دلته د مبسوط په حواله سره دا بیانوي که یو غائب کس د لیکنې او کتابت په ذریعه پر خپل ځان د قصاص اقرار وکړي. نو د قصاص واجبېدلو په هکله د هغه لیکنه معتبره نه ده او په دې سره پر هغه قصاص نه واجبیږي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې دا احتمال هم کېدلای سي چې په

مبسوط کې د اخرس (ګونګي) د ليکنې هم دغه حکم وي کوم چې د غائب د ليکنې دی يعني د اخرس په ليکنه سره به هم پر هغه قصاص نه واجبيږي. لېکن په جامع صغير کې د اخرس په ليکنه سره پر هغه قصاص واجب کړی سوی دی. که چيرې موږ د مبسوط احتمال د اخرس په حق کې معتبر وسو نو د اخرس په هکله به دوه روايتونه سي: (١) يو د جامع صغير روايت. چې په هغه کې د ليکنې په ذريعه د اخرس د قصاص اقرار معتبر دی. (٢) د مبسوط روايت چې هلته دا اقرار معتبر نه دی.

**ويحتمل أن يكون مفارقا إلخ:** فرمايي چې دلته دا احتمال هم کېدلای سي چې په مبسوط کې کوم حکم ذکر سوی دی. هغه فقط د غائب په حق کې وي او د اخرس (ګونګي) سره د هغه هيڅ تعلق نه وي او د ليکنې په ذريعه د قصاص په وجوب کې د اخرس او غائب تر مينځ فرق وي: او وجه د فرق يې دا ده چې په غائب کې د نُطق او تکلم اهليت موجود دی او هغه په يو درجه کې پر نطق (وينا) قدرت لرونکی دی چې د هغه نطق او تکلم ته رسېدل ممکن دي. نو ځکه پر نُطق او تکلم د قدرت لرلو په وجه د هغه ليکنه او خط معتبر نه دی ګرځول سوی. لېکن په اخرس کې د آفت په وجه بالکل د نطق اهليت معدوم دی او د هغه په حق کې د نُطق او تکلم هيڅ امکان نسته. نو ځکه د قصاص د وجوب په هکله د هغه ليکنه او کتابت معتبر ګرځول سوی دی.

## د هغه کس د اشارې حکم کوم چې پر کتابت (ليکنه) قادر وي

وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى أَنَّ الْإِشَارَةَ مُعْتَبَرَةٌ وَإِنْ كَانَ قَادِرًا عَلَى الْكِتَابَةِ او دا [د متن] مسئله پر دې دلالت کوي چې [د ګونګي] اشاره معتبره ده که څه هم هغه پر ليکنه قدرت لرونکی وي بِخِلَافِ مَا تَوَهَّمَهُ بَعْضُ أَصْحَابِنَا أَنَّهُ لَا تُعْتَبَرُ الْإِشَارَةُ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْكِتَابَةِ په خلاف د هغه وهم کوم چې زموږ بعضي ملګرو کړی دی چې پر ليکنې د قدرت سره اشاره معتبره نه ده لِأَنَّهُ حُجَّةٌ ضَرُورِيَّةٌ [د هغو دليل دا دی] چې اشاره د ضرورت پر بناء حجت دی وَلَا ضَرُورَةَ او [دلته] ضرورت نسته لِأَنَّهُ جَمَعَ هَهُنَا بَيْنَهُمَا اخو پر ليکنې د قدت لرلو سره د اشارې د معتبر کېدلو دليل دا دی [ چې امام محمد رَحِمَهُ اللهُ دلته [په متن کې] د اشارې او کتابت تر مينځ جمع کړې ده [يعني دواړه يې يو ځای بيان کړي دي له څه تړون او توقيت څخه بغير] فَقَالَ: أَشَارَ أَوْ كَتَبَ او هغه داسې فرمايلي دي: چې أشار أو كتب وَإِنَّمَا اسْتَوَيَا لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُجَّةٌ ضَرُورِيَّةٌ او دوی دواړه [اشاره او کتابت] سره برابر دي ځکه چې له دوی څخه هر يو د ضرورت پر بناء حجت دی وَفِي الْكِتَابَةِ زِيَادَةُ بَيَانٍ لَمْ يُوجَدْ فِي الْإِشَارَةِ او په کتابت [ليکنه] کې

څه زيات بيان (وضاحت) ستـه کوم چي په اشاره کي نسته وَفِي الْإِشَارَةِ زِيَادَةُ أَمْرٍلَهُ يُوجَدُ فِي الْكِتَابَةِ او په اشاره کي بيا څه زيات داسي خبره سته کوم چي په کتابت کي نسته لِمَا أَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى النُّطْقِ مِنْ آثَارِ الْأَقْلَامِ ځکه چي اشاره د قلم د نښو (يعني د ليکني) په مقابله کي نطق زياتـه نژدې ده فَاسْتَوَيَا نو ځکه دوی دواړه سره برابر سول.

**اللغات:** ﴿كتابة﴾ د نصر د باب مصدر دی: ليکل. ليکنه. ﴿استويا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه مذکر غائب مضارع صيغه ده: سره برابرېدل.

**تشريح:** فرمايي مخکي چي په متن کي (کوم چي د جامع صغير عبارت دی) دا مسئله ذکر سوه "وإذا كان الأخرس يكتب كتابا أو يؤمي ايماء يعرف به إلخ" (چي تر اوسه د هغې بيان شروع وو). د دغه مسئلې عبارت په ښکاره توګه پر دې دلالت کوي چي ليکنه او اشاره دواړه سره برابر دي او د دواړو حکم يو دی او يوه ته پر بل هيڅ فوقيت او ترجيح حاصله نه ده يعني که چيري اخرس (ګونګی) پر ليکنه قادر وي خو بيا هم هغه په اشاره سره اقرار وکړي نو هم د هغه اشاره جائز او معتبره ده. لهذا له دغه عبارت څخه دا خبره څرګنده سوه چي بعضي حضراتو چي کوم دا وهم کړی دی چي کله اخرس پر ليکنه قادر وي، نو بيا د هغه اشاره معتبره نه ده: چي د هغوی دليل دا دی چي اشاره حُجّت ضرورته دی يعني اشاره د ضرورت پر بناء حُجّت او معتبره ګرځول سوې ده (چي اخرس له تکلم څخه عاجزه دی) او قاعده دا ده چي "الضَّرُورَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الضَّرُورَةِ" يعني کوم شی چي د ضرورت پر بناء ثابت وي هغه صرف د همدې ضرورت په اندازه ثابتيږي. او دا معلومه خبره ده چي کله اخرس پر ليکنه قادر وي نو بيا اشارې ته هيڅ ضرورت نسته. نو ځکه په دې وخت کي به د هغه اشاره بالکل معتبره نه وي.

صاحب دهدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا فقط د هغو يو وهم دی کوم چي صحيح نه دی: ځکه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په متن (د جامع صغير په مذکوره عبارت) کي دواړه سره يو ځای له څه فرق او فوقيت څخه بغير بيان کړي دي. او دا خبره چي اشاره د ضرورت پر بناء ثابته ده صحيح نه ده. بلکي اشاره او کتابت (ليکنه) دواړه د ضرورت پر بناء ثابت دي او دواړه حجت ضرورته دي (کوم چي له تکلم څخه د عاجزه کېدلو پر بنياد ضرورتاً ثابت دي او اصل خو تکلم او نطق دی). او په دوی کي يوه ته پر بل هيڅ فضيلت او فوقيت حاصل نه دی: ځکه که په يوه اعتبار سره کتابت افضله او قوي دی نو په بل اعتبار سره اشاره افضله ده. يعني کتابت که په دې وجه افضله دی چي هغه تر اشارې زيات واضح او څرګند وي او له هغه څخه په ښه توګه خبره فهمول کيږي. نو اشاره بيا په دې وجه افضله ده چي اشاره نطق او

خبرو ته زیاته نژدې ده ځکه چې اشاره هم په اعضاؤ (یعني په سر وغیره) سره کیږي او نطق هم په اعضاؤ (ژبه) سره کیږي. نو په یوه اعتبار سره کتابت افضله دی او په بل اعتبار سره اشاره افضله ده. لهذا یو پر بل څه فضیلت نه لري بلکې دواړه سره برابر دي. نوځکه پر کتابت د قدرت لرلو باوجود به هم اشاره جائز او معتبره وي.

## د هغه کس د اشارې حکم چې د یو عارض په وجه یې ژبه یوه یا دوې ورځې بنده شوې وي

وَكَذٰلِكَ الَّذِيْ صَمَتَ يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ لِعَارِضٍ او همدارنګه هغه کس کوم چې د څه عارض په وجه یوه ورځ یا دوې ورځې چپ پاته شي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُعْتَقَلِ لِسَانُهُ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ د هغه کس په هکله بیان کړی چې ژبه یې بنده شوې وي أَنَّ آلَةَ النُّطْقِ قَائِمَةٌ چې د نطق آله موجوده ده وَقِيْلَ: هٰذَا تَفْسِيْرٌ لِمُعْتَقَلِ اللِّسَانِ او ویل شوي دي: چې دا [یعني الذي صمت يوما او يومين] د معتقل اللسان تفسیر دی.

**اللغات:** ﴿صمت﴾ د نصر د باب ماضي ده: خاموش کېدل، چپ پاتېدل. ﴿عارض﴾ د نصر له بابه فاعل دی: عارضېدونکی (پېښېدونکی) آفت او مرض، مانع، حائل. جمع: عَوَارِض. ﴿نُطق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: خبره او وینا کول (تکلم کول). النطق: وینا.

**تشریح:** مخکې ذکر شوه چې د معتقلُ اللسان یعني د هغه کس چې د یو عارض په وجه یې ژبه بنده شوې وي (کوم ته چې موږ عارضي ګونګی ویلي وه) د هغه اشاره معتبره نه ده. چې د هغه عبارت داسې وو "وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ فِي الَّذِيْ يُعْتَقَلُ لِسَانُهُ". نو دلته پر هاغه عبارت دا مذکوره عبارت "كَذٰلِكَ الَّذِيْ إلخ" عطف کړې شوی دی (یعني هاغه مخکینی عبارت معطوف علیه دی او دا مذکوره عبارت معطوف دی) یعني څرنګه چې د معتقلُ اللسان اشاره جائز او معتبره نه ده. همداسې د هغه کس اشاره هم معتبره نه ده. کوم چې د یو عارض په وجه تر یوې ورځې یا دوو ورځو پورې چپ چاپ پاته وي او ژبه یې بنده وي؛ ځکه په هغه کې هم د نُطق آله یعني ژبه موجوده ده او په یو درجه کې هغه پر نُطق او تکلم قادر دی.

بعضې حضراتو ویلي دي چې دا عبارت د معتقلُ اللسان تفسیر دی (او مخکې هم موږ ضمناً د اشرف الهدایه په حواله سره د معتقلُ اللسان تفسیر بیان کړی یعني که یو کال د هغه ژبه بنده وي نو هغه د اخرس "ګونګي" په حکم سره دی او اشاره یې معتبره ده. لهذا که تر یوه کال کم وي نو د هغه اشاره معتبره نه ده. او هلته سو بل قول هم ذکر کړی دی).

## که چیرې ذبح کړل سوي پسونه او مردار سوي پسونه سره ګډوډ سي، نو څه حکم دی؟

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي] فرمایي وَإِذَا كَانَ الْغَنَمُ مَذْبُوحَةً وَفِيهَا مَيْتَةٌ او کله چي پسونه ذبح کړل سوي وي او په هغوی کي مردار [مردار سوي] پسونه هم وي فَإِنْ كَانَتِ الْمَذْبُوحَةُ أَكْثَرَ نو که مذبوحه پسونه زیات وي تَحَرَّى فِيهَا وَأَكَلَ نو په هغوی کي دي تحرّی وکړي او [هغوی دي] وخوري وَإِنْ كَانَتِ الْمَيْتَةُ أَكْثَرَ أَوْ كَانَا نِصْفَيْنِ او که مردار پسونه زیات وي یا دواړه نیم په نیمه وي لَمْ يُؤْكَلْ نو نه به خوړل کیږي وَهٰذَا إِذَا كَانَتِ الْحَالَةُ حَالَةَ الْإِخْتِيَارِ او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي حالت د اختیار حالت وي [نه د اضطرار او ضروت حالت] أَمَّا فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ يَحِلُّ لَهُ التَّنَاوُلُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ لیکن د ضرورت [او اضطرار] په حالت کي د هغه لپاره په دې صورتونو کي خوړل حلال [روا] دي لِأَنَّ الْمَيْتَةَ الْمُتَيَقَّنَةَ تَحِلُّ لَهُ فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ ځکه [کله چي] په یقین سره مردار سوی څاروی د ده لپاره د ضرورت په حالت کي حلال دی فَالَّتِي تَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ ذَكِيَّةً أَوْلَىٰ نو هغه څاروی چي احتمال پکښي سته چي هغه به مذبوحه وي په درجه اولیٰ حلال وي [یا په بله وینا دا چي کوم څاروی د مذبوح کېدلو احتمال لري نو هغه به په طریقه اولیٰ سره حلال وي] غَيْرَ أَنَّهُ يَتَحَرَّىٰ خو هغه به تحرّی کوي لِأَنَّهُ طَرِيقٌ يُوْصِلُهُ إِلَى الذَّكِيَّةِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه تحرّی داسي طریقه ده کوم چي هغه په یو درجه کي مذبوح څاروي ته رسوي فَلَا يَتْرُكُهُ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ نو ځکه بغیر له ضرورته به تحرّی نه پرېږدي.

**اللغات:** ﴿الغنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسم جنس دی. پسونه. بزې (وزې) ټوله په دې لفظ کي داخل دي. مذکر او مؤنث دواړو لره شامل دی. واحد يې من غير لفظه شَاةٌ دی او له خپل لفظ څخه واحد نه لري. (موږ د آساني لپاره د دې ترجمه په پسونو سره کړې) او دې ته د "غَنَم" ویلو وجه دا ده چي پسونه او بزې نه د جهاد آلې دي او نه د دفاع آلې دي بلکي د هر چا لپاره غنیمت دي (مصباح المنير. معجم لغة الفقهاء). ﴿ميتة﴾ مردار سوی (یعني هغه حیوان چي په خپل مرګ مړ سوي وي. اَلْمَيْتَةُ مِنَ الْحَيَوَانِ مَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ (مصباح). ﴿تحرّی﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: طلب او پلټنه کول. غور او فکر کول. د دې اصل معنیٰ ده: طَلَبُ الْأَحْرَىٰ. د زیات مناسب او زیات لائق طلب کول. یعني د داسي څه طلب کول کوم چي د دلیل له رویه زیات مناسب وي. ﴿متيقنة﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه

ده: یقیني کړی سوی (یقیني). په یقیني توګه ثابت. ﴿ذکیة﴾ ذبح کړی سوی. حلال کړی سوی.
﴿یوصله﴾ د افعال د باب مضارع ده. أَوْصَلَ یُوْصِلُ إِیْصَالًا: رسول.

**تشریح: صورت د مسئلي**: دا دی که په یو ځای کي یا مثلاً په یوه رمه کي څو پسونه ذبح کړل سوي (حلال کړل سوي) وي او څو پکښي خپله مردار سوي وي (یعني بغیر ذبح کولو مړه سوي وي). خو بیا نا معلومه نه کړل سي چي په دې کي کوم پسونه مذبوحه دي او کوم یې مردار دي. نو په دې صورت کي به تر ټولو مخکي ته دې کتل کیږي چي مذبوحه (ذبح کړل سوي) پسونه زیات او غالب دي او که مردار پسونه؟. که چیري مذبوحه پسونه له مردارو پسونو څخه زیات وي. نو مالک دي تحرّي او پلټنه پکښي وکړي او له تحرّی څخه وروسته چي هغه کوم پسونه مذبوحه وګڼي (چي په یو نښاني سره دا ورته معلومه سي چي دا مذبوحه پسونه دي)، نو د هغه پسونو خوړل د ده لپاره حلال او روا دي لهذا په ښه اطمینان سره هغه خوړلای سي. او که چیري مردار پسونه زیات وي یا مذبوحه او مردار پسونه سره برابر وي، نو بیا د هغوی خوړل حلال او روا نه دي.

وهٰذا إذا کانت إلخ: فرمایي چي مذکوره حکم په هغه صورت کي دی کله چي د اضطرار او مخمصې حالت نه وي یعني دا حکم د اختیار په حالت کي دی. لېکن که د اضطرار او مخمصې حالت وي. نو بیا بغیر له څه فرق څخه مذبوحه او مردار ټوله پسونه حلال دي تر دې چي په هغه سره د اضطرار حالت دفع کړی سي، ځکه د اضطرار او مخمصې په حالت کي چي کله د معلوم مردار پسه خوړل هم حلال دي نو په کوم پسه کي چي د مذبوحه کېدلو او حلال کېدلو احتمال وي. د هغه خوړل خو به په درجه اولیٰ روا وي. خو دلته دا خبره په یاد لرئ! چي د اضطرار په حالت کي به هم انسان تحرّی کوي (که چیري د هغه ګنجائش وي). ځکه تحرّی او پلټنه کول داسي شی دی چي د هغه په ذریعه انسان مذبوح ښاروی ترلاسه کولای سي (یا په بله وینا دا چي تحرّی ومذبوح ښاروي ته د رسېدلو ذریعه ده). نو ځکه بېله ضرورته به د اضطرار په حالت کي هم تحرّی نه پرېږدي. ها! که چیري د اضطرار او مخمصې حالت ډېر سخت وي چي په تحرّی کولو او ځنډ کولو سره د انسان د مرګ خطره وي. نو په دې صورت کي له څه تحرّی او پلټني څخه بغیر د هغه لپاره خوړل حلال دي.

دا حکم او تفصیل زموږ په نیز دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې کي اختلاف دی چي هغه به په را روان عبارت کي ذکر سي.

## د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب او د احنافو دليل

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ الْأَكْلُ فِي حَالَةِ الِاخْتِيَارِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د اختيار په حالت کي خوړل جائز نه دي وَإِنْ كَانَتِ الْمَذْبُوحَةُ أَكْثَرَ که څه هم ذبح کړل سوي پسونه زيات وي لِأَنَّ التَّحَرِّيَ دَلِيلٌ ضَرُورِيٌّ ځکه چي تحرّي د ضرورت په وجه دليل دی فَلَا يُصَارُ إِلَيْهِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ نو ځکه له ضرورت څخه بغير به د هغه وطرف ته رجوع نه کول کيږي وَلَا ضَرُورَةَ او [دلته] هيڅ ضرورت نسته لِأَنَّ الْحَالَةَ حَالَةُ الِاخْتِيَارِ ځکه چي حالت د اختيار حالت دی وَلَنَا: أَنَّ الْغَلَبَةَ تُنَزَّلُ مَنْزِلَةَ الضَّرُورَةِ فِي إِفَادَةِ الْإِبَاحَةِ او زموږ دليل دا دی: چي غالب والی [زيات والی] د روايښت په فايده کولو کي د ضرورت په منزله ګرځول کيږي أَلَا تَرَىٰ أَنَّ أَسْوَاقَ الْمُسْلِمِينَ لَا تَخْلُو عَنِ الْمُحَرَّمِ وَالْمَسْرُوقِ وَالْمَغْصُوبِ آيا ته نه ګورې! چي د مسلمانانو بازارونه له حرامو شيانو او له غلا کړل سوي او غصب کړل سوي شيانو څخه خالي نه وي وَمَعَ ذٰلِكَ يُبَاحُ التَّنَاوُلُ خو د دې سره [د حلالو شيانو] اخيستل جائز دي اِعْتِمَادًا عَلَى الْغَالِبِ پر غالب په اعتماد کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ الْقَلِيلَ لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ او دا ځکه چي له لږ مقدار څخه بچ کېدل ممکن نه دي وَلَا يُسْتَطَاعُ الِامْتِنَاعُ مِنْهُ او له هغه څخه د منع کېدلو طاقت نسته [يعني له هغه څخه منع کېدل د انسان په وس او اختيار کي نه دي] فَسَقَطَ اِعْتِبَارُهُ دَفْعًا لِلْحَرَجِ نو ځکه د حرج ليري کولو په خاطر د لږ مقدار اعتبار ساقط سو كَقَلِيلِ النَّجَاسَةِ وَقَلِيلِ الِانْكِشَافِ لکه لږ نجاست او لږ لڅوالی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا نِصْفَيْنِ په خلاف د هغه صورت کله چي هغوی دواړه [يعني مذبوحه او مردار پسونه] نيم په نيمه وي أَوْ كَانَتِ الْمَيْتَةُ أَغْلَبَ يا مردار سوي پسونه [پکښي] غالب وي لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ فِيهِ ځکه چي په هغه کي هيڅ ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿التحرّي﴾ د تفعل د باب مصدر دی: طلب او پلټنه کول. طَلَبُ الأَحْرَىٰ. د تېر عبارت په لغاتو کي هم د دې پوره وضاحت وسو. ﴿لا يصار﴾ د ضرب له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده. صَارَ يَصِيرُ صَيْرًا وَصَيْرُورَةً: ګرځېدل. د دې باب په صله چي إِلىٰ ذکر سي نو معنیٰ يې ده: رجوع کول. ﴿تُنـَزَّل﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده (صحيح همدا ده چي دلته د تفعيل له بابه مستعمل دی): شوه کول. تنزل منزلةَ: يو شی د بل په درجه کي شوه کول (د بل شي په منزله ګرځول). يو څه د بل څه پر ځای اېښودل. د بل شي قائم مقام کول

﴿المَنزِلة﴾ مکان او مرتبه. درجه. ﴿إفادة﴾ د افعال د باب مصدر دی: فایده ورکول. فایده رسول. ﴿إباحة﴾ دا هم د افعال د باب مصدر دی: مباح کول. روا کول. الإباحة: مباح والی (روایښت). ﴿أسواق﴾ جمع د سُوْق ده: بازار (د اخیستلو او خرڅولو ځای). ﴿التناول﴾ د تفاعل د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: اخیستل. ترلاسه کول. ﴿احتراز﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ځان ساتل (ځان کتل). پرهېز کول. بچ کېدل. ﴿لا يُستطاع﴾ د استفعال له بابه د نفي صیغه ده: وس او طاقت لرل. واک او اختیار لرل. ﴿إنکشاف﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ښکاره کېدل. لڅېدل. الانکشاف: اسم مصدر دی: لڅوالی (لوڅوالی).

**تشریح**: زموږ مذهب خو مخکې ذکر سو چې که مذبوحه (ذبح کړل سوي) پسونه له مردارو پسونو څخه زیات وي. نو له تحرّي او پلټنې څخه وروسته هغه مذبوحه پسونه خوړل حلال او روا دي که څه هم د اضطرار او مخمصې حالت نه وي بلکې د اختیار حالت وي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چې د اختیار په حالت کې هغه مذبوحه پسونه خوړل روا نه دي که څه هم د هغوی ذبح (مذبوحه کېدل) په تحرّي سره معلوم سوي وي. برابره ده هغه مذبوحه پسونه زیات او غالب وي او که لږ وي. یا مذبوحه او مردار پسونه سره برابر وي. په هر صورت کې همدا حکم دی چې د اختیار په حالت کې هغوی حلال نه دي.

لأن التحرّي إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې تحرّي او پلټنه ضروري دلیل دی یعنې داسې دلیل دی کوم چې د ضرورت پر بناء ثابت دی او د ضرورت په وخت کې له هغه څخه کار اخیستل کېږي او قاعده دا ده چې "الضَّرُوْرَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الضَّرُوْرَةِ" (یعنې کوم شی چې د ضرورت پر بناء ثابت وي. هغه د ضرورت په اندازه مقدر کېږي. یعنې هغه صرف د ضرورت په اندازه [او د ضرورت تر وخته پورې] ثابتېږي). او دلته خو هېڅ ضرورت نسته ځکه چې دا د اضطرار حالت نه دی بلکې د اختیار حالت دی. نو ځکه دلته (د اختیار په حالت کې) هغه مذبوحه پسونه حلال او روا نه دي که څه هم هغوی غالب او زیات وي او په تحرّي سره د هغوی ذبح (مذبوحه کېدل) معلوم سوي وي.

ولنا إلخ: زموږ دلیل دا دی چې څرنګه د ضرورت او اضطرار په وخت کې روایښت ثابتېږي. همدغسې د غلبې او زیاتوب په وخت کې هم روایښت ثابتېږي (یعنې کله چې حلال شیان او مردار شیان سره جمع وي او حلال شیان پکښې غالب او زیات وي. نو روایښت ثابتېږي چې د هغه حلالو شیانو خوړل جائز او روا دي). نو غلبه او زیاتوب د روایښت او حلت په ثابتولو کې د ضرورت او اضطرار قائم مقام ګرځي. لکه څرنګه چې د مسلمانانو په بازارو کې حرام شیان هم خرڅېږي او د غلا او د غصب (مسروقه او منصوبه) شیان هم خرڅېږي خو بیا هم د غلبې او کثرت په وجه د حلالو شیانو رانیول جائز او روا ګرځول سوي دي او د قلیل (حرامو شیانو) اعتبار ساقط کړی سوی دی. نو څرنګه چې دلته د قلیل اعتبار نه کېږي او د هغوی په وجه د حلالو شیانو رانیول نه حرامول

کیږي. نو همداسي به د پسونو په دې مذکوره مسئله کې د قلیل (څه مردارو پسونو) اعتبار نه کیږي او د هغوی په وجه به د مذبوحه پسونو خوړل نه حرامول کیږي او له تحری او پلټنې څخه وروسته به هغوی حلال ګرځول کیږي.

وهٰذا لأنّ القليل إلخ: یعني د لږ مقدار (څه مردارو پسونو) اعتبار په دې وجه هم ساقط سوی دی چې له لږ مقدار څخه احتراز او ځان ساتل ممکن نه دي او له هغه څخه بچ کېدل د انسان په وس کې نه دي. نو ځکه د حرج او ستونزې د لیرې کولو په خاطر لږ مقدار لره اعتبار نه دی ورکول سوی او هغه ساقط کړی سوی دی. لکه څرنګه چې لږ مرداري او لږ عورت لڅېدل هم د حرج او ستونزې د لیرې کولو په خاطر ساقطُ الاعتبار او معاف کړل سوي دي ځکه چې له هغه څخه بچ کېدل ممکن نه دي. نو همداسي په مذکوره مسئله کې هم لږ مقدار معاف ګرځول سوی دی.

بخلاف ما إذا إلخ: او پاته سو هغه صورت چې مذبوحه یعني ذبح کړل سوي (حلال کړل سوي) پسونه او مردار پسونه دواړه نیم په نیمه وي. یا مردار پسونه زیات وي او د اضطرار او مخمصې حالت نه وي بلکې د اختیار حالت وي. نو مخکې ذکر سوه چې په دې صورت کې حلت او روایښت نه ثابتیږي یعني هغه مذبوحه پسونه حلال نه دي او خوړل یې روا نه دي؛ ځکه په دې صورت کې خو نه څه ضرورت سته او نه د ضرورت قائم مقام یعني غلبه او زیاتوب سته (یعني نه د اضطرار حالت دی او نه مذبوحه پسونه پکښې زیات دي) او له ضرورت څخه بغیر روایښت نه ثابتیږي. نو ځکه په دې صورت کې به روایښت نه ثابتیږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

الحمد لله! د الله ﷻ په عظیم فضل او رحمت سره نن د "۱۴۴۲" هجري کال د "ربیع الثاني" په پنځمه نېټه چې د "۲۰۲۰" میلادي کال د "نومبر" د شلمې نېټې سره سمون لري. د جمعې په مبارکه ورځ د ځانښت پر مهال د "فتح الهدیه" آخري ټوک پای ته ورسېدی. رب لایزال ﷻ دې په خپل فضل او کرم سره د نورو ټوکونو په څېر دا هم مقبول عام وګرځوي او دا حقیر خدمت دې زموږ لپاره او زموږ د مور و پلار، استاذانو او خپرونکي لپاره د آخرت ذخیره وګرځوي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ

وَصَلَّى اللهُ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ وَصَحْبِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ وَعِتْرَتِهِ أَجْمَعِيْنَ

بِرَحْمَتِكَ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ

احقر حبیب الرحمٰن مدني

۵/ ربیع الثاني/ ۱۴۴۲هـ

مطابق ۲۰/نومبر/ ۲۰۲۰م